

# رښا او دفاع

## يا

د افغانستان د نفوسو ، تاريخ او روانو پيښو په باب ليکنې

ليکونکی او تنظيموونکی

محمد حسن کاکړ





خپروونکی
د سابې د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز

پېښور

۱۳۷۷ ۱۹۹۹

# سمون لیک

ښه به داوي چې لوستونکي دکتاب ترلوستلو نه دمخه په هغه کې لاندې چاپي تېروتنې سمې کړي:

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| Xii | تصویرونه او انځورون (۱۸) | VIII - دافغان اسلامي غورځنګ لارښود علامه سید جمالدین افغان. | نه دې وي ، نه شته |
| ۱۴۴ | ٦ | لکه ددغسې ګوند دمشر تابه غړې | دغسې ګوند |
| ۱۵۲ | ۱۲ – ۱۵ | دیو بل راوي په قول هغه (سلطان حسین) دخپل نوي نوم (ببرک کارمل ) لپاره دتصور په ..........پیونداوه . | هغه دیو بل راوي په قول دکارل مارکس او ولادیمیر لینن له نومونو نه جوړ دی په دې ډول . |
| ۴ | ۲ | ایسته دې شي | په |
| ٦ | ۲٦،۱۴،۱۱،۹ | تجزیي | تجربې |
| ۸ | ۸ | د روښانفکرۍ | باطل دی وي ،نه دی وي |
| ۸ | ۱۲ | په هلکه | دروښانفکرۍ په هکله |
| ۱۳ | ۱۴ | ددې | ددې پروا هم نه کوي چې |
| ۳۰/۱۵ | ۱۱ ،۲۳ | لال – ممکن | لالی – متمکن |
| ۳۹/۳۰ | ٦ . ۲۷ | همعنای – سمتي | همعناني – ستمي |
| ۵۳ /۵۲ | ۱۸ . ۱۷ | بخوایي – ۳ | نجوا – ۲۳ |
| ۵٦ | ۲ | ۱۷۸ | ۱۹۷۸ |
| ۱۰۷ | ۲ | دبني اسپې زوی ؟ | دبنې اسپې زوی؟ |
| ۲۳۳ | ۱۴ ، ۱۱ ،۱۰ | ۵٦۱ ،٦۴ – ۵۷۹ . | ۵٦،۱ ،٦،۴ – ۵۷،۹ |

# د کتاب پیژندنه


| | |
|---|---|
| دکتا ب نوم | رنا اودفاع یا دافغانستان دنفوسو تاریخ او روانو پښتو په باب لیکنې |
| لیکونکی او تنظیموونکی | محمد حسن کاکړ |
| مهتمم | پوهندوی شیرګل اوستا |
| خپروونکی | د ساپی دپښتو څېړنو او پراختیا مرکز |
| ځای | پېښور |
| دچاپ کال | ۱۳۷۷ (۱۹۹۹) |
| شمیر | ۲۰۰۰ ټوک |
| بیه | په افغانستان کې ( ) افغانۍ<br>په امریکااو نورو بهرنیو هیوادونوکې ( ) امریکایې ډالر یا دهغو معادل |




پته : د ساپی د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز - فلیټ نمبر ۳۱۴ - دریم پوړ - ګل حاجی پلازه- یونیورسټی روډ- پېښور- ټیلیفون او فکس نمبر۴۴۵۰۶

***Address***: Sapi's Center for Pushto Research and Development, Flat No 314, 3rd Floor, Gul Haji Plaza, University Road, Peshawar, Pakistan.

Phone and Fax no: 091-44506

# اهدا

و هغو ته چې خپل ژوند، فکر، وينـــا او کـړه د افغانسـتان د بشپړ ساتلو په لارکې وقفـوي او پـه افغانسـتان کـې د يـوې مدني او بسيا ټولنې، ملي پيوستون او خپلې خوښې افغـاني واحدې واکمنۍ د بيخ نيولو دپاره د ټولو ستونزو سره سـره بيا هم زيار باسي او په عمل کې څند نه منونکی کار کوي.

# رڼا ــ زموږ هیله

په ټولنیزو مناسباتو کې دا یوه علمي او پلي کېدونکې قانونمندي ده چې د تاریخ په اوږدو کې زموږ د اوسني ټولنې د خلکو د مبارزو تاریخ او ټول ملي ارزښتونه د دې خاورې د اصلي اوسېدونکو یعنې زموږ د تېرو پلرونو او نیکونو د ملي مبارزو د تاریخ دوام دی او دا یوه نشلیدونکې کړۍ او نه ماتیدونکې پدیده ده چې خپلواکې علمي واکمنې او د خاورې پشپړه ساتنه یې بنسټ تشکیلوي.

دلته د یادوني ور خبره دا هم ده چې د پدیدو د څېړنو په لړۍ کې اجتماعي پدیدې لکه د افغان خوځنده یاد دنړۍ نورې سترې پېښې تر ټولو نورو پدیدو دو مره پېچلې پیچلي او هر اړخیزې دي چې که هرڅومره د هغو په پېچلتیا او د شناخت او موندنې په هکله ډېر ډېر تحقیقات او څېړنې تر سره شي بیا هم ډېره کمه ده او د هغو د شناخت د او د موندنې د پېچلتیا په اړوند مو هېڅ ډول مبالغه یا افراط ندی کړی.همدا شان تجربو را ښودلې ده چې د دې پدیدو د هر عمل پلي کول او د هغو څخه د ټولنې لپاره د ګټې اخیستلو او یاهم د پدیدو د تکامل د عیني بهیر او د هغو د داخلي محتویاتو، استقامتونو او د تضادونو د څرنګوالي یا تشریح دپاره د یوه تاریخ پوه، لیکوال او څېړونکي په وړاندې ډېرې زیاتې ستونزې رامنځ ته کیږي. همدا علت دی چې هر وطن دوست، بشردوست او د روښ وجدان لرونکي لیکوال، محقق او مورخ هم د خپل کتاب د تاکلو هدفونو د دفاع او بري د پاره د خپلې څېړنې په ټوله موده کې ډېرې ستونزې، ستړیاوې او ان د خپل سر او ژوند په قیمت د خطر نه ډکې ربړونې ګالي. دا ټول ددې دپاره چې څېړونکي او لیکوال وکولای شي خپلې ټولنې، تاریخي ویاړونو او د خپلو تېرو پلرونو د لرغوني مدنیت ویاړونکو کارنامو، بنیادي هویت اود خپلواکې دڅاڅکو څاڅکو وینو نه د خپل قلم په توره ساتنه وکړي او راتلونکو نسلونو ته د افغان اتل ملت د پور حق ادا کړي.

باید اعتراف وکړو چې د هیواد نومیالي تاریخ پوه، لیکوال او څېړونکي پوهاند ډاکتر محمد حسن "کاکړ" د هغې ورځې نه چې د هیواد، سیمې او نړۍ د تاریخي پېښو په اړوند په یو لړ علمي څېړنو او لیکنو باندې پیل کړی دی، په خپل ټول تېر عمر کې د افغانستان د اولسونو او د پوهې او سیاسټ مینه والو ته د دې پېړۍ په هر پېښ شوي حساس وخت په تیره بیا په دوو تیرو لسیزو کې د ننه د کابل پوهنتون محصلینو ته د علمي زده کړې د و رلیږدونې برسیره، د افغانستان د بشري، سیاسي، اجتماعي او د روانو خونړیو تاریخي پېښو په باب د افغانستان

راتلونکي نسلونو ته دحقیقتونو د راښېرنې، لیکنې او خپرونې حق چې دا حق په کاکړ باندې د افغان اتل ملت، ملي پور و، هم ادا کړی دی.

دا دی نن یو ځل بیا ددې ستر ملي پور او ملي حق د ادا کولو یوه بله روښانه بیلګه چې د محترم کاکړ صاحب په ډېر لوړ او علمي تدبیر، فکر، پوهې او قلمي قربانیو سره د رښا او دفاع یا (د افغانستان د نفوسو، تاریخ او روانو پېښو په باب لیکنې) په نوم یو بل ډېر ارزښتناک کتاب چې د ۱۹۹۹عیسوي کال په لومړیو میاشتو کې لیکلی او د خپلو ځلاندو افکارو په ورانکو یې د هیواد د لرغوني اونوي تاریخ د حقیقتونو په ځرک د هر وطن دوست لوستونکي سترګې روښانه کړي دي.

زه همداو س په همدې شیبو کې چې د (رښا-زموږ هیلې) سر لیک په نوم درونه او محترم استاد کاکړ صاحب ته خپل درناوی او مبارکي ادا کوم، ویاړم چې د رښا او دفاع نومي ارزښتناک کتاب په لومړي ځل سره د ساپي دپښتو څېړنو او پراختیا مرکز لخوا په پېښور کې چاپ او خپور شو.

د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز د بنسټ ډېره چې ما پخپله په خپل ځانګړي لګښت د هغې مینې او ملي ارمان له امله چې زما د روح او خټې سره د افغانستان د بشپړ اکثریت خلکوته د ملي ژبې پښتو ته یې له کوم امتیاز، ریا او یې له کومو شخصي ګټو په نظر کې نیولو سره د خدمت کولو په خاطر اخښتکل شوی دی، درې کاله وړاندې په پېښور کې کښېښودله شوه. ما لا د ډېر پخوا نه د خانه سره په ټینګه پتیالي وه چې زه باید دداسې یو علمي مرکز دلارې په هر ډول مادي او معنوي قرباني چې وي، افغانستان او افغاني ټولنې په تېره بیا د ځوان نسل د پوهنیزو ښیګنو او د پښتو ژبې د پرمختګ او لا پسې بډای کولو دپاره خدمت او تاریخي او ملي خنډ نه منونکې دندې د یوې رغوونکې علمي ستراتیژۍ په رڼا کې تر سره کړم.

بې ځایه به نه وي چې د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا د مرکز ستر خدمتدپل د ورځې څخه را پدې خوا د هغه د فعالیت اساسي تګ لار او ټاکل شوې پوهنیزه ستراتیژي په لاندې ډول یاده کړم:

۱. په افغانستان کې د پښتو ژبه چې د دې هیواد د اولسونو د بشپړ اکثریت ملي ژبه ده باید د افغان د ټولو قومونو لپاره په خپل منځي کې مینه مینه شي، علمي شي، د ساینس تخنیک او د کمپیوټر ژبه شي او بالاخره ډیر ژر د ښوونې او روزنې د وزارت د ښوونځیو، مسلکي تخنیکمونو، اکاډمیو او پوهنتونونو لوستخونو ته ور ننوځي او په رسمي ملي اودولتي مناسباتو او راکړه ورکړه، خط او کتابت کې دې په ټول هیواد کې عام او د هر افغان د قلم ژبه شي.

۲. د پوړتني ملي ارمان سره جوښت د مسلکي علومو د لوړو زده کړو او د ټول معارف درسي او مسلکي کتابونو د وړیا چاپولو او خپرولو په څنګ څنګ کې دا مرکز د ویاړ دکه یوه بله دنده هم لري او هغه دا چې د علمي، ادبي، تاریخي او ډول ډول له منځه وړل شویو او سوځول شویو کتابونو او ارزښتناکو ملي تاریخي او فرهنګي آثارو د بیا رغوني د پاره په ملي ژبې پښتو باندې د سابې د خانګړي پانګې په لګښت په وړیا توګه چاپ او خپاره کړي.

۳. د دې مرکز د علمي او فرهنګي ستراتیژۍ د کار بل غوره استقامت دا دی چې دا مرکز به تر خپله وسه وسه هڅه وکړي چې پښتو ژبې ته داسې د زده کړې تجربوي معاصر علوم چې د اوسنۍ ټولې بشري ټولنې په تیره بیا د افغانستان راتلونکو ځوانانو، استعدادونو او ملي شعور ته په پرمختیا او ترقۍ کې نه تم کیدونکي وده او تکامل ورکړي،پام را واړوي او د دې مرکز لخوا نه دې په پښتو ملي ژبه کې د معارف او زده کړې ځوانانو ته په زره پورې چاپ کړی شوي آثار او کتابونه په لاس ورکړي.

د دې ملي – پوهنیزې ستراتیژۍ په رڼا کې زما په نظر د سابې د پښتو خپرنو اوپراختیا مرکزته دا ډیر د ویاړ او خوښۍ شیبې دي چې ه رڼا او دفاع نومي کتاب هم ددې مرکز دچاپ او خپرونو په آرشیف کې ځای وموند. دا کتاب د پیښو د تشریح او عیني واقعیتونو په لحاظ ډیر ارزښت لري.

د دې ستر کتاب د لید زاویه د یوه نا پییلې پاخه تفکر د نقطې څخه سرچینه اخلي او هر څه د ملي ګټو په تناسب د علم سره یوځای څیړي، نوځکه خو معلومیږي چې د دې کتاب په خلاندو پاڼو کې د ملي یو والي د تخریب او د سیاسي ستونزو د را پیدا کیدلو اغزجنې لارې، لاربووونې، تعلیمات او زهرجنو تبلیغاتو، دښمن پلوه میتودولوژي د یوې خوانه او د هیواد د یواوالي په خلاف د ټولنې کیدلو نظریاتي پروژې، مرکزونه او د هغو د اړوندو واکمنو مقاماتو یا شبکو ناولي څیرې د بلې خوانه په خپل تاکلي وخت سره د لیکونکي د ټولو عیني او علمي دلایلو او ثرګندو، نیوکو په رڼا کې رسوا او هیواد والو ته په ګوته شوي دي. دا ډلګۍ نظریاتي بیلتون پالان او متعصب لیکوالان چې د پردیو په لمسون او لګښت په تیره بیا د کورني جنګ په ټولې خونړۍ موده کې د ملي یووالي، ملي هویت او ددې خاورې د اصلي اوسیدونکو د بشپړ اکثریت پښتون قوم په خلاف خپروني او لګښتونه کړي دي، اوس هم هڅه کوي چې زموږ د لرغوني هیواد په تاریخي حقیقتونو او ارزښتونو باندې د پردیو په دستور د خپلو لیکنو خپرونو او زهرجنوتبلیغاتو جبر ومنې او د افغانستان د ملي ټولنې د جوړښت په لرغوني روح باندې خپل ستمکرانه او آخرني مرګوني ګذار وکاندې.

زمونږ په نظر اوس هم ددې وخت لا ډیر تیر ندی نو ځکه خو هیله من یو چې که چیرته همدا اوس هم ددې تکې د لرلو احساس وشي، چې د لړکیو قلم پلوي لیکوالان او نور ډول ډول بیلتون غوښتونکي ټولنې ددې اثر په رڼا کې د ملي یووالي په لورو ارزښتونو، اړیاوو او تاریخي ملي خنډ نه منونکو غوښتنو باندې ژر وپوهیږي او په خپلو اوسنیو دریځونو، عقایدو او یا د نورو په لمسون او لګښت باندې د لړکیو د واکمنیو د لایتناهي خلیدونکې سراب په ډنډوچکو خپل د تعصب جل وهلي تنده د ماتیدو په انتظار ونه غولوي او ددې سره سم د ژبې د برلاسی په بې ځایه نظریاتو او سفسطو باندې سر له نوي ځخه ډیر ژر نوې رغوونکي کتنه وکړي او بې له ځنډه ددې کتاب د لیکل شوو ټولو ملي واقعتونو ته چې په رڼا او دفاع کې ورته درناوی شوی دی، په ښه نیت اقتدا وکړي، نو ډیره به ښه وي او دا ډول رسا اقتدا به ددې زخمي اما نه ماتیدونکي ملت د ټولو ملي مقدساتو او بې له استثنی ځخه زمونږ د ټولو قومونو په ګټه وي.

زه هیله من یم او پوره باور لرم چې د هیواد نومیالي مورخ پوهاند کاکړصاحب د رڼا او دفاع نومې کتاب به د هر لوستونکي او د خپلواکی هر مینه وال افغان په افغاني روح باندې ښې ژورې اغیزې وکړي او د افغانستان په ورونو قومونو، تاریخ او د روانو پیښو په باب به ریښتینی قضاوت تر لاسه کړي. د تاریخ په ډیر ترخو او ستونزمنو شرایطو کې د رڼا او دفاع نومې دکتاب چاپیدل او خپریدل یو ځل بیا د دې داد او ثبوت را په ګوتو کوي چې افغانستان او د هغه هر افغان بچی د اوسنیو بدو ناخوالو سره سره نه یوازې دا چې ژوندی هوښیار او فعال دی، بلکه کولای شي چې د دې د خاورې د لرغون تاریخ، علمي،فرهنګي او افغاني عظمت او برم یو ځل بیا لوړ او لا پسې په نړیوال کچ نومیالی کړي.

د رڼا او دفاع نومې کتاب د تاریخي، ملي او معنوي ارزښتونو په لحاظ د پښتنو او ټولو هغو افغانانو دپاره چې د هیواد، د خاورې بشپړتیا، خپلواکی، آزادۍ، ملي یووالي او په هیواد کې د قومونو تر منځ په سولې او ډموکراسی کې د اجتماعي عدالت او پرمختګ غوښتونکي دي او نه غواړي په افغانستان کې قومي ژبني یا مذهبي تضادونو ته لمن ووهل شي ډیر ارزښتناک مقام وګاټه. یو ځل بیا په ویاړ سره یادونه کوم چې دې کتاب د یوې سترې فرهنګي تاریخي او علمي پانګې په توګه د ساپې د پښتو څیړنو او پراختیا مرکز د ویاړونو په آرشیف کې یوه بله ډیره غوره او روښانه ډیوه بله کړه او زمونږ د جل وهلي تاریخ د ژبې په سر باندې د پوهاند کاکړصاحب په لاس د قلم په څوکه د ژوندانه د اوبو یو بل روڼ څاڅکی پریوت.

د رڼا او دفاع نومې کتاب زمونږ د ټولنې د روانو پیښو هنداره او د سیاسي، اجتماعي، پوځي او ملي ارزښتونو یو داسې باوري مستدل تاریخي سند

دي چې د یوویشتمې پیړۍ په ورستیو شیبو کې د هیواد، د نومیالي تاریخ پوه پښتون کاکړ لخوا لیکل شوی او د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز د علمي شورۍ (د علمي شوراغړي پوهندوی شیرګل اوستا) لخوا یې اهتمام سرته رسیدلی دی. زموږ په نظر دا ستر او نوی چاپ شوی ارزښتناکه تاریخي سند چې د پرونۍ کُول د وياړونو د ننني کُول د رغوونکو دندو او د سبا ورځې د ځوانانو، پغلو او علمي کادرونو لپاره د خپل تاریخ د دفاع ډاډمنه وسله ده، یوه ډیره ستره ملي – فرهنګي پانګه بلل کیږي. زه د یو هیلـه من افغان په توګه ویلای شم چې کوم کار چې زموږ او زمونږ ځوان نسل ته پدې اثر کې ډیر ارزښتناک دی هغه دا دی چې د کتاب په ټولو برخو کې یوه علمي استادانه مقایسه، زیرکانه کره کتنه، څېړنه او د افغانستان د روانو پیښو د لیکنې په اخلاقي اصولو او دودلیکنې کې زیات زیار ایستل شوی دی او په ډیرو حساسو ټکو یې د راتلونکي کُول لپاره د دې کتاب په پاڼو کې د یادونو میراث راپریښی دی چې باید د ټل لپاره نسل په نسل دا میراث امانت پاتې شي.

د کاکړصاحب دا اثر د علمیت، معنی، مفهوم، مهربانۍ، عینیت، اخلاق، ربښتیا، سیاست، لوړ سپیڅلی ملي احساس او د هغه د لوړو افکارو او افغاني شریفو احساساتو د ښوونې قانونمندانه یو درسي داسې کتاب دی چې زه هیله من یم د هغه څخه باید په میتودیک او دوام داره توګه پخه او ژوره زده کړه وشي.

همداغسې چې زیږیدنه او مرګ د افغان د ټولنیز تکامل، شتوالي او سمون په سرنوشت کې ستره اغیزه لري، همدا شان ددې کتاب لوستل هم ددې خاورې د هر اصیل او یوه انسان په سرنوشت کې ډیر زیات اغیزمن دی. نوځکه خو ویلای شم چې دا کتاب هم د پوهې د یوې وسیلې او هم د افغانستان د تاریخي ویاړونو، مدنیت او د انساني عقل او منطق د دفاع لپاره پیداګوژیک لارښود او د یو تجربه کار استاد بنه لري. هیله من یم چې د رڼا او دفاع نومي کتاب به د افغانستان د وطن پالانو او د ملي یووالي غوښتونکو استعدادونو ته ډیر ارزښتناکه خدمت ترسره کړي.

په پای کې د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز د پورتنۍ ستراتیژي او پوهنیزې مفکورې په رڼاکې زه د پښتو دملي ژبې او ټولو افغانانو د ژور خدمت لپاره د دې مرکز د بنسټ ایښودونکي په توګه له خپلې خوا، ددې مرکز د علمي شورۍ د درنو غړو او ددې مرکز د ټولو کارکوونکو لخوا د هیواد د نومیالي تاریخ پوه پوهاند، ډاکټر محمد حسن کاکړ صاحب ته دده په دې لوړ زیار او هغه تاریخي، فرهنګي د پښتو ژبې پانګه چې د هیواد، د تاریخ، فرهنګ، پښتو او سیاست مینه والو ته د خپل رڼا او دفاع نومې لیکل شوي کتاب په لمن کې یې راټوله کړې اود راتلونکو نسلونو، ځوانانو او د قضاوت خاوندانو ته یې ډالۍ کړیده

ښه چارې او د زړه لـه کومـې مبـارکي وايم. او د لـوی، بخښونکـې او مـهربان خدای(ج) څخه محـترم کـاکړ صـاحب تـه د هیـواد د نـورو تـاریخي پیښو د حقیقتونـو او نتـایجو پـه بـاب چې لا تـر اوسـه پـورې پر هغـو هیچـا هیڅ ډول رڼا نـده اچولې د رڼا اچولو توفیق او څیړنـو کې یې بریالیتوبونـه غـواړم.

په ډير درنښت

امام الدين ساپی

# د کتاب مطالب



## لومړۍ برخه

## د نن او پرون چیلنج

-۱-



## د پرون چیلنج

-۲-



## دوهمه برخه

## د نن چیلنج

-۱-

# د نن او سبا چیلنجونو ته ځواب

-۲-



## تصویرونه او انځورونه



**یادونـه:** اوبدلی مې دي چې د میرویس هوتک، امیر دوست محمد خان، او وزیراکبرخان رسمونه اروانباد عبدالغفور بریښنا چې د وطن نامتو انځورګر، کمپوزر و، اود کبوتر په نامه يې په خصوصی مجلسونو کې سندرې هم ویلې، د اروانباد سردار محمد نعیم خان په غوښتنه ایستلی دی.

# سرلیک او مننه

د لیکنو دغه مجموعه د هغې لیکوالو د پوهې او احساس نتیجه ده. وروسته له هغه چې دغسې کوښښ روان شو، چې رڼا ترړمې شي، او تورونه خپاره د دغې مجموعې د را ایستلو د پاره اړه پیدا شوه. د رڼا او دبېرته رونولو او د تورونو د شنډولو په مقصد ما دغو لیکوالو ته بلنه ورکړه، او هغوی زما په ګډون د دغې مجموعې را ایستل په دغه بڼه ممکن کړل نو په پراخ ډول دغه مجموعه په اصل کې د رونولو په مقصد را ایستل شوې. که لوستونکي هم همدغسې وګني، او معنوي ګټه ترینه وچته کړي، مونږ به خپل مقصد ته رسیدلي اوسو.

دا مجموعه باید ډیر د مخه د لوستونکو کوتوته رسیدلې وای، خو د نفوسو د لیکنې دپاره د منابعو په لاس راوستلو کې خنډ پیښ شو. اوس چې هغه پخه راوتي، هیله ده چې ښه رونول وکړي. په هر حال، زه دلته له موقع نه په استفادې سره له خپلو محترمو همکارانو نه چې د دغه اثر را ایستل یې ممکن کړي، د زړه مننه کوم. په عین حال کې له هغو نورو محترمانو نه چې زه یې دغه کارته هڅولی یم، او منابع یې یو وخت بل وخت را استولي دي، هم د زړه مننه کوم. په دې برخه کې په مشخص ډول له محترم انجینیر احمدالله، د قانوني پاچایي د کورنیو چارو له پخواني وزیر، محترم پوهاند ډاکتر عبدالغفار متوکل، او محترم سپتنا حسین خیلي او داسې هم له هغو محترمانو نه چې نه غواړي نومونه یې واخیستل شي، د زړه مننه کوم. دوی ناخپاره شوي مواد را استولي، او د خاصو موضوعاتو په هکله لیکلي معلومات راکړي دي.

په پای کې د پښتو څېړنو او پراختیامرکز له مشر، محترم امام الدین ساپي نه مننه کوم چې دکتاب په بڼه یې د دغه اثر خپرول په غاړه واخیست، لکه چې دغسې نور اثار یې د مخه خپاره کړي او په اینده کې یې هم خپروي، او په دې ډول یو مهم کولتوري خدمت اجراکوي. داسې هم د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیامرکز د علمي شورى له غړی محترم شیرګل " اوستا" څخه مننه کوم چې د کتاب د را ایستلو په هکله یې فکرونه کړي، او زحمتونه ګاللي. ده د کتاب د اهتمام سخته دنده په خاص شوق او مینې سره سرته رسولې او زه یې ممنون یم.

محمد حسن کاکړ
دسمبر ۱۹۹۸/ سلواغه ۱۳۷۷
سان ډیېګو، امریکا

# دلوی، بخښونکي او مهربان څښتن په نامه

# پیل

محمد حسن کاکړ

-۱-

له دوهم جهاني جنګ نه وروسته په نړۍ په تیره په لویدیځې نړۍ کې ژوراوښتونو نه پیښ شول اوهغه په چټکۍ سره پیښ شول او دومره زر عمومي شول چې افغانستان ته یې هم لار وموندله اودخلکو ژوند یې په ژور ډول متاثرکړ. په افغانستا ن کې له ۱۹۵۴ نه وروسته چې انکشافي پلانونه دباندنیو هېوادونو په کريډټونو او دداخلي او خارجي متخصصا نو په کمک سره په مخ بیول کېدل دهغه پولې هم د باندینو اوهمداراز دعصري افکار و په مخ په بې سا بقې ډول خلاصې شوې.افغانستان نور نو د منځنیو پېړیو یو ګوښه هیواد نه و. په مشخص ډول افغانستان په کولتوري لحاظ نور نو یوازې داسلامي نړۍ یوه برخه نه وه. په همدغې ساحې کې یې دشوروي کامپ لویدیځې نړۍ او ددریمې نړۍ له هیوادونو سره په بېلو بېلو ساحو کې اړیکې پیداکړل او دغه اړیکې تر ۱۹۷۵ پورې چې ۱۲۵، ۱۱۵ تنه افغانستان لړ تر لړه دبکلوریاتر درجې پورې تعلیمیافته شوي وو، دمنځنۍ طبقې په پڼ کېدو کې سره نورهم ټینګ شول. په دې ډول دافغانستان دنامتجانسې ټولنې تعلیمیافته ګان دنړې دنامتجانسو هېوادو نو له متخصصانو او همداراز له سره متضادو نویو فکرونو سره مخامخ شول او دغې مخامختیا زمونږ په تعلیمیافته ګانو باند ې دغسې ژوري اغیزې وکړې چې په پای کې یې دافغانستان دملي سیاست مورفولوجې واړوله او سیاسي زلزلې یې بو په بل پسې رواني کړې. په ملي سیاست کې دمنځنۍ طبقې اغیزمن توب ځکه وا قعې شو چې دغه طبقه په عمده ډول دښځو په ګډون له تعلیمیافته خوانانو څخه جوړه وه او له دغو خوانانو نه هغوی چې دقانوني پاچایي په دوره کې په سیا سي ګوند ونو کې تنظیم شول په سیاسي چاروکې اخته شول او دعصر له سیاسي فکرونو او ددولتي قدرت دنیولو له تاکتیکو نو سره یې سراوکار پیداکړ. ولس هم چې په عمده ډول دنویو مفاهماتي وسایلو له لارې له خپل بیرته پاتې توب او د نورو ولسونو

له پرمختګ نه خبر شو دسلیم عقل په حکم یې عصري پوهې او پوهنپالو ته تر پخوا زیات دقدرپه سترګو وکتل اودهغو دغه ادعایې درنه وبلله چې دوی ګواکې (( روښانفکران)) یعنې دپاخه فکراوسمې لارې روان خلک دي. تعلیم کړو پخوا خانونه ((منورین)) او دغه وخت ((روښانفکران)) بلل. دواړه کلمې په مطبوعاتو او شخصي مفاهمو کې په داسې حال کې رواج وې چې دحکمرانې کورنۍ غړو عصري، اختصاصي پوهې، پوهنې اوکولتورته مخه ونه کړه او یوازې په سطحي عصریت یې اکتفا وکړه او د دولت په چلولو کې یې له عنعنوي طریقې نه کار اخیست، هغه هم په داسې حال کې چې دوی نورنو په قطعي ډول سرداران یعنې ملکي او نظامي سروالان نه، بلکه له ولس نه بیګانه شوي ښاري اشراف کرزیدلي وو. په ملي سیاست کې دمنځنۍ طبقې اغیزمن ټوب لکه چې دمخه مې وویل په دې کې و، چې دغه طبقه له ښځینه اونارینه تعلیم کړو خوانانو نه جوړه وه. په دوی کې ښوونکي، زده کوونکي، لیکوالان، ژورنلستان، بیوروکراتان، هنرمنان او داسې هم هغسې نظامي اوپولیسي منصبداران شامل وو، چې سراوکار یې له سیاسي ،عرفاني، کلتوري او اجتماعي چارو سره وو اود اوښتون غوښتونکي وو. دحاکمې طبقې، مخکه وا لو، بیوروکراتانو او شتمنو منسوبین هم پکې وو خو دوی دتحصیلاتو، مسلک او ذوق او وظیفې په حکم له قدرت او اجتماعي چارو سره په دغسې یوه نوې چا پیریال کې خانونه و موندل چې هلته غته موضوع له موجود حالت نه نارضایت او داوښتون راوستلو په لورهڅه وه.که په دغې طبقې کې دصناعتي، سوداګرې اومالي متشبثینو غړې هم په کافي اندازه وای اوپاپه جامعې کې ددغسې افرادو شمیر په عمومي ډول ډېروای په غالب احتمال چې منځنۍ طبقه به دسیاسي نظام دبدلولو په برخه کې هغو مره فعاله نه وای لکه چې شوه، خو په افغانستان کې دغې ډلې خلکو ته هېڅ وخت دډېراخ فعالیت موقع نه ده ورکړشوې. ددغه کار یوعلت شاید داوي چې اسلام پانګه ورې او ازاد تشبث ته موقع اصنافوته ورکوي په دې چې سود حرام ګڼي. په افغانستان کې داحمد شاه دراني له وخت نه راهیسې په پانګه ورو، سوداګرو، اصنافو او حرفوي کسانو باندې له حدنه زیات محصولات حواله شوي دي . دامیر دوست محمدخان او امیر شیرعلي خان په وختو کې دوې لږڅه آزاد پرېښودل شول، خو دامیر عبدالرحمن خان په وخت کې چې مرکزي حکومت ترهربل وخت نه

قوي شو ددوي دفعاليت ډګر ډېر محدود شو. بل علت يې دادي چې دافغانستان دعصري کولو په دوره کې دولتي سکتور دخصوصي متشبثينو دسکتور په قيمت پړ شو او بوراز دولتي سو سيا لزم منځ ته راغي. که په افغانستان کې دعام المنفعه انکشافي دولتي پلا نونو ترڅنګ هم په زراعت، هم په صناعت اوهم په سوداګري کې خصوصي متشبثين دقانون له مخې ازاد پرې ښودل شوي واي يعنې دولت دهغو دفعاليت ډګر تنګ کړي نه واى دوي به دخپلوانکشافي تشبثاتواو فعاليتونو په بهير کې دنورو خيزونو په ډله کې ډېر کار ونه توليد کړي او شتمني زياته کړي واي چې دهغو په نتيجه کې به دغې منځنۍ طبقه پنه او پياوړي شوي واي چې دهغې هڅه اوګټه به دموجود حالت په ساتلو کې واى نه دهغه په اړولو کې هغه هم نه په سملاسي او کودتايي ډول سره .

دلته له دولت څخه مقصد هغه حکومتي نظام دى چې دامير عبدالرحمن خان په هڅه او سره تاسيس شوي او دمهال په تېرېدو سره يې انکشاف کړى دى . ددغه امير په دوره کې دافغانستان په نامتجانسه او نا مصئونه ټولنه کې په داسې حال کې چې دغه هېواد دبساندنيو خطراتو تر تهديد لاندې وو اوخارجي قدرتونو (روسيې اوبرتانوي هند) څو ځله په هغه نظامي يرغلونه هم کړي وو او خينې سيمې (خيبر، پنجپې، سبي ، پنجده، ديورند نه اخوا سيمې) يې هم تړنه نيولې وې دغه فکر په قوي ډول حس کېده چې که افغانستان د يوه هېواد په حيث پاتې کېږي په هغه کې بايد دغسې يو ټينګ مرکزي حکومت ځاي په ځاي شي چې لږ ترلږ ه پاتې افغانستان له داخلي او خارجي خطرونو نه ما مون وساتي اوامنيت پکې خوندي کړي. نو زوره دنظامي، امنيتي او پوليسي قدرت په ټينګولو او دوسلواو مهماتو په پيداکولو باندي واچوله شوه چې ددغه کار نتايج دماليانو، محصولاتو او عوايدو زياتېدل، ددفتراو بيوروکراسي پراخېدل، دمېر زايانو او نظا مي منصبدا رانو ډېر يدل او په نهايت کې دافرادو دازادي اوخصوصي تشبثاتو په قيمت دحکومت پکېدل اودسياسي قدرت متمرکز کېدل شول. له هغه وروسته حکومت ترېل هر وخت نه زيات دقدرت دميند لو، شتمن کيدو دحيثيت او اجتماعي اعتبار دپيدا کولو او همدا راز دخدمت کولو عمده منبع وګرزيده، په تيره چې غيرحکومتي تشکيلات او موسسات په ټول وطن کې دګوتو په شمېر وو او په هغو کې اشخاص په اجتماعي او

سیاسي لحاظ مهم کیدلي نه شو که څه هم چې عواید یې دمعادلو حکومتي اشخاصو په تناسب زیات وو. نو عمومي هڅه داشوه چې ایسته دی شي ملکي او نظامي ساحو کې مستعد او مقام غوښتونکي کسان په زیات شمیر نتوځي که څه هم دوي هلته دامریت او ماموریت په زنځیر کې مقید کېدل او نه یې شو کولي چې نه یوازې دقانو ن بلکه دخپل ازاد فکراو وجدان له مخې سلوک او ژوند وکړي .په دې ډول دافغانستان دولت خپل عاملان ماموران، او منصبداران له خپل متمرکز قدرت نه زیات بهره من کول په تېره په هغو دوروکې چې اساسي قوانین دکاغذ په مخ هسې بې اثره لیکني وې. داچې اول د پاچا امان الله او وروسته دمحمد ظاهرشاه قانوني پاچايي ګاني چې هلته قدرت دمځکینیو دورو پر خلاف تر زیاتې اندازې پورې ویشل شوي و،او دهغه له برکته فردي ازادي او مدني او قانوني ژوند په بې سابقې ډول حقیقي شوي و، چپه شوې او خلکو دهغو په چپه کېدو سره اوښکې ونه بهولې څرګندوي چې افغانان لینګ دولت ته په احترام قایل دي. په دغه حال کې عجیبه نه ده چې دقانوني پاچا یې په دوره کې په ګوند ونو کې تنظیم شوي (( روښانفکران)) په دې هڅه کې شول، چې دولتي قدرت ترلاسه کړي . دغه هڅه په اصل کې نا جایزه او دغندنې ورنده .کوم شي چې دغندنې وړدي هغه دهمدغو روښانفکرو له خوا دقدرت دترلاسه کولو طریقه، دهغې دعواقبو نه سنجول، او په اصل کې دهغوي بې مسولیته اعمال وو. داشاید له دې امله وي چې دوي په اصل کې (( روښانفکران)) نه وو. زه دلته غواړم له دې چې په دې باب و غړېږم غوارم په افغانستان کې دروښانفکرو په هکله یو څه ولیکم .

په افغانستان کې په ټولو دورو کې یو شمیر افراد دفکري مخکښانو په حیث موجود وو. دغسې افراد په ویدي دوره کې دریشیانو په نامه یادېدل. په اوستايي دوره کې زرتښت دهمدغې ډلې یو ډیر وتلې شخص و، دومره وتلي چې دهغه تعلیمات دپیړیو پیړیو په اوږدو کې دانانو دپاره په ژوندانه کې لاربنود شول. داسې هم په بودايي دوره کې بودالي راهبان په نظر کې و نیسي . په اسلامي دوره کې علما، مذهبي پیران، فیلسوفان، صوفیان، شاعران او تذکره لیکونکي په همدغه قطار کې راځي . تر هغه خایه چې ماته معلومه ده دا دشوروي اتحاد له انقلاب نه وروسته و، چې په افغانستان کې د((منورین)) کلمې رواج

ومونـــد. دغـــه کلمــــه دروســــي (intelligentsiya) کلمـــې ترجمــــه ده چـــې دنونسمي پېړۍ په منځ کې په روسیې کې هسکه شوه او لـه هغـي نـه مقصـد هغه وړه ډلـه روسـان وو چـې پـه اروپـا کـې یـې زده کـړه کـړې وه، دافراطـي فکرونــو خـاوندان شـوي اولـه تـزاري اتوکراسـي نـه بېګانـه شـوي وو. ددغـــې ډلې افــرادو دولتــي ماموریتونــه نــه کـول، او لـه ادبیـاتو او پـه خـاص ډول لـه فلسـفي او اجتمـاعي مسـایلو سـره یـې سـراوکار لاره. وروسـته پـه دغـې ډلـې کــې دلــور اجتمــاعي شــعور اشــراف هـــم ورننوتــــل. دوي اول دوګرو (Narodniks) او وروســته دمارکسســتانو دا عیـې پـه مـخ بېولـې.

ددوهـم جـهاني جنـګ نـه وروسـته چـې دافغانسـتان پولـې د لوېدیځیـانو پـه مـخ پـه پراخـه پیمانـه خلاصـي شـوې د روښانفکرکلمـه هـم دمنوریـن دکلمـي په عـوض تـر زیـاتې انـدازې مروجـه شـوه. عـلايم څرګنـدوي چـې دروښانفکـر کلمــه دانګریـزي د(intellectual) کلمـي ترجمـه وي کـه دغـه تـو جهـه سـمه وي هغـه یـو تحـول بنیـي. انـتي لیکچـول (intelleetual) دلفـظ لـه مخـې هغـه چاته ویـل کـېږي چـې لـه عقـل نـه کـاراخلي یعنـي هغـه څوک چـې معتقـد وي چـې ژونـد بـاید دعقـل پـه معیـارونو سـره و نـې نـه داحساسـاتو، جذبـاتو، عقـېدې او نـژاد پـه معیـارونو. ایـدورډ شـلز وایـي چـې انـتي لیکچـولان ((دروښانفکـر)) پـه هـرې ټولنـې کـې دهغـو کسـانو مجموعـه ده چـې پـه څپلـو مفـاهیمو او افـادو کـې دځپلـې ټولنـې تـر ډېرو غـړو نـه زیـات دانسـان، ټولنـي ،طبیعـت او کاینـاتو پـه بـاب دعمومــي سـکوپ (Scope) دپراخـو کلیـاتو، او مجـردو مفـاهیمو علامـې استعمالوي.)) دده پـه فکـر عقلانـي علایـق پـه الفـاظو، رنګونـو، بـنو یـا اوا زونـو کـې ددرک کولـو، تجربـه کولـو، اوافـاده کولـو لـه ضـرورت څخـه ولاړېـږي او دغـه ضـرورت دطبیعـي ،اجتمـاعي، فلسـفي، الهیـاتي، ادبیـاتو او هـنري اثـارو دتولیـد (تخلیـق) او اسـتهلاک (اسـتقبال) سـبب کـېږي. (۱) دغـه تعریـف زیـات اکـادمیک اوپـوره حـاوي دی خـود ((درک کولـو)) تجربـه کولـو او افـاده کولـو یـې څرګنـدوي چـې لـه هغـه نـه مـراد وچ عقـل او وچ منطـق نـه دی، تجربـه او مشـاهده هـم ده امـا پـه خپلـه عقـل یـو مبهم څیـز دي. عمومـاً ویـل کـېږي چـې عقـل دښو او بـدو تمیز کـول دي - داحکـم درسـت دی، خـو دا اخـلاق کیـږي او اخـلاق هـم بـاید عقلـي وي. عقـل تـردي ډېر حـاوي دی . عقـل هغـه قـوه یـا اسـتعدادی چـې هغـه اطلاعـات درک کـوي، تشـخیص کـوي او سـره یـو ډول او متحـد کـوي کـوم چـې حـواس یـې ورتهیـه کـوي. عقـل دانسـان لـه مدرکـاتو نـه مفـاهیم یـا

مجردات جوړوي او په دې ډول دانسان علم داحساس له سطح څخه چې له حیوان سره یې په ګډه لري، دمفهوم سطح ته لوړوي چې هغه ته پوازي دې وررسېدلي شي. (۲) انسان دغه مفاهیم او مجردات څنګه جوړوي او په هغه سره دخپلو کړو دپاره اساس برابروي، دادهغه ډېر غټ کار دی. انسان په دې باب تراوسه ډېر سلوکو نه تعقیب کړي چې په هغو کې یو یې عقلي سلوک دی خو ده دغه سلوک ته ډېره رجوع نه ده کړې او هغه یې ددېرو نورو سلوکونو تابع ګرځولي دي . دکارل پاپر په فکر له عقل نه هغه سلوک مراددی چې په هغه سره مسایل په عقل یعني رانه فکر او تجزیې ته په رجوع سره حل کېدل وي، نه په جذبې، هیجان اواحساس ته په رجوع سره،په دې حساب عقلي سلوک یوه مجموعه کېږي دعقل (Reasan)، مشاهدې (obserration) او تجزیې سلوک (empiricism) او په دغې پروسې کې یوازې دانسان دماغ او قضاوت کلیدي رول لوبوي. (۳) کله دغه فکر په بل ډول بیان شي ویه ویل شي چې فکري، روحي او عملي مسایل پوازې رانه فکر، مشاهدې، او تجزیې سلوک ته په رجوع سره حل کېدلي شي ،او دغه سلوک اساسا په رجوع کوونکي یاعامل پورې تعلق پیداکوي. له دینه مراد دعامل یعني انسان یا روښانفکر او صاف او کارمیتود کېږي.

دروښانفکر و داو صافو په باب دبحث کولو یوه خوا داده چې په روښانفکره ویلو سره یوکس اروموږ روښانفکرکېږي نه که څه هم هغه دلوړ تحصیل خاوند وي. تحصیل یې له شکه دیوه کس عقلي ملکاتو ته انکشاف ورکوي خو حتمي نه ده چې هغه به د عقلي معیارونو له مخې فکر او عمل وکړي. په همدې ډول یو چاچې دمثال په توګه په تاریخ کې دداکتري تصدیق ترلاسه کړ اوحتي په هغه کې دپوهاندي علمي درجې ته ورسېد حتمي نه ده چې هغه به مورخ هم وي. مورخ کېدال اوصاف غواړي لکه هسې چې روښانفکر کېدل اوصاف غواړي. نو حتمي ده چې کله چاته ادیب، مورخ، فیلسوف، هنرمن،استاد، مشاق،خرکار،جاله وان، حاکم، مولوي، پروفیسر،اوداسې نور وایو باید په دې وپوهېږو چې هغوی دهغو او صافو خاوندان دي کوم چې له دغو القابو سره تړلي دي .

دروښانفکر غټ خصوصیت دادی چې هغه دژوندانه مسایل یوازې رانه فکر، تجزي سلوک اومشاهدې ته په رجوع سره حل کول غواړي. دغه

مفاهیم مشخص کولو ته اړه لري، څوزه به دغلته دشومره ووایم چې کله چې دیوه چالاس پریکړ شو، هغه روغتون ته جراح ته ورځي، نه کوډګر، نه تعویذګر، نه ملا، نه صوفي، او نه پاچاته. هغه پخپله لیدلي یايي تجربه کړي اویاعلم وربنودلي چې دجرح علاج جراح کوي نه پاچا، نه پیر، نه امام. البته فکري، روحي اوسیاسي، او اجتماعي، مسایل تر پورتني مثال نه ډیر پیچلي دي ، خو یو روښانفکر ددغو مسایلو په حل کولو کې هم یوازي همدغه اصل ته رجوع کوي. دغه اصل ته درجوع بله معنی داکیږي چې یو روښانفکر بلواکي یادغسي چارواکي .(authority) نه مني، چې دهغه کلام به دکاني کرښي په شان وي. ددې معنی دانه ده چې یو څوک به دنوروپه افکارو ځان نه پوهوي. دنورو په ا فکسارو به ځان خبروي.هغو مره چې یو روښانفکردیرمعلومات ترلاسه کړي، په هما غه اندازه درانه فکر خاوند کیږي، او ددې قدرت پیداکوي چې نوي نظریات را و باسي. څولکه چې مورخ لارډاکتن وایي چې (( په دې کې خطر دي چې خپل فکرونه له نورو څخه واخلي. نه باید له نورو څخه معلومات ترلاسه کړي خو فکرونه، دتجاربو په شان، باید دتساوي)) ۴ دغسي سلوک البته هغه وخت ممکن کیدلي شي چې یو روښانفکر فکري خپلواکي او ازاد قضاوت ولري او عمل پري وکړي. نو خپلواکي او ازاد قضاوت د روښانفکر بل خصوصیت تشکیلوي، او هغه دآیین رینډ په الفاظو ((ددغه حقیقت پیژندنه ده چې دلتا مسئولیت دقضاوت مسئولیت دی، او هیڅ څیز له تاسره چې له هغه نه وتښتي مرسته نه شي کولي ... چې بل هیڅ څوک دتا دپاره فکر نه شي کولي، چې دځان بربادي او ځان سپکاوي تر ټولو ناوړی شکل دبل چا دماغ (mind) ته خپل دماغ تابع کول، په خپل مغز (brain) باندې دبل چاواک قبلول، دبل چا کلام دحقایقو په حیث. دبل چا وینا وي دحقیقت په حیث اودبل چا فرمانونه دخپل شعور او خپل ژوند تر منځ دمینځګري په حیث منل دي .)) ۵ په دې ډول د(( قضاوت مسئولیت )) یاپه جامع ډول اخلاقي مسئولیت دعقلي ژوند اخلاقیات کیږي. په بل عبارت په ژوند کې دې حکمران ارزښتونه عقلي ارزښتونه وي یعني غیر عقلي ارزښتونه دې دعقل تابع وګرزول شي، او ژوند دې په ټولو حالاتو کې په مسئولیت، زغم، خپلواکي، عدالت، سر لوري، ربښتین توب، او تولید ي روحیې سره وشي. دغسي سلوک البته زړه ورتیا او په ځان اعتماد غواړي . زړه ورتیا په دې

معني چې يو څوک په عمل کې ژوند اوحقيقت ته رښتينې اوسي. اوپه خان اعتماد په دې معني چې يو څوک په عمل کې خپل شعور ته رښتينې اوسي. ٦ که يو څوک زړه ورتيا ونه لري او که يوڅوک په خان ويسا نه وي او خپل شعور ته رښتينې نه اوسي دغير عقلي اوحتي ضد عقلي تمايلاتو تر تاثير لاندې خي، او حتي خرافاتي کيږي، لکه چې فيلسوف ديود هيوم وايي ((کمزورتيا ، ويره، ماليخوليا يي توب له جهالت سره په ګډه ... دخرافاتو رښتيناني منبع تشکيلوي .)) ٧

دروښانفکري په دې حساب روښانفکران هغوي کيږي چې مسايل بوازې په عقل ، مشاهدې او تجزيې سلوک سره دازاد قضاوت او انتقادي بحث اوڅيړنې په نتيجه کې په خپله يا له نوروسره په ګډه تشخيص او عملي کوي او په دې لارکې له رښتين توب، زړه ورتوب او په خان ويساتوب نه کار اخلي ، ربړونه او تاوانونه ګالي او ابن الوقتي او دوه مخي توب نه مني. په هکله له پورته عمومي بحث نه وروسته به دمعاصرافغانستان دروښانفکرو په هکله ووايم چې دوي هم دنورو هېوادونو دروښانفکرو په شان دبيلو بيلو ټولنيزو، ژبنيو، قومي او مذهبي ټولنو څخه راهيسک شوي وو، او په هغه برسيره يې دخپلو تحصيلاتو له امله راز رازکسبونه په مخ بېول. يوه ډله، يو واحدصنف، او خانګړي طبقه يې نه جوړوله، سره له دې چې دوي په يوه جبهه کې سره ګډ او يو وو، چې هغه فکري او ذهني جبهه وه. په واقع کې دوي دهمدغه فکري او ذهني خاصيت له امله سره نامتفق وو، او دفرديت روحيه هم پکې پياوړي وه. خو تر هغو چې ټولنه په امن کې وه، سياسي نظام په ځاي و، او ددوي د پاره د پرمختګ او دځان د افاده کولو او هسکولو توقع او امکانات موجود وو، دوي په داسي حال کې چې دعصري ژوند انه امکانات مخ په ډېريدو وو، د ګډ ژوند په روحيي سره ژوندکاوه، سره له دې چې په خپلوکي يي اختلافات لرل، اوله نظام نه شکايتونه. خوځنګه چې دپوهنې د پراختيا له امله ددوي شمېر ډېريده، دغه اختلافات هم شديد کيدل، په تېره وروسته له هغه چې بوشمېر يې په سياسي ګوندونوکي دتنظيميدو په وجه دبيلو او سره متضادو هڅونو، سلوکونو،اوکرنلاروخاوندان وګرزيدل او وفاداري يي هم وويشلي شوې .نو هيڅ هغه کوښښ به په ځاي ونه رسيږي چې دوي دکوم ځانګړي اجتماعي واحد غړي وګني او په يوه تنظيم کې يې سره غونډ کړي.

هغه کوښښ چې دوي د روښانفکرو په نامه یادوي باید له دوي نه د روښانفکري هغه صفات و غواړي چې پاس مې بیان کړل. اوس به وګورم چې ددی په خپلو قولونو او کړوکي دروښانفکري صفات ښوول، اوکه یې وښوول په ناقص ډول و ښوول، اوکه په پوره ډول.
محترم ډاکتر عبدالقیوم دافغانستان د روانو مسایلو په باب یو شمېرلاسي لیکني لري، چې په هغوکي یوه یې دمنورین په نامه ده. محترم ډاکتر عبدالقیوم د محترم ډاکتر علي احمد پوپل په شان دتعلیم اوتربیي متخصص دي. دواړه متقي اود عالي ایدیال خاوندان دي، او دواړو په شاهي دوره کې دمعارف د وزیرانو په حیث دمعارف او علم په پراختیا ا و دتعلیم کړو او منورینو په زیباتیدوکي ابتکاري نقشونه لوبولي دي. له دي امله ددوي نظریات دهمدغو موضوعاتو او په عمومي ډول دجامعي او هیواد په باب مهم دي. محترم ډاکتر عبدالقیوم منورین (( پر ارزش ترین ثروت جامعه)) بولي او وایي چې(( از هیچ قدرت دیگري جزمنورین سعادت و بختیاري میهن ساخته نیست. )) ښنګه چې ده خپله دغه لیکنه د۱۹۹٦کال په سرکې په پنځه ویشتو مخونو کې یعني په هغه وخت کې بشپړه کړې وه چې هیواد دسالم زعامت دنه لرلو په وجه دجنګ اوخطر په حال کې و ده په خپلې لیکنې کې زوره دمنورینو په عملي رول یعني هیوادنه دنجات په ورکولو باندي اچولي ده. دده تیوري داده چې دشوروي اتحاد دیرغل په وخت کې چې دشوروي تهدیداتو دغرب اوعرب دمشرانو اندامونه لړزول دهغوي په برابرکې دافغاني منورینو دچنه وهلو قوت (bargaining power) تردي حده پوري ډیرشوي وو، چې ددوی دپاره ددې امکان میسر شوي وو، چې دوي دهغو په مالي مرستې سره ترخپلې ډله ییزې مشري لاندې یو سیاسي او نظامي سازمان تأسیس کړي. خو دوي دهغه په خای (( طفیلي رول)) غوره کړ. لکه چې وایي هغو(( درطول جهاد وسال هاي بعدي آن به حیث معاونین، مشاورین، و ترجمانان تحت قیادت دیګران براي یک غایه موهومي اجرای وظیفه نمودند و دراجراي وظایف چنان روحیه اطاعت و فرمان برداري از خود نشان داند که احتمال وامکان رهبري وآمریت رابدست خود درهمه مراکز عالم.................... بکلي محو و نابود ساختند.)) دوی دده په فکر ددوو فرضیو له مخې عمل وکړ: یوه دا چې (( جزء شاه سابق کس دیګي نمیتواند ملک رانجات دهد.)) او بله داچي ((منورین باهستي فکر زعامت و ناجي شدن رابکلي از سردور اندازند.)) دي پخواني پاچا ته په احترام قایل دی، خو وایي چې هغه (( یک شخصیت محترم (صلح وسلم) میباشد نه یک لیدر جنګ وجدل.)) له دي امله د محترم ډاکتر عبدا لقیوم په قولمنورین((مفکوره تازه ازخود نیا فریدند، برنامه مشخص خلق ننمودند، ودر ساحه عمل ازخودهیچګونه زعامتي نشان ندادند و با هر سفر غیر مثمر خود به روم [ نزد شاه سابق] دنیایي بیروني را متیقن ساختند

که [ خودشان] جزء یک دسته منیجران مطیع وفرمانبرداري بیش نیستند.)) داچې دوی ولې دغسې وکړل دنظر خاوندان به په دې هکله خانله خوابونه ولري. دمحترم ډاکتر صاحب په همدغې لیکني کې هم ددغې پوښتنې خواب مینډ ل کیدلې شي، لکه چې وایي : (( سلطه وقدرت درهمه آن ممالک ( اسلامي) معکوساً متناسب بود به سویه علم و دانش.
( دراین ممالک ) منورین ... تحت قیادت و رهبري زوراور ان بیسواد ونیمه باسواد ایفاي وظیفه مینمودند ( زیرابقولی ) پشت منورین در هریکي ازان ممالک براي سواري نوابع (؟) بیسواد ساخته شده بود.)) په او سنې افغانستان کې دغه حال پوره صدق کاوه. دلته د قانوني پاچا یې په دوره کې په څه استثنی سره حاکمې کورنی غیر خانداني دولتي کارمنونه دمشر کیدو موقع نه ورکوله، او له هغوي سره یې دغسې سلوک کاوه چې دوی لکه دواکمنې کورنی مستخدمان او سي. محترم محمد نذیر سراج لا وایي چې (( وزرا واعضاي کابینه در نزد او ( محمد دا ودخان ) کارمندان کاغذ بیاروبیر هستند.)) ۸ په دې ډول نړدې ټول هغه منورین او بیوروکراتان په شمول دهغو چې یو وخت یې لوړ دولتي مقامونه لرل دغسې په خان ویسا او ولس ته منلي لوبان نه وو، چې هغه هم دبحران په حال کې سر والي وکولي شي، په تیره وروسته له هغه چې دوی دنظام په سقوط سره پتیمان او خارجي استخدام کوونکو او یا دولغیر عاملانو ته محتاج شول. بیا هم په کال ۱۹۸٦ کې محترم ډاکترعبد القیوم دمنورینو په ډله ییزي سروالي سره دیوه سیاسي او نظامي سازمان دجوړولو په منظوراو داینده احتمالي کورنی جنگ دمخنیوي دپاره دعربستان دمالي مرستي دجلبولو دپاره ددغه هیواد دباندنیو چارو د وزیر، ښاغلي فیصل موافقه ترلاسه کړه مګر په غالب احتمال د سی .ای .ای د مخالفت په وجه یې دغه پروجه شنده شوه په دې چې دډاکتر صاحب په قول (( من درپی نجات میهن خود بودم وانها درصدد خلقت یک ویتنام شوروي در افغانستان.)) برسیره پردې دمحمد هاشم میوند وال او موسي شفیق په وژل کیدو او دنورو ډیرو ملي اوقومي شخصیتونو دترور کیدو په سبب دافغانستان دغه راز منورین چې ممکن دسروالی درول په باب مهم نقشونه لوبولي وای وخپل شول. په دې ډول دغه دله منورین هم دخپلي ناتوانی، هم دنورو دتوطیو او هم دمرستی ورکوونکو خارجې هیوادونو دنه حمایې په وجه له لوړ سیاست او دسروالي له میدان نه محروم شول اومیدان ګرد سره اسلامي تنظیمونو او مسکوپالو چپیانو ته پاتې شو. ددغو تنظیمو نواوچپیانو ورانی، ناکامي او څیري څرګندې دي. دلته به زه دروښانفکري په اړوند په دوي باندې یو څه اضافه کړم. دتنظیمونو دسرکسان نږدې ټول په دیني علوموکې دلوړو تحصیلاتو خاوندان وو. څیني یې دپوهنتون استادان هم وو.دوی دپخوانیو اومعاصرو باندینو متفکرینو لکه ابوالحسن ندوي، ابوالعلا مودودي، سیدقطب، اوحسن البنا او نورو فکري مریدان او دهغو په لارو روان شول.

دوی له هغو څخه فکرونه واخیستل، او کوښښ یې وکړ چې هغه په هماغه اولي شکل په جاري پېښو باندي تطبیق کړي. په دغه کارکې دوی ناکام شول. دوي په دي ناکام شول چې دوی هم مقلدان وختل، اوهم دخارجي نفوذ منونکي، اوله دینه عاجز شول چې دزغم، مسئولیت، عاقبت اندیشي، همکاري اوډله ییزې سروالي په روحیې سره حکومت وکړي او دهغه په بهیر کې خپله سروالي تثبیت کړي. شاید دوی دجهاد په دوره کې له هغه نه چې وو، لوی پېژندل شوي وی. په همدغې دورې کې دوی شاید دفکر او عمل دخپلواکي روحیه له لاسه ورکړي وي . یا شاید دوی په اصل کې له دېنه عاجز وو چې سروالي وکولي شي. داچې دوی جنرالان نه وو، داخو شاید دوی په خپله هم و مني. هرڅه چې وو په سیاسي ډګرکې له دوی نه هیڅ یو سیاستمدار او ملي سروال نه شو. حتی دوی کوم هغه اخلاقي نفوذ چې دمخه لاره، هغه هم له لاسه ورکړ، داځکه چې دوی دوطن دنویو راهسکیدونکو پېښو په تشخیص او حل کې، دا منیت او دکابل ښار په محفوظ ساتلو کې، دوطن په یو موټي کولو کې ، دخلکو اود هغو دمال اوسراو ناموس په مصئون ساتلوکې، او دجنګ او وژنې په مخنیوي کې په مطلق ډول ناکام شول، سره له دي چې ولس دحکومت په کولوکې دوی ته پوره موقع ورکړه. په دوی کې برهان الدین رباني لاوطن او وطنوالو او حتي اسلام ته تردې حده نارښتیني وخوت چې که څه هم څه باندي دوه کاله کېږي په اصل کې دده نامشروع حکومت له مینځه وړل شوي، اوېخپله په وطن کې توخته نه شي کولي بیاهم دټول وطن دسروالي دعوه کوي، هغه هم دباندنیو په ملاتړ سره. په دوی کې هغوې چې اعتدالی وو، ترهغو چې دزغم منونکي نه وو، لږ ناکام شول. معتدلو لږ تر لږه دوطن په ورانولو کې تر زغم نه منونکونه لږاثر لرلی دي.

دمعادلي په بله خواکې په اصطلاح چپي روښانفکران وو، چې په هغوکې چې دمسکو په کرښې روان وو، یوې ډلې قدرت ونیو، اوبله یې په قدرت ورسوله شوه. په دواړو دو رونوکې ددواړو دو رونو په اخرکې په څه استثنی سره ددغو ډلو دسرکسان چې نن دې ټول یې دعصري تحصیلاتو خاوندان وو،کوښښ وکړ چې دخلکو په نامه دټولنې دېېړیو پیړیو روابط داروپایي متفکرینو لکه کارل مارکس، فریدک انګلز، ولادمیر لینن، اوجوسف ستالین دفکرونو له مخې په ممکنې چټکۍ سره واړوي بې له دي چې دخپلې ټولنې افغاني اواسلامي ارزښتونه په نظرکې ونیسي. دوی دخپلو فکري مرشدانو په ارشاداتو او نسخو باندي ټینګ ودرېدل، او نوریې مجبورول چې هم پرې وګروهېږي، او هم عمل پرې وکړي. ددوي په فکر ددوي د مرشدانو لاري سمې او نوري ټولي ناسمي وې، اودناسمو لارو وهونکي خلق زبېښي او دهغو دزیار په محصولاتو

طفيلي ژوند كوي . نودوى دغه رسالت په غاړه وا خيست چې زبېښناک ګري او زبېښناک ګر چې ددوي په فكر دبې عدالتي او بد بختي اصلي عاملان دي، له مينځه يوسي، په دغسې يوه نوي شوروي - دوله دولت سره چې دهغه په غوځوونكي قوت سره نه يوازې زبېښناک ګروخپې، بلكه دزړې تولنې اړيكې واړوي اويوه دغسې نوې تولنه يې په خاي و دروي چې هلته به دزبېښناک ګري او بيعدالتي ټول اشكال له مينځه تللي، او دنويو سالمو انسانانو نه به جوړه سالمه او عادله تولنه رامنځ ته شوې وي.

دغه فكر دغه چپيان په دغسې لارې باندي روان كړل، چې وهل يې دانسان دپاره ناممكن و. په نتيجه كې هم دوى اوهم ولس له سترو خطرونو سره مخامخ شول، چې ډيرلوى يې ملي پا څونونه، اوپه افغانستان باندې دجهان ددوهم ستر قدرت نظامي يرغل و، چې دهغو نتيجه له ۱۹۷۸ څخه تر اوسه پورې جنګونه، اعدامونه، مهاجرتونه، او ګډوډي ګاني شوي او ملي پيوستون دشړيدلوړئ ته وركش شو.

يو شمير نورو چپي ((روښانفكرو)) د((ملي ستم)) يا(( ملي تضاد)) مفكوره رواج كړه چې هغه په داسې حال كې چې دطبقاتي تضاد مفكوره نوره نه او ړيدله كېږي تر اوسه هم انعكاسات كوي، په تيره په يو شمير مهاجرينو كې. ددغو ((روښانفكر و)) په فكر په افغانستان كې دپښتو ن قوم (( حاكم مليت )) دى او دوطن نورقومونه (( محكوم مليتونه)) دي. پښتانه له راز راز امتيازونو څخه بهره من دي، اونورقومونه په ډول ډول محروميتونو كې دوب دي، لكه چې ددوي اساسنامه دغه موضوع ددوي ديوه رهبري كدر، ظهورالله ظهوري له قول نه په دغو عباراتو يادوي :

(( درافغانستان افزون برتضاد طبقات، تضاد ملي نيز وجود دارد. مليت برادر پشتون كه پس از احمد شاه ابدالي ۱۷۴۷م تاج و تخت كشور راتصاحب نموده است به ملت حاكم تبديل شده و صاحب امتيازاتي چند ګرديده، است : از پرداخت ماليه معاف است، خدمت عسكري انجام نميدهد، كرسي هاى بالاي دولتي را انحصاركرده بورس هاي خارجي راقبضه نموده، امكانات وسيع اقتصادي به شمول زمين هاي زراعتي، تسهيلات تجارتي و صنعتي رابه اختيار ګرفته است و غيره. بدين ترتيب مليت هاي غير پشتون كه از اين همه امتيازات محروم اند از دوستم رنج ميكشند : يكي ستم طبقاتي وديګري ستم ملي. بنابرين كانون

خیزش قیام هاي انقلابي به درجه اول مناطق ملیت هاي غیر حاکم میباشد که باید کار تهیج و سازماند هي مردم درانجا ها متمرکز شود.)) ۹

داڅنګه ((روښانفکران)) دي چې دغسې اساسنامه دخپلو فکرونو اوکړو دپاره اساس ګرزوي چې دهغې دهري جملې مفهوم ډېر نا واقعیت او لرې واقعیت دي، او په مجموع کې نوردي ټول متن دواقعیتونو پرخلاف دئ. عجیبه لاداده چې دغه ((روښانفکران)) بیادهغې په اساس د((ملي ستم)) او ((ملي تضاد)) په نامه دوطن قومونه دیوه قوم په مقابل کې ((انقلابي پاڅون)) ته هڅوي بې له دي چې پرواهم نه کوي چې ددي پروا وکړي چې دغسې فکر به دقومونو تر مینځ دښمنۍ ګاني او تکرونه تولید کړي او په پاي کې به هغه ملي پیوستون درزي کړي، کوم چې دپېړیو پېړیو دګډ ژوند محصول دی. دوی ددي پروا هم نه کوي چې قومي تحریکات دافغانستان بد نیتو ګاونډیوته موقع ورکوي چې هغه لاشدید او مخرب کړي.

دغه ((روښانفکران)) ددی قومي تحریکات په انسانانو کې رانده قوتونه په حرکت راولي چې په دغسي حال کې عقل او منطق کوچ کوي اوسوتي اوتوره دمشکلاتو حل ګرزوي. له دې امله وطن او وطنوالو ته ریښتیني افغانان باید قومي تحریکات په هیڅ وجه ونه زغمي. ډېرو هېوادونو قومي تحریکات او قومي نفرتونه غیر قانوني اعلام کړي دي.

((ستمي روښانفکران)) چې زیاتره یې دافغانستان دشمال شرقي له سیمو څخه دي دوطن په بېرته پاتي توب باندي او ښکې تویوي خو دوي دغه بېرته پاتې قوت دپښتنو د((حاکمیت)) په وجه بولي. دوي په دي سترګې پښتوي چې واکمنه کورنۍ یوازي دپښتنونه وه، بلکه هغه دټولو قومونو او دټول ملت حاکمه کورنۍ وه او دغې کورنۍ دافغانستان په نامتجانسه کثیرالقومي جامعه کې دثبات په ټینګښت کې اساسي رول لوبوه. دغه ستمیان په دي خبه دي چې سیمي یې بېرته پاتي دي، خو دوي په دي هم ستر ګې پټوي چې دافغانستان اطرافي سیمي په عمومي دول بېرته پاتي دي او ددوي سیمي دهیواد دډېرو خوا رو سیمو له جملې څخه دي او هغه زمونږ په عصرکې دیوه بل علت په سبب لاخو ارې شوي. په دغې پېړي کې اول دشوروي اتحاد او وروسته دنوي چین په هسکیدو سره ددغو سیمو عنعنوي تجارت هم دننه او هم له باندنیو ګاونډیو سیمو سره په ترتیب ضعیف او قطع شو. په خاص دول له ۱۹۴۷ څخه وروسته له

چترال سره دغــو ســيمو عنعنــوي تجــارت او روابــط دپښتــو نســتان دمســئالي پــه سر ضعيف شول. پخوا دغــه ســيمي دهمدغــو روابطــو او تجــارت پــه ســبب يــو څه معمــوري وي. يــا ممكــن دغــه ســتميان پــه دي اندېښنــه كــې هــم وو چــې دوى تــه پــه نظـام كــې دخپلــې خــوښي مقامونــه نــه رســېدل، نــو خپلــه ګته يــې پــه دي كې ليدلــه چــې ملــي موضوعاتوتــه ســيمه يــيز او قومــي رنــګ وركــړي، او خانونــه دخپلــو ســيمو ګتندويــان معرفــي كــړي. دوى پــه دي هــم ســتر ګي پټوي چــې پــه افغانســتان كــې ملــي پيوســتون تــر هغــو چــې پــه ګاونــډيو هيوادونــو كــې دي ډيــر لږينــګ دي. چــې دا او دغســي نــور موضوعــات پــه همدغــه الركــې دمحــترم ډاكــتر انــوار الحــق احــدي پــه ليكنــه كــې پــه مفصــل دول، او دمحــترم محمــد حســن ســهاک، محــترم ډاكــتر عبدالقيــوم كــوچــې اوزمـا پــه ليكنــو كــې خاي خاي تــر بحــث لانــد نيــول شــوي دي. كــه حقيقــت دستميانو پــه خــوا واي دوي بــه ديــوي ډلي پــه حيــث تراوســه هــم پــاتي واى .

ددغــو تولــو فكــري پخپــل ســر يــو، ګډوديــو، او تــېرو تنــو ســر چينــه شــايد زمــوږ كولتــور وى چــې هغــه غــير انتقــادي او غــير دموكراتيــک دي. پــه دغــه كولتــور كــې چــې معــا رف هــم غــير انتقــادي او غــير دموكراتيــک دي حتــي روښانفكران هــم پــه تــېره چــې انقلابــي او لــه خپــل ځان او خپلــي ايډيــالو جــې نــه راضــي وي ، جذمــي وي، كــه څه هــم عصــر ســنت مــاتوونكي وي. پــه جــد ميونــو او زعــم نــه منونكــو كــې تكــر ونــه عــادي وي، اوهــره خــوا پــه خپلــي ايډيــالوجي بــاندې چــې پــه نظــر يــې تولــه ســپېڅلي، يعنــي دنــه اړولــو وي، تــر پايــه ټينــګه وي .

ديوه محترم افغان په فكركه پخوانيي پاچا له اساسي قانون نه دفـاع كـړي واى، چې بـايد كـړي يـې واى، ځكـه چې پـه دې هكلـه يـې لـوره كـړې وه، شـايد هغـه ډېر شميراعتداليون چې دحكومت په چلولو كې په زغم، ائتلاف، تفاهم، همكاري او دموكراسي باندې ولاړ وو، له سياسي صحني څخه ايستل شوي نه واى يا پوره ايستل شوي نه واى لكـه چې په واقع كې وايستل شول او دهغو په وتلو سره ميـدان زغـم نـه منونكـو انقلابيـانو تـه خالي شو . د محمد داود خان مطلقي ناكامي بيادغه پروسه تكميله كړه. وروسـي پـه خـاصو ايډيالوجي ګانو باندې ولاړو ډلو، چې يو په بل پسي پـه اقتدار راغلـي، مخـالفي ډلي ونـه زغملي او هري ډلې دخپل اقتدار په دوره كې دخپلي ايډيالوجي له مخي پـه دغسـي غـتو كارونو پسې ملا وتړله چې په وس كې يې نه وه. په مشخص دول دوي پـه دې پسـي شـولي چې اجتماعي طبقات، حكومت، دولت، اوحتي جامعه له سـره واړوي، او خپلـه رقيبـه ډلـه وتكوي. نورو لاكوښښ وكړ چې دجامعي قومي تركيـب تـه هـم تغيير وركـړي. دوي تولـو

ددغي فرضيې په اساس عمل وکړ چي ددولتي قدرت له لاري انساني چاري په يوې ټاکلې طرح کې اچول کيدلي ، او ټولنه دهغې له مخي په مطلوب ډول له سره تنظيمېدلي شې نو زوره ددولت په خپلولو واچوله شوه. ډېرو ډلو دولت ونيو، او په دغه کار کې کامیابې شوې، خو دټا کلي طرح له مخي دجامعي په ا ړولو کې ټولې ناکامي شوې، داځکه چې دټاکلې طرح له مخي ژوندي انساني چاري سمول دامعني لري چې انسان به د وريځو يا اقليم په شان يعني په ميخانيک ډول عمل کوي. اما انسان شعور او عقل لري، او په هره شبهه کې چې وغواړي خپل فکر او خپل عمل ته تغيير ورکوي. په همدي سبب په انساني چاروکې ميخانيکي منظم ټوب او حتمي ټوب نه شته. نامتوقعي او ناڅاپي حيرانوونکي پېښې ورسره وي، او دمنظمو دورونو، طرحو، او سيستمو نو مفکوره اساس نه لري. په دي حال کې دعملي مصلحانو دپاره دبريالي کيدو چانس په دې کې ښکاري چې دخپلې خا صې ټولني او دخلکو تاريخ، کولتوراو په خاص ډول ديناميکي ژوندي چاري او انکشافات له نظرنه و نه غورځوي او دخلکو غوښتنې او دهغو دزغم او حوصلي حد په پام کې ونيسي. داددې دپاره چې انسان په اصل کې خپل خان غواړي او هغه څيز غوره بولي چې خپله ورته منسوب وي.فيلسوف ديوډهيوم وايي چې((هرڅه چې ده خان - مينه ده - ستاله ماشومانو سره مينه کيږي، په دي چې هغوي دتا دي. ستاملکري هم دهمدغه دليل له مخي. او ستاهيواد تا جلبوي يوازې تر هغه ځايه چې هغه په خپله دتاسره ارتباط لري. که دخان فکر له مينخه يوړل شو، هيڅ څيز به په تاباندي اثر ونه کړي. ته به په ټوله معني غير فعال او بې علاقې شي)) (١٠) نو انسانان نه داچې ملايک نه دي، دکلمې په دقيقه معنې حتي انسانان هم نه دي، باپوره انسانان نه دي . دانسان کلمه دانس او الفت لرونکې موجود دپا ره ده. په دي ډول دغه کلمه دانسان ټول خواص نه افاده کوي، اويوه اړخيزه او تيراستونکې ده. انسانانو په تاريخ کې دانساني کارونو تر څنګه ځناوري کارونه هم کړي دي .کله کله يې داسي کارونه هم کړي، چې حتي ځناورو نه دي کړي. سوزن سمت خپل دوه ګلالي ماشومان په ډنډکي غرق کړل، په دي هيله چې خپل لال له لاسه ورنکړي. ماته نده معلومه چې کوم ځناور مثلا پړانګ به خپل بچيان دشخصي مقصد لپاره قرباني کړي وي. دغه پيښه افراطي ده خو دعمومي طرحي پر ضد نه ده، او هغه داچې دانسانانو تاريخ زياتره دانسان وژني تاريخ دي، او په انسان وژنه کې شخصي سايق لوي سايق دي. وګوري زمونږ روښانفکرو په تيرو شلو کلونو کې دقدرت ګټلو ياد قدرت ساتلو په لاره کې څومره رقيب روښانفکران له مينځه يو وړل، او څومره نور په زرګونو انسانان يې دمرګ خولې ته ورکړل. هغوي چې تر نورو زيات انقلابي روښانفکران وو، تر نورو ډير وطنوالان له مينځه يووړل. دوي دغه انسان وژني په ظاهره کې دخلکو، انقلاب او اسلام په نومونو وکړې، خو ددوي دغه ادعاګاني داعتبار ورندي، په دي چې دوي قدرت دخپلو ځانونو دپاره خپلو ،

او په دغې لارکې يې خپل مخالفان که څه هم عمري انديوالان به يې وو، له مينځه وړ. دوی په دغسې سلوک سره نه داچې هيواد وړاندې بونه ته بلکه دهغه دعادي پرمختګ مخه هم ونيوله. دجنګونو په کولو، دخلکو په وژلو او مهاجرکولو سره يې دوطن خلک کم کړل، افغانستان يې بېرته وغورځوه اوضعيف کړ، او ځانونه يې يا مرګ‌ته ورکړل يا له وطن نه پرار کړل. په دغې پېړۍ کې دادوهم ځل دي چې انقلابي روښانفکران ناکامېږي لکه اول ځل چې دپاچا امان الله په وخت کې نا کام شوي وو. افغانان لکه چې نه غواړي له تاريخ نه زده کړه وکړي.

دانقلابي ګوندونو اوتنظيمونو ناکامي يوځل بيا څو ځيزونه په ډاګه کړل: يوداچې دايډيالو جې په اساس سياست کول يعني نوي راهسکيدونکې او مخ په انکشاف انساني چارې په پخوانيو قالبونوکي اچول او دهغو پراساس عمل کول مطلوبه نتيجه نه ورکوي، اوکړ کيچ پيداکوي. بله داچې په افغانانو کې دهغو تنظيمونو او ګوندونو عمر لنډ وي چې په ضيق او متمرکز ډول تنظيم کيږي، داسې چې قدرت پاسنيوته منحصر شي، او وروستنی بې واکه شي، يعني فرديت نفي شي افغانان دخپلو تاريخي او کولتوري ارزښتونو له مخې ازادي غوښتونکي او فرديت غوښتونکي راهسکيږي. داسې هم هغه تنظيمونه اوګوندونه ښه پاي نه لري کوم چې په باند نيو تکيه وکړي او دخپل ولس يعني تولنيزه اراده او عقل کم وګڼي.

-٢-

افغانانو په دغې پيړي کې دنړي ديوه ستر قدرت نظامي يرغل په دفع کولو کې هغسې دافتخار وړ ميرانه او لوی اتفاق وښود، لکه چې په تيرې پيړۍ کې يې دوخت دستر طاقت دپوځ په مقابل کې دوه ځلې ښودلي وو. په دواړو مهالونو کې دافغانستان او، افغانانو نومونه دنړۍ په هر ګوټ کې درانده وګڼل شول خو قدرت غوښتونکو ((روښانفکرو)) دغه نومونه په مځکه ووهل. دخواشيني ځاي لادادي چې خيني دقلم خاوند ((روښانفکران)) هم دهغو په پلو روان شول، په داسي حال کې چې دافغان ولس له دوی نه هيله کوله چې دلوی اتفاق دلا پساوړي کولو، دوران شوي افغانستان دبياودانولو اواينده چلنجونو ته دخواب ورکولو په مقصد تعميري فکرونه وړاندې کړي، او خپل رسالت اومسئوليت سرته ورسوي. برعکس دوي دنفاق او ملي ضد خپرونې وکړي. زموږ دغه اثر ددغو ((روښانفکرو)) دملي ضد ليکنو په ځواب کې

دي. داسې هم مونږ دلته په اړونده ملي،سياسي ، تاريخي، او کولتوري موضوعات څېړلي، او داينده دپاره مو خپنې فکرونه وړاندې کړي دي.
لو مړی لیکنه دنفوسو په هکله دمحترم محمد حسن سهاک ده. په دغې ليکنې کې دی دنفوسو تاریخچه بیانوي، او موجود شمیرې هم په عمومي دول اوهم د قومونو اوولایاتو په تفکیک سره شرح کوي. داسې هم محترم سهاک دخپنو داخلي اوخارجي مولفانو په هغو ليکنو انتقادي بحثونه کوي چې دافغانستان دنفوسو په باب يې کړي دي. دافغانستان دنفوسو په هکله دالومړنۍ منسجمه، اودقیقه لیکنه ده چې مالوستلي ده.
دپښتون، افغان اوپټان په نامه دمحترم محمد معصوم هوتک ليکنه دپښتنو په باب یو بحث دي چې په کلاسیکو اثارو کې دافغانستان اصلي اوسيدونکي کڼل شوي دي. په دغې ليکنې کې په هغو ليکنو باندې انتقادي بحث شوي چې په هغو کې دپښتنو دخپنو پښواوخپلونو په باب ناسم فکرونه وړاندې شوي دي. دپښتو اصل او رېښه چې دمحترم پوهاند ډاکتر حبيب الله تږي لیکنه ده دپښتو ژبې داصل اوريښې په هکله دکلاسیکو مستشر قانواو ژبپوهانو د نظریاتو یوه لنډه مجموعه ده، په دغې مجموعې کې داروپایې پوهانو هغه نظر يات راغوند شوي چې داول ځل دپاره اظهار شوي دي. پوهاند تږي دغه نظريات په تاریخي تسلسل سره ذکر کړي، او په پاي کې يې دهغو له مخې خپل تحلیل هم وړاندې کړي دي. بله لیکنه زما ده په نامه دبنا غلي بابي زرتښت اوستا او په اوستايي دوره کې دپښتنو ځرک. ماپه دغې ليکنې کې دزرتښت او اوستاد مطالعې په ترڅ کې په اوستايي دوره کې دپښتنو دشته والي په باب رڼا اچولې ده. زما دليکنې دغه برخه د دوو يادو شويو ليکنو مو ليده اومکمله کيدلی شي. وروسته زما بله ليکنه دقايد ميرويس هوتک اوخپلواکۍ په نامه ده. په دغې ليکنې کې مې ښوولي چې ميرويس څنګه دښتو مشکلاتو سره په تدبير، زړه ورتيا اوخپل ولس ته درښتين توب په قوت قومونه دهغوي دمشرانو په ذريعه دخپلواکۍ کټلودپاره په غورځنګ راوستل ترڅو يې دهغو په فعالي مرستې او په خپلې جنرالې سره دخپلو اکۍ غاصبان له کندهارنه وشړل، او دراتلو نکو دپاره دپوره خپلواکۍ کټلو سر مشق وګرځيده. په بلې ليکنې کې ما دثور انقلاب يا دثور کودتا؟ تر عنوان لاندې يو لنډ بحث کړي او ښکې مې ښوولي چې هغه يوه غير متوقعه نظامي کودتا وه. په همدغه لړکې زما بله ليکنه د

است. جالب است که همین متصدی ارشیف افغانستان در پوهنتون بوخوم در باره ترکیب قومی کشور مطلبی مینویسد ولی کتاب شهور Grappen-Afghan-DIE-Ethnichen نخوانده است ، با آنکه این کتاب بزبان المانی نوشته شده نه بزبان پشتو این کتاب درهمین مورد بمقایسه اکثر منابع مطالب مفصلی در بر دارد . ذیلاً تخمینات.مندرج این کتا ب بشکل توحیدی آن ذکر میگردد . ۳۰

| منابع | پشتون | تاجک | هزاره | ازبک | ترکمن | ایماق | بلوچ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| M.Kinbur | ۷۰۰۰۰۰۰ | ۲۵۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۱۲۰۰۰۰۰ | ۴۰۰۰۰۰ | ۷۰۰۰۰ | - |
| M.Aslanov | ۶۰۰۰۰۰۰ | ۳۳۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۱۲۰۰۰۰۰ | ۴۰۰۰۰۰ | - | - |
| Krave song | ۷۰۰۰۰۰۰ | ۲ تا ۳ ملیون | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۲ تا ۴ صد هزار | ۲۰۰۰۰۰ | - |
| L.duprec | ۶۵۰۰۰۰۰ | ۳۵۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۸۷۰۰۰۰ | ۱۲۵۰۰۰ | ۸۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰ |
| A.Janoata | ۲۸۰۰۰۰۰ بدون مهاجرین | ۳۶۰۰۰۰۰ | ۱۲۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۰۰۰۰ | ۴۰۰۰۰۰ | ۵۰۰۰۰۰ | - |
| Janatasch | ۶۶۰۰۰۰۰ | ۲۵۰۰۰۰۰ | ۱۱۰۰۰۰۰ | ۱۱۲۰۰۰۰ | ۳۰۰۰۰۰ | - | - |
| Weekes | ۶۲۱۴۰۰۰ | ۳۴۶۰۰۰۰ | ۹۳۲۰۰۰ | ۱۳۳۰۰۰۰ | ۳۹۹۰۰۰ | ۸۲۹۰۰۰ | ۲۰۷۰۰۰ |

اینکه در پایان کلام میخواهم بعضی از مطالب عمده آن را طور خلص ذکرنمایم . یکی ازموانع اساسی درپلان گذاری اقتصاد ملی، ارزیابی های پروژه های اقتصادی وتوزیع خدمات اجتماعی فقدان یک سیستم موثر احصائیوی بود. اگر چه طرح وتطبیق یک روش منظم طرح رشد وانکشاف اغاز گردید ، ولی طی ربع یک قرن درقسمت نفوس اقدامات مهم صورت نگرفت . از طرفی تثبیت نفوس از طریق اجرای سرشماری کامل نفوس بلحاظ مالی وفنی دشوار بود - یک مشکل این است که در دل کوه های صعب المرور هزاران ابادی منزوی وجود دارد، که دستیابی باآنها صرف نظر از جنبه مالی طاقت فرسا است . مشکل دیگر شمارش کوچی ها است که تقریباً دایم در حال حرکت میباشند وشمارش شان وقت و مصارف زیاد را ایجاد میکند. بهمین دلیل هم سروی دموگرافیکی سال ۱۹۷۲ اداره احصائیه مرکزی نفوس کوچی ها را در بر نگرفت . در سر شماری سال ۱۹۷۸ هم این معضله با مسایل حساس دیگر از قبیل شمارش زن ها در بعضی نقاط کشور طور جدی محسوس بود. باآنهم در دهه ۱۹۷۰ درزمینه اقدامات جدی صورت گرفت

ودر این اقدامات بعضی موسسات بین المللی همکاری نمودند . در اثر آن اداره مرکزی احصائیه عمدتاً بمعاونت تخنیکی ومالی اداره نفوس موسسه ملل متحد اولین پروگرام وسیعی را در جهت جمع آوری ارقام در مورد اندازه ترکیب نفوس از لحاظ سن ، جنس ، قومیت ، زبان و سایر مشخصات اجتماعی و اقتصادی نفوس روی ودست گرفت ودر مرحلهٔ مقدماتی آن یک تصویر نسبتاً واقعی از اندازه نفوس ، توزیع جغرافیایی و ترکیب آن بر اساس سن وجنس بوجود آمد ، اما کودتا ی ثور موجب ناکامی این پروژه گردید، بطور یکه اداره مرکزی احصائیه دیگر نتوانست قرار پلان ارقام ومعلومات احصائیوی در مورد مشخصات دموگرافیکی، اقتصادی واجتماعی نفوس جمع نماید .

در قسمت ترکیب قومی نفوس مونت ستوارت الفنستون اولین مولفی است که در باره آن بحث کرده. بعد از سقوط امپراتوری درانی وانعقاد معاهده ظالمانه دیورند هم نفوس افغانستان کم شد ، وهم در ترکیب قومی آن تغییر وارد شد . مهاجرت ها از انطرف دریای آمو در ترکیب قومی نفوس هم تغییر قابل ملا حظه ی بوجود اورد و تعداد تاجک ها وازبک ها را در مجموع نفوس کشور محسوس تر نمود . باوجود تمام این تغییرات بحث روی موضوعات قومی نزد افغان ها تادهه ۱۹۷۰ مهم نبود . تنها عده ای معدودی از مولفان افغانی به این موضوع تماس گرفته اند ، ولی نوشته های شان در اصل برای معرفی افغانستان وآنهم بزبان انگلیسی بود ، مثل اثار عبدالرحمن پژواک و پروفیسر محمد علی ، سابق استاد پو هنتون .ازجمله محققا ن خارجی خارج مارکنسترن ، وارتن گریگوریان ولویی دوپری با ین مو ضوع علاقه نشان دادند ، گریگوریان ، وهمچنان ارنلد فلیچر ، مولف کتاب افغانستان ، شاهراه فتوحات ، فیصدی پشتون ها را در مجموع نفوس کشور ۵۵ نشان داده اند.اما درحلقات چپی کشور تنها ارقامی که طرف علاقمندی خود شان بود ، بازار پیداکرد. رساله ی بنام نظام اقتصادی واجتماعی افغانستان بقلم ا پلیاک ازجمله همین اثار تبلیغی بود که در دهه های ۱۹۶۰ و۱۹۷۰ بر قضاوت محافل چپی تاثیرات نافذی وارد نمود . میر غلام محمد غبار بر اساس ان فیصدی پشتون ها را در مجموع نفوس کشور کمتر از رقم واقعی ان نشان داد . به تعقیب او میر محمد صدیق فرهنگ این موضوع رادر کتاب خود آب وتاب داد. بعد از کودتای ثور این موضوع

ابعاد جدیدی کسب نمود. دراین دوره ازیک طرف حکومت پرچمی به پشتیبانی روس ها برای سرکوب نمودن مقاومت ازفکتورهای قومی استفاده مینمود وهم ازطرف آن و هم از جانب حلقات ستمی در تنظیم های جهاد ی درحق متصدیان سابق کشور دشنام دادن شدید شد. آنها نه تنها برای برحق جلوه دادن خط های فکری خود معایب سیستم سابق رابرجسته مینمودند بلکه بااینموضوع واضحاً جنبه قومی هم میدادند وپشتون ها را ((مسئول بدبختی مردم میدانستند.)) یکی از پیشقدمان این حرکت میر محمد صدیق فرهنگ بود ، که برای گرم نگهداشتن معرکه پهلوی مطالب غرض آلودخود ، ارقام وحجت های جمعیتی رابرخ پشتون ها کشید. وی باین فکر غلط بود که پشتون ها بلحاظ عدد هم در موقعیتی نیستند که ما عناصر فرهنگی ، موسسات قومی وهویت آن ها را در تشکیل ملت واحد مهم بشماریم. اوهچنان مخالفت خودرا با زبان پشتو و رسمی شدن آن اعلام کرد. این نظریات واستناجات فرهنگ بخصوص از طرف ستمی ها وفیدرالست ها با علاقمندی خاص استقبال شد و انها از ان ها در راه ارمان های تجزیه طلب خود که از طرف قدرت های خارجی بخصوص ایران تحریک وحمایه میشود، استفاده میکردند. آنها دراین راه تا حدی پیش رفتند که ارقام را بنام ((احصائیه جدید)) که غالباُ ساخت خود شان بود ، ازجیب های خود بیرون نمودند . امروز طرح مضر دولت فید رالی درکشور ما در نوشته های شان مقام خاصی دارد اما طوریکه دراین اوراق دیده شد استنباطات ونظریات شان درین مورد درست بوده نمیتواند ومهمتر انکه در این اواخر واقعیت های کشورانها را باطل ثابت نمود .

## منابع


۱ – میری کلفورد، کشورومردم افغانستان، نشرکرده ، لین کوت، فلادلفیا، ۱۹۲۳، ۴۱

۲ – نویسندگان ومؤرخان اسلامی قبایل مغول راپیش وپس چنگیز خان در اوایل قرن سیزدهم عیسوی بنام تاتار یا دمیکردند . بعضاً این کلمه برای مغل ها وتاتار برده میشود .

۳ – فیض محمد کاتب ، سراج التواریخ ، جلد اول ، مطبعه کابل ۱۳۳۱ هجری قمری ، ۲

۴- محمد حسن کاکر ، حکومت وجامعه افغانستان ، دوره سلطنت امیر عبد الرحمن خان ، ۱۸۸۰ - ۱۹۰۱ نشر کرده پوهنتون دولتی تکساس در استین ، ۱۹۷۹ ، ۱۴۲ – ۱۴۵

۵ – دیود سی، مونت گمری ، ((ازبک ها در دو دولت )) درکتاب سرحدات قومی شوروی اسیایی ، تدوین کننده ویلیم کارگی ، نیویارک ، ۱۹۷۹ ، ٦٠

٦ – محمد جان شکوری ، عضو فرهنگستان تاجکستان ، جریده کیهان ، لندن ، ۱۹۹۴

۷ – سراج التواریخ ، جلد اول ، ۱۵۲

۸ – اید ورد آل ورت ، اسیای میانه ، ۱۲۰ سال حاکمیت روس ، نشر کرده پوهنتون د یوک ، ۱۹۸۹ ، ۹۳ – ۱۰۳

۹ – دایره المعارف بریتانیکا، کتاب سال ۱۹۹۷

۱۰ – نجیب مایل هروی ، تاریخ و زبان در افغانستان ، از انشارات بنیاد موقوفات افشار ،

۱۱ – جریده امید ، شماره ۲۴۷ ، ۳

۱۲ – دوکتور شادمان ، در مقاله تحت عنوان ( انتحار بر لب گور ) فارسی را زبان مقدس خوانده است .

۱۳ – کانستل بوتول ، اضافه جمعیت ، مترجم حسن پویان ، انشارات چاپ بخش ، ۱۳۷۰ ، ۱٦۴

۱۴ – در باره بیان مفصل کوچی گری ومساله اسکان در قرن نزدهم در افغانستان مراجعه شود به کتاب حکومت وجامعه در افغانستان، اثر یاد شده ، ۱۲۳ ، ۱۳۵

۱۵ – عبد الصمد حقجو ، ابزار تداوم وسلطه پشتون ها ، از انتشارات حوزه علمیه قم ، ۱۹۷۱ ، ۱

۱٦ – ایضاً ، ٦

۱۷ – ایضاً ، ۴

۱۸ – ایضاً ، ۱۰

۱۹ – جریده کیهان ، لندن ، ژوین ۱۹۹۷ ، شماره ٦٦۱ ، ۴

۲۰ – ایضاً

۲۱ – فصل ازادی گزارش مفصل از اولین سفر هیات بلند رتبه جنبش ملی اسلامی افغانستان به جمهوری اسلامی ایران ، نشر کرده ستاد استقبال ازهیات ، خزان ۱۳۷۱

۲۲ – مقدمه طرح قانون اساسی جمهوری فیدرالی افغانستان ، از انتشارات حوزه علمیه قم ، ۱۳۷۱

۲۳ – ایضاً ، ۲۵

۲۴ – حسین علی حاج کاظم یزدانی ، پژوهشی در تاریخ هزاره ، چاپخانه شهد قم ، ۱۳۷۲

۲۵ محمد حسن کاکر ، افغانستان مطالعه انکشافات سیاسي ، ، ۱۸۸۰ – ۱۸۹۶ ، چاپخانه عرفانی پنجاب ، ۱۹۷۱ ، ۱۶۰

۲۶ – یزدانی ، اثر یاد شده ، ۱۴۳

۲۷ – مناطق مرکزی افغانستان بلحاظ ساختمان جغرافیایی وخصوصیات فزیکی شش ولایت ذیل رادر بر میگیرد : بامیان ، ارزگان ، غور ، غزنی ، پروان و وردگ .مشخصات عمده آن عبارت است ازشرائط ناگوار، توپوگرافی ،کوهستانی بودن، عقب ماندگی اقتصادی وپراگندگی نفوس. این منطقه ۱۳۹هزارکیلو متروسیع بوده ودرسال ۱۳۵۸ درآن درحدود ۲،۶ ملیون مردم زندگی میکردند. پشتون ، هزاره ، تاجک وایماق گروپ های عمده قومی این منطقه میباشند .

۲۸ – در مورد تلفات جنگ افغان شوروی بلند ترین تخمین از داکتر صدیق نورزوي بوده که به ۱ ، ۷ ملیون میرسد. رجوع شود به مقاله داکتر نورزوی بنام ((مشاهدات ، ارزیابی، مسایل نفوس افغانستان)) مجله نویسندگان افغانستان ازاد ( وفا ) ، شماره ۳ ، ۱۹۸۸ ، ٦ – ۱۴

۲۹ – باساس تخمین ماریک سلی ونسکی پشتون ها ۸۴ در صد مهاجرین رادر پاکستان و ۴۰ در صد مهاجرین در ایران را تشکیل میدادند . رجوع شود به رساله موصوف بنام افغانستان، بربادی نفوس مجله اور بس (ORBIS) ۱۹۸۹، ۳۹ – ۵٦ .

30.Erwin Orywal, Die Ethnischen Grappen Afghanistans Wiesbaden, 1986, Dr. Ludwig Reichert Verlag.



# پښتون، افغان، پټان

محمد معصوم هوتک

د نړۍ د اولسونو په ټولي کې پښتون ډېر لرغوني قوم دی او د زماني ډېري سړې او تودې پر راغلې دي ، د سترو يرغلګرو تاړاکونه يې ليدلي او مقابلې يې ورسره کړي دي او تر ډېرو سختو ازموينتونو سرلوړی او بريالي راوتلی دی. له تيرو څه کم شلو کلو راهيسې بيا دا قوم له يوه بنيادي ازموينت سره مخامخ دی چې لاتر اوسه هم پکښې ولاړ دي . دښمنانو يې د تاريخ ، ژبې او هويت د پايمالولو له پاره ناکام تلاښونه پيل کړي دي. زما د ليکنې موضوع ددغه قوم د پېژندنې په باب لنډې خبرې دي.

له څلورمې هجري پېړۍ راوروسته مورخينو د پښتنو بيان په څرګند ډول کړی چې تفصيل به يې وروسته راسي خو تر ميلاد تقريباً يوزر و پنځه سوه کاله مخکې موږ د هندي آريانو په ويدي سرودونو کې دپکهت پر نامه پيښيږو چې د زياترو خنيځ پوهانو په نظر پکهت د پښت معادله کلمه ده او زياتره افغاني پوهان د پښتون نوم هم له دې کلمې څخه راوتلی ګڼي.

مشهور يوناني مورخ هيرودتس ( ۴۸۴ ق م ) د هخامنشيانو د بحث په ترځ کې د شاوخوا سيمې د اوسيدونکو په باب بيان لري ، د هغو د مشرانو نومونه راوړي او د کرو وړو په باره کې يې ږغيږي . نوموړي ليکي چې آرينان ( Arians ) د ميديانو ( Medes ) په شان غشي لري خو نور وسايل يې باختريانو ( Bactrians ) ته ورته دي. د ګندهاريانو جامې هم د باختريانو په شان دي ۱۰ په دې لړ کې د پکتيس ( Pactyes) يادونه هم کوي او ليکي چې پکتيس واسکټونه

( cloaks ) . ۲ اغوندي اومحلي ليندی او نيزې له خانو سره ګرزوي ۳ بل ځای د کوچيانو بيان راوړي چې دی ورته sagartians وايي او ليکي چې ددوی ژبه پارسيانو ته ورته د ه خو وسايل يې تر پارسيانو پکتيسانو ته نژدې دی ، اته زره اسونه لري . ۴

---

۶ دا ليکنه زما د هغې خبرنې لنډيزدی چې په ډيوه مجله کې په اقساطوخپره شوې ده.

د هیرودتس ( Herodots ) پکتیان د ټولـــو مورخینـــو پـــه اتفـــاق همدغـه ننـي پښتانـه دي ( د تفصیـل لـه پـاره اسـلامي دایـرة المعـارف – لومـړی ټوک د افغـان بحـث وګوري ) د پښتنـــو اصلـــي ټاټوبـــی یـــوه پراخـــه ســیمه وه چـې د ننـي افغانسـتان زیـاتره برخـې او د پاکسـتان شـمال شـرقي خـواوي پکـښې شـاملي وې. ددې پراخــې اورشـــو پخوانـــی نـــوم روه و. د تـــاریخ فرشته د بیان لـه مخـې روه هغـه سـیمو تـه ویـل کیـده چـې لـه سـوات څخـه دسیوی تـر ښاره اولـه حسـن ابـدال څخـه ترکـابل او کندهـاره پـورې غزیدلـې وې. ریـاض المحبـت د روه پـولي لـه ایلمـن یـاننبی هیلمنـد څخـه ترنشـقار، لـه براهـوي بلـوچسـتان څخـه ترکشـمیر پـورې ښودلي دي. پـه دې ډول پـه روه کـي د اصلـي افغانسـتان ټولي سـیمي شـاملي وې. ۵ لـــه تـــاریخي اســنادو څخـه داسې ښکاري چې پښتانـه د اسـلام پـه اوایلـو کـې لـه بـادغیس او هراتـه نیولې بیـا د غـور ترغـرو پـورې اودغـه راز پـه زابلسـتان، ګندهـارا او د ختیـځې پښتونخـوا پـه غزنیـو سـیمو کـې میشـته وو او هغـه د خوشـحال خـان خـټک خبره چې (( سر یې هـورې کندهـار لـم یـې دمغـار کـې و)) پـه پښتـو کلاسـیک ادب کـې د روه یادونـه زیاتـه شـوې ده.

اشرف خان هجري وایي:

قاصدان له روهه نه راځي مدت شو

سلام باد رارسوي منت یې تم دی

کاظم شیدا وایي:

په هندي ادا یې وکړې په ما چارې

زه شیدا په زړه ساده دروه افغان یم

پښتانـه پـه مجمـوع کـې نـورو اقوامـو د افغـان پـه نامـه بللـي دي. دوی خپـل خانونـه پښتانـه اوخپلـه ژبـه پښتـو بـولي. ددې کلمـې پـه بـاب پوهـانو بیلابیـل نظرونـه ورکـړي دي:خینودمهاباراتـه اسـواکا ( Asvaka) تـه نـژدې بللـې ده. اسـواکا د ګندهـارا سـیمې تـه منسوبه کلمـه ده چـې د اس د سـپرلیو معنـا ورکـوي. خینـو دسانسـکریټ لـه اسـواغانه څخـه راپیـدا سـوی کلمـه ګڼلې ده چې معنـا یـې د سـورلیو ټاټوبـی ( سـرزمین سـواران ) دی. پـه دی ډول وینـو چـې افغـان هـم د خلکونـوم او هـم د سـیمې نـوم دی. ٦ داسې نظر هم شته چې اغوان پـه ارمني ژبـه کـې د غـرو اوسیدنکو تـه ویـل کیـده او دا نـوم پښتنـو تـه د ارمنـی ګاوندیـانو لخـوا ورکـړل شـویدی. ۷ البتـه

په ارمني ژبه اغوان د غرو اوسيدونکو ته وايي خو دا چې دا نوم دې په خاص ډول د افغانانو له پاره استعمال شوى وى . نوره څېړنه غواړي .
په اسلامي عصرکې به حدودالعالم بنايي لومړنى کتاب وي چې د افغان نوم يې ياد کړى دى ( ۳۷۲ ق). د ارواښاد علامه حبيبي په قول د حدودالعالم مولف په هغه خاى کې چې د پښتونخوا ښارونه لکه ګرديز ، لغمان او نور ذکرکوي په سول او بنيهار نومو خايو کې د افغانانو استوګنه ښيي او داسي ښکاري چې پښتانه په ښارو کې هم اوسيده او مشهور وو . ۸ تر دې يادونې وروسته نو د علامه ابوريحان البيروني په ګدون د غزنوي دورې د څينو ليکوالو او شاعرانو په اثارو کې د افغان او افغانانو بيانونه موندلاى شو . د غزني د دربار شاعر فرخى له نن څخه څه دپاسه زر کاله مخکې ويلي دي :
بګونه شل افغانيان دو پره وتيز چو دسته بسته بهم تير هاى بى سوفار
فردوسي په شاهنامه کې زابل ته نږدې د ((دشت خرګاه)) د اوسيدونکو په باب ډيرې خبرې لرې چې تفصيل به يې وږوسته ولولي او وايي:

چنين ګفت دهقان دانش پژوه
مراين داستان را زپيشين ګروه
که نزديک زابل به سه روزه راه
يکى کوه بد . سرکشيده به ماه
بيک سوى او دشت خرګاه بود
دګر دشت زى هندوان راه بود
نشته دران دشت بسيار کوچ
زاوغان ولاچين وکرد و بلوچ

د روښاني نهضت سترمخالف. اخوند درويزه ننګرهاري ( ۹۴۰ - ۰۲۸ اق )
په مخزن الاسلام کې د افغان او حتى افغانستان يادونه کوي دده خپله وينا داسي ده :
الحاصل هرکه ميخواهد که خودرا از بلاى هر دوجهان نګهدارد و در اسلام ثابت باشند ودرکفر نه افتند از پيران اين زمانه احتراز بکنند و مريد نشوند و الااحوال اورا پيش خواهد آمد چنانکه ديده ميشود درين ايام اکثر هرکه از افغانستان وبلاى که دران امده است از پيرى و مريدى در امده است .))۹

خوشحال خان خټک وايي:

د افغان په ننګ مې وتړله توره — ننګيالي د زمانې خوشحال خټک يم

رحمان بابا وايي:

چې کشور د افغانانو معطر شي — د هر بيت مصرع مې زلفې د خوبان کړي

کاظم خان شيدا وايي:

په هندي ادا يې وکړې په ما چاري — زه شيدا په زړه ساده د روه افغان يم

د شلمې پيړۍ په سرکې د افغان نوم له افغاني ملت سره د مينې او په افغانيت باندې د وياړلو يوه نخښه شوه. زياترو منورينو له خپلو نومونو سره د افغان لقب هم کېښی دې نامه نو نور بوازې د پښتنو تمثيل نه کاوه بلکې د هر افغاني تبعه له پاره کارېدی.

د څه مودې راهيسې په خارج کې ځينې افغاني نشرات د ايرانيانو په پيروي (( دافغانستاني )) بېخونده کلمه کاروي چې په هيڅ صورت د افغانيت مفهوم نه افاده کوي. زما په فکر ددې کلمې رواج به افغانيت وياړلې صفت ته زيانمن تمام شي.

لکه مخکښې چې مې وويل د افغان نوم پښتنو ته نورو ورکړی دئ خو وروسته يې د پښتنو ليکوالو او شاعرانو په ليکنه او کلام کې رواج موندلی دئ خو پښتنو خانوته لل پښتون وبلی دئ اوله پښتونولي څخه يې د خپل ژوند له پاره د يوه وياړلي اجتماعي قانون په توګه کار اخيستی دئ او اخلي يې.

پښتنو ته د پټان لقب هم ورکړه شوی دی دا لقب د هند په پراخه سيمه کې منځ ته راغلی او پسې عام شوی دی. تر ايجاد وروسته يې د ريښې معلوملو له پاره ډول ډول توجيهات شوی دي په مخزن افغاني او له هغه وروسته په ځينو اثارو کې چې د مخزن افغاني اغيزه پر پرته ده، پټان د بطان اوښتی شکل بلل شوی دی او پر زيات شوی چې دا لقب د انحضرت ص له خوا قيس عبدالرشيد ته ورکړه شوی دی بطان يې د بيړۍ د ملاتير بللی دی. ۱۰

د ځينو په نظر د پټان د نامه ريښه په هند کې د پښتنو له لومړنی تاتوبي سره تړلې ده. فرشته ليکي: کله چې پښتانه د غور له غرونو څخه د هند سيمو ته وليږد يدل او د بهار ولايت په پټنه کې يې واړول هنديانو بيا دوی پټنی ته منسوب کړل او پټانان يې وبلل. ۱۱

مشهور ناروېژي ختيځ پوه، مارګنسترن، په پټان کې د پښتانه پښتان ريښه

د خیله بولي . ۱۲ د پټان توجیه چې هر راز وي ، زما د څیړنې موضوع نه ده زه دونه ویلای شم چې دا نوم په هند کې ایجاد سوی او د پښتنو اثارو ته یې لار کړې ده. حقیقت دادی چې پښتون ، افغان ، پټان دیوه قوم درې نومونه دي ، ملا عبدالباقي افغان وایي :

پټان قیس عبدالرشید زموږ بابا نومونې درې

د وحدت پیاله یې نوش کړه له مشرکه سو راپرې

د پښتنو ژبه پښتو ده . لکه د افغان نوم چې د غیر پښتنو له خوا دې قوم ته ورکړه شوی دی و دغه راز غیر پښتانه اقوام پښتو ژبې ته افغاني وایي دا نوم همدا اوس د تاجکو ، هزاره وو ، اوزبکو او نورو ورونو قومونو په عواموکې د پښتو ژبې له پاره کاریږي. په پښتو ادبیاتو کې یې هم ډیر وراندې مثالونه شته . د روښاني افکارو مبلغ شاعر ، دولت لواني ، وایي :

افغاني لفظ مشکل و لوست کېنې نه شه

ورته وشوه کننده دیارلس حرفونه

له افغاني لفظ څخه یې مراد پښتو ژبه ده. پښتو یوه سوچه اریایي ژبه ده چې د هندو اروپایي ژبو د کورنۍ د هندواریاني څانګې د اوستا په ښاخ پورې تړلې ده. د پټې خزانې له مخې یې د ادبي اثارو څرکونه د هجرت په دوهمه پیړۍ کې لیدلای شو په هر حال پښتو ژبه د یوه ژوندي قوم ژبه ده چې د نوي او معاصرادب ټولو اصنافو ته یې په خپله لمن کې ځاې ورکړې دي او په اصطلاح د سیالانو سیاله ژبه ده .

لکه د پښتانه د نامه په برخه کې چې د پوهانو نظریات بیلابیل دي ، دغه راز د پښتنو د اصل نسب په باب هم راز راز خبرې شوې دي : چا د بنی اسرایلو بقایا بللي او چا بل څه لیکلي. اسناد ښیي چې دې موضوع ته د لومړی ځل دپاره د زرمې هجري پیړۍ په شاوخواکې منظم کار پیل شوی دی.د مغول جهانګیرد دربارمنشي ، خواجه نعمت الله هروي نورزي ،دنواب خان جهان خان لودي په سپارښتنه او د سمانا د حاکم هیبت خان کاکړ په مرسته د مخزن افغاني په نامه یو کتاب په ۱۰۲۰ هجري قمري کې وکیښ .په دې کتاب کې د پښتنو د اصل و نسب په باب مفصله څیړنه سوي او د پښتنو قبیلو د روایتي شجرو چارټونه ترتیب سوي او په دې برخه کې شفاهي روایتونه په لیکلي توګه ثبت سوي دي. تر دې کتاب وراندې موږ پر همدې موضوع باندې کوم منظم اثر نه لرو څکه نو د نعمت الله هروي زیار په

خپل وخت کې يو نوښت دي او دمولف او د هغه د همکارانو هڅه دقدر ورده. مخزن افغاني دټولو هغو اثارولـه پاره د قوي ماخذ حيثيت لري چې وروسته په دې برخه کې ليکل سوي دي. په تاريخ مرصع ، خلاصه الانصاب، صولت افغاني شوکت افغاني، توزک افغاني، تواريخ خورشيد جهان، دپښتنوتاريخ اونوروکې دمخزن افغاني محتويات رانقل شوي دي.دغه رازخينوختيځ پوهانو لکه سرويليام جونز ، الکساندربرنس،اوهنري جورج راورټي هم دمخزن روايتونه نقل کړي دي.

دمخزن افغاني د روايتو لـه مخې پښتانه بني اسرايل دي. په بني اسرايلو کې د ساول ( طالوت ) لـه نسله ګڼل سوي دي . ساول دحضرت يعقوب ( ع ) په دوولسو زامنو کې د ابن اسرايلو پاچاو.دوه زامن يې وو چې ارميا او برخيانوميدل ، لور يې د حضرت داوُد ( ع ) ميرمن وه . برخيا د حضرت داوُد وزير او ارميا يې سپه سالار و د ارميا زوی افغنه نوميدئ چې د حضرت سليمان ( ع ) سپه سالار و اود برخيا زوی آصف نوميدی چې د وزارت منصب يې درلود . افغنه لـه خدای ځلوينښت زامن. ورکړل او آصف ته اتلس زامن د حضرت سليمان د وفات پر وخت د افغنه او آصف لـه اولادې دومره پياوړي قبيله جوړه سوه چې په ټولو بني اسراييلو کي يې ساري نه و. وايي چې بني اسراييلو د حضرت سليمان (ع ) تر وفات وروسته د خدای نافرماني ته ملاوتړلـه ، خدای د بابل پاچا ، بخت نصر، پر مسلط کړ او د بني اسرايلو خيني قبيلي حجاز ته او خيني غورتـه مهاجري سوي ، حجاز ته د مهاجرو بني اسراييلو وروستي مشر خالد بن وليد دي چي د خينو پښتنو مورني نيکه بلل سوی دی او د غور د بني اسراييلو متاخر سری قيس دي .

ددې نظر يې لـه مخې د حضرت محمد(ص) په ژوند کې حضرت خالد ابن وليد (رض) خپل هغه ترېرونه چې په غور کې اوسيدل د اسلام دين ته راوبلل د غور پښتو يو وفد د قيس په مشري مديني منوري ته وليږه هورې يې د اسلام مقدس دين ومانه او په ايمان مشرف شول انحضرت (ص ) پر قيس باندې د عبدالرشيد نوم کښېښود .

قيس د مکې د فتح په غزا کي برخه واخيستله او د بطان لقب يې وګاټه. حضرت خالد ابن وليد خپله لور ، بي بي ساره قيس عبدالرشيد ته په نکاح کړه. قيس لـه خپلو يارانو سره غورته راستون سو. د اسلام د

مبين د بن تبليغ يې وکړ او په ۴۰ ق يا ۴۱ ق کې مړ سو. دري زامن يې پاته سول چې سړه بن ، بيټ او غرغښت نوميدل. اوسنی پښتانه د همدغو دروتنو اولاددي .خوشحال خان خټک د همدې نظريې تر اغېزې لاندې ويلي دي چې :

پښتون له اصله سړه بني دی — يا غور غښتي دی يا بيټني دی

لودی غلجی دي د بيټني له لوره — په سړه بن پورې بيا کرلانی دی

داوُد هغې نظر يې لنډيز چې په مخزن افغاني کې د لومړي ځل له پاره ثبت سو، وروسته يې پلويان او مخالفين پيداکړل اوتر نونسمې ميلادي پيړۍ پورې د يوې مسلطې او منل سوې نظر يې په توګه وځليده. پلويانو يې پښتو ژبه د عبراني ژبې يو اوښتې شکل وباله اوسامي ژبه يې وګڼله. د نونسمې پيړۍ په لومړۍ نيمايي کې اروپايي پوهانو د پښتنو د بني اسراييليت نظريه ترپوښتنې لاندې ونيوله اوتراوږدوتاريخي اتنيکي او ژبنيو څېړنو وروسته دې نتيجې ته ورسيدل چې دا نظريه پر پاخه تاداو ولاړه نظريه نه ده او افسانوي خوايې درنه معلوميږي. البته د تاريخ په څېړنو پراوو کې به د سامي اقوامو ځينې افراد او ګروپونه له پښتنو سره يو ځاي سوي او يکښې منحل سوي وي ( اوسني سادات او تر هغه وړاندې مثالونه ) ،خو حقيقت دادې چې پښتانه نسلاً اريايان دي او پښتو يوه سوچه اريايي ژبه ده .

پښتنو محققينو ددې نظريې د شنلو او څېړلو په نيامت د تورات د روايتاتو پر بنا اوږد تحقيق کړي دي او په نتيجه کې معلومه سوې ده چې :

د ساول (طالوت ) په زامنو کې د ارميا په نامه هيڅوک نسته او زوی يې افغنه يو خيالي موجود دی . د ظفرکاکا خيل د وينا له مخې د افغنه نوم په ټول تورات کي نه موندل کيږي . ۱۳

- د ساول په زامنو کې د برکيا په نامه يو تن سته چې زوی يې آصف دي خو دا چې هغه دي د حضرت سليمان ( ع ) په وخت کې وزير مقرر سوي وي ، په تورات کې هيڅ راز اشاره نشته. فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د ( الدرس التام في التاريخ العام ) په حواله ليکي (دشاول (طالوت) د پاچاکيدلوکال ۱۰۹۲ ق م او دمرګ کال يې ۱۰۵۶ ق م ښودل شوی دی او تر شاول وروسته حضرت داوُد ( ع ) د بني اسراييلو مشر وټاکل سو او تر ځلوېښت کاله واکمنی وروسته په ۱۰۱۶ ق م کال ومړ ... د پورتني ليکني په رڼا کې هم د درايت په حکم د مخزن افغاني دا ليکنه زړه ته نه لويږي چې وايي ( برخيا او ارميا د ساول

دوه پس مرګي زامن وو اود هغو زامن آصف اوافغنه د حضرت داود وزیر او سپه سالار (رسول) دا خکه چې که موږ د برخیا او ارمیا زوکړه په ۱۰۵٦ ق م یا ۱۰۵۵ ق م فرض کړو نو د هغو د زامنو ( آصف او افغنه ) زوکړه که د پلرو په شل کلني کې پیښه وي نو آصف او افغنه باید په ۱۰۳۵ ق م یا ۱۰۳٦ ق م کې زوکړي او تر شل کلني په کم عمر کې د حضرت داود غوندي نومیالي پاچا له خوا د وزارت منصب دغه آصف او د سپه سالاري منصب افغنه ته ورکول له عقل و عادته لیري ښکاري . ۱۴

حضرت خالد بن ولید یو پیاوړي صحابي و. په اسلامي تاریخو کې یې د ژوند حالات بیان سوي دي مګر دده د هغه د عوت بیان هیڅ خاي نه سو موندلای چې دغور پښتنو ته به یې ورکړي او هغوي به یې د اسلام مبین دین ته رابللي وي. که دا خبرې فرض حال ومنو، بیا هم د خالد بن ولید په برخه کې د پښتنو د بني اسراییلیت دطراحانو څخه غلطي پیښه سوې ده. ددوي په نظر خالد بن ولید د امویانو په وخت کې د کابل والي و دحجاج بن یوسف له خوا چې د امویانو مشهور ظالم حکمران و، مرکزته وغوښت سو. خالد د حجاج له بیري مرکز ته نه ولاړ، په پښتنو قنوت له پښتنو سره یې خپلۍ وکړه او اوسني خالدي پښتانه چتې خپلي کسان دا نسبت ښکلېنو ته ورکوي، دده اولاده ده . باید وویل سي چې د کابل دغه والي خالد بن ولید نه بلکې خالد بن عبدالله القسري و. دغه خالد دیزید لمسی د عبدالله زوی و چې د عربو په بجیله قبیله کې د قسربن عبقر له اولادې څخه و او ددغه نسبت په واسطه یې خالد بن عبدالله القسري بولي په داسې حال کې چې د مخزن الغاني د روایت خالد د ولید مخزومي زوی او لقب یې سیف الله و. ده دکابل د والي په توګه وظیفه نه لرله د بني اسراییلیت د نظر یې له طراحانو څخه دادوه خالد نامي سره ګډ سوي دي .

- د بني اسراییلیت نظریه ښیي چې قیس په ۳۴ پښت افغنه بن ارمیا ته او په ۳۷ پښت ساول ( طالوت ) ته رسیږي . ۱٦ که اوسني پښتانه یوازې دافغنه له نسله وي نو ترقیس پورې دغو۳۴ نسلونو اولاده څه سول؟ هغوي خو هم باید پښتانه یا پښتنو ته نژدې قبیلې وي. موږ تراوسه پورې په کوم تاریخ کې د هغوي داولاد په باب څه نه دي لوستي . له قیس څخه تر نن پورې د ډېرو دقیقو شجرو له مخې ۲٦ پښته تاکل سوي دي په ۲٦ پښته کې په ملیونونو انسانان منشخ له راغلل ، په ۳۴ پښته کې خو به

هرومرو تر اوسني شمير زيات وي دا په ميليونونوانسانان چيري تري تم سول ؟

- د پښتو ژبې په باب علمي څيړنو دا خبره ثابته کړې ده چې پشتو سامي ژبه نه ده او لکه مخکې چې مې وويل دا ژبه د هندو اروپايي ژبو په کورنۍ اړه لري . دا څرنګه کيدلای سي چې قوم دې بني اسرائيل وي او ژبه دې اريايي وي . ۱۷

- پوهيږو چې ددې نظريې طراحان په مغولي واکمنۍ کې اوسيدل. په دې واکمنۍ ( هند ) کې تر پښتون د افغان کلمه ډيره مروجه وه د هغه وخت د پښتنو په نظر هم د افغان کلمه تر پښتون مقدمه ښکاريده خکه يې نو د ساول په کورنۍ کې د ارميا او افغنه افسانه وضع کړه. که دوی ته دا معلومه وای چې پښتون ـ پکهتون نوم تر افغان لرغوني دي هيڅکله به يې د ارميا پر زوی افغانه نوم نه وای ايښئ بلکه پښتون ته ورته نوم به يې ورکړئ وای.

مخزن افغاني د پښتنو د بني اسراييليت د نظريې تر وړاندې کولو وروسته ټولې پښتنې قبيلې او قومونه د بيټ ، سړه بن او غرغښت له لارې قيس عبدالرشيد ته رسولې دي. البته پښتانه ډير قوي شفاهي روايتونه لري او د هغو له مخې خانونه دغو درو څانګو ته رسوي . زما په فکرکه د قيس صحابي توب ثابت هم سي بيا هم دا درې نيکونه دده زامن نشي کيدلای او تراسلامی عصرډير وړاندې کسان دی خکه که مونږ دوی د قيس عبدالرشيد زامن و بولونو د ژوند زمانه يې بايد د لومړی هجري پيړۍ شاخوا وي يعنې په دغه وخت کې بايد پښتا نه د اجتماعي جوړښت له مخې د افرادو يا کورنيو په حالت وي. د قوم يا قبيلې تشکيل يې بايد ډير وروسته جوړ سوي وي او پردې خبره خو تقريبا اتفاق سته چې په دوو، درو پيړيو کې له يوه فرد څخه د زرګونو او لکونو افرادو زيږيدل ممکن نه دي خو تاريخ مونږ ته وايي چې د پښتنو ددغو درو نيکونو تر زماني دوی درې پيړۍ وروسته پښتانه د يوه داسې قوت په توګه موجود دي چې ستر پاچاهان حساب ورباندې کوي. د سبکتګين ( ۳٦٦ هجري قمري شاوخوا ) غوندي پياوړي سلطان د خپل جنګي طاقت د پياورتيا او د خپلې پاچهۍ د ټينګښت په خاطر ورسره خيښي کوي او د زابل ( زاول ) د پښتنو د يو مشر لور خانته غواړي ۱۸ لوديان د ملتان په پراخه سيمه کې چې يوسل شل زره کلی لري ۱۹ دحميد لودي په مشري

د يو غښتلي سلطنت اساس ايږدي او سبکتګين يې پاچاهي په رسميت پيژني ۲۰ له دې ټولو خبرو څخه داسې نتيجه راوزي چې پښتانه د اسلام په صدر کې د افرادو په توګه نه بلکې د منظمو قبيلو په حيث موجود وو او د بني اسراييليت د نظر يې د طراحاتو دا خبره چې ټول پښتانه له قيس عبدالرشيد سره تړلي دي پر علمي تاداو ولاړه خبره نه ده .

اوس به د پښتون قوم خينې سترې څانګې د تاريخي اسنادو له مخې وڅيړو او وبه وينو چې ددې څانګو څرک تراسلامي عصر ډيرې وړاندې موندلای شو .

# اودل - ابدال - اپتل - هفتل - يفتل

ابداليان د افغانستان په تاريخ کې ډيره مشهوره قبيله ده چې د معاصر افغانستان د جوړيدو له وخته يې د دوه نيمو سوو کالو په اوږدو کې واکمني د ټولو پښتنو له خوا منل سوې وه او د روسانو د غير مستقيم او بيا مستقيم تيري په نتيجه کې يې واکمني له مينځه ولاړه . ددې قبيلې زياتره مشاهير د افغانانو او ټولو پښتنو ګډ ملي افتخارات دي.

د ابداليانو د نامه ريښه هغې سپين پوستي اريايي قبيلې ته رسيږي چې په تاريخ کې يې د اپتل (Aptal) يا هفتل په نامه پيژنو. اروپايان دغه اريايي هپتاليانو ته سپين هونان ( White.Huns ) وايي . د هون ـ هان او ښتي شکل اوس په پښتو ژبه کې ( خان ) دئ چې خينې پښتانه يې د (خون ) په بڼه هم تلفظ کوي . د اپتل قبيلې د څلورو سوه ميلادي په شاوخوا کې په باختراو تخارستان کې يو پياوړي دولت جوړ کړ، له ساسانيانو سره يې جګړې کړي او کتيبې يې د کندهار په شمال او ارزګان کې موندل سوي دي . ۲۱ عربو دې قبيلو ته هياطله ويل. تاريخي څيړني ښيي چې دغه سپين پوستي اريايان د اوسني افغانستان سيمو ته تر راتګ وروسته له پکهت ( پښت ) سره ګډ سوي دي . د افتاليانو ژبه چې پخوا هر څه وه له پکتيهانو سره له ګډون وروسته يو مخيزه پښتو سوی ده. ابداليانو ته د دراني لقب لوی احمد شاه بابا ورکړي دي. تراحمد شاهي عصر وړاندې يې ټولو تاريخونو نوم ابدالي يا اودالي راوړی دی .

د خينو ابدالي قبيلو د نامه څرک موږ ته په ډيرو لرغونو زمانو کې بريښي چې په هغو کې يوه الکوزي قبيله ده. د الکوزيو پښتنو ټاټوبی له لويه سره د ارغنداب ناوه ده ، د زابل ولايت په جلدک او د فراه په ولايت کې هم الکوزي ميشته دي . ارغنداب په تاريخي لحاظ د اراکوزيا

سیمه ده . د ق م څلورمې پېړۍ په دوهمې نیمايي کې چې مقدوني سکندر ( تولد يې ۳۵۶ ق م ) له اتيا زرو لښکرو سره د اسياپر لويه وچه بريد وکړ، دريم داريوش ته يې ماته ورکړه او هخامنشي سلطنت پايتخت يې وسو ، مخ يې پر اريانا ونيو. د هرات تر نيولو وروسته يې د هيلمند ناوه او ورپسې د اراکوزي ناوه د اراکوزيانو له سخت مقاومت وروسته فتح کړه . د ۳۲۹ ق م کال په دوبي کې يې د اراکوزي سکندر يې په نامه يوښار د اوسني کندهار په شاوخواکي جوړکړ. ۲۲ دغه اراکوزيان چې د ارغنداب پر غاړو يې د سکندر په وړاندې مقاومت کاوه بيله شکه د همدا ننيو الکوزيانواسلاف وو.

د اريايانو په لرغونو سرودونو ( ويدونو ) کې ۲۳ مور د ارغنداب په ناوه کې د پښي ، ډسه ، پراوته او بريسه قبيلو نومونه مومو چې له دوی څخه همدا اوس پښي په سيوی او کندهار کې سته ، بريسه په يقين سره د بړيڅ قوم نوم دئ ، پروټ د الکوزيو يو ښاخ دي ، د اپريديو نوم د اپاريتي په بڼه ثبت دي او په سليمانخيلو کې د ډاسو ډسه په نامه يو خيل سته . ( ۲۴ )

## ساک ـ سهاک ـ ساګزي ـ اسحاق زی

له تاريخي څېړنو څخه څرګنديږي چې د ساک قبايل د امو په شاوخوا کې اوسيدل او د ژوند زمانه يې تر ق م شپږ سوه کاله مخکې بلل سوي ده . وايي لوی کوروش د سيستان د فتح پر وخت همدغه ساکان د هغوي د ښو خدمتونو له امله ( نيک کردار ) بللي او نازولي يې دي . مرحوم علامه حبيبي ليکي چې دغه کوچي ساکان صحرانشين سول، د باختر په سيمو اود امو سيند په جنوب کې له پکهت يا پښت قبيلو سره ګډ سول. د ساکه نوم ددغو قبايلو په نومو کې خاي سو لکه په زابل کې سهاک او په هيلمند کې ساګزي. ساک او ساګزي پښتني قبيله ده چې له دې قبيلې څخه عبدالله محمد بن صالح ساګزي په سيستان کې د يعقوب ليث صفار پرخلاف پاڅون وکړ او مات سو ( ۲۵۹ هـ ق ) . مشهور افغان پوه سر اولف که رو د کندهارا د ساک واکمنانو په نومونو کې خورا ډير پښتو مشابهتونه موندلي چې ګران لوستونکي يې په تاريخ مختصر افغانستان ۵۸ مخ کې لوستلای شي.

کله چې عربي فرهنګ پښتنو ته ننوت خورا ډېرې پښتو کلمې په عربي طرز او وروسته په پارسي بڼه وليکل سوې چې په هغو کې ساک په اسحق او ساګزي په اسحاقزي واوښتل. ۲۵

## غرزي ـ غلزي ـ خلجي ـ غلجي

په پښتنو کې غلجي قبايل هم د شمير له مخې او هم په تاريخ کې د خپل ځانګړي نقش په خاطر د يادونې وړ موقعيت لري. دځلرمې هجري پيړۍ په سر کې له دې قبيلې څخه لوديانو په ملتان کې ديوې درنې پاچهي تاداو کښېښوو چې نيمه پيړۍ يې دوام وکړ چې د غزنوي سلطان محمود له خوا وروسته ورانه سوه (۴۰۱ ق). تر دې وروسته خلجيانو (غلجيانو) هم په هند کې د سلطنت ودانۍ ودروله (۱۲۰۶ ع) چې تقريبا ۳۲۸ کاله ولاړه وه. علامه حبيبي تراوږدو ژبنيو او تارخي څېړنو وروسته دې نتيجې ته رسيدلئ دئ چې خلجيان همدا غلجي افغانان دي چې له قديمه د غزني په غرو او رغو کې اوسې اود زاولستان پخوانې خلق دي او لسان خلجيه يې له شکه پښتو ژبه ده. ۳۶ د نهمې هجري پيړۍ په نيمايي کې لوديانو د دوهم ځل له پاره د شاهو خيل لودي سلطان بهلول په لاس د هندوستان په شمال (ډيلي) کې د يوه باعظمته سلطنت بنسټ کښېښوو چې تراليا کاله عدل وروسته د مغول بابر په لاس رنګ سو. تر بابر وروسته بيا ددې قبايلو (غلجيانو) خپلوانو، سوريانو، د سلطان العادل شير شاه سوري په همت په هند کې د پښتنو واکمنی ټينګه کړه تر هغه وروسته وينو چې په کندهار کې دحاجي ميرويس نيکه په قيادت ملي غورځنګ پيل سو (۱۱۱۹ ق)، پښتانه يې واکمنی ته ورسول ترانه ديرش کاله سلطنت وروسته د افشار نادر په لاس نسکوره سوه او تر دې وروسته بياله يو شمير هلو ځلو سره دې قبايلو سياسي واک نه دئ اخيستئ.

## غلجي څوک دي ؟

دمخه تر دې چې د غلجيو په باب پر نويو څيړنو وغږيږم، لازمه بولم د هغې وجه تسميې يادونه وکړم چې ددغه قوم د نامه لپاره تراشل شوي ده او تريوې اندازې پخپله په پښتنو کې يې هم عموميت موندلی دي. ددغې وجه تسميې له مخې د غلجي نوم په اصل کې غلزوی دی او علت يې داسې بيان شوي دی چې د بيټ نيکه لور متو د

غور له یوه شهزاده سره ددوی په کور کې اوسیدلی ، پته مینه درلوده او د مخه تردې چې ددوی شرعي نکاح وتړله شي ، په منو کې د حمل نښانې څرګندې شوې ، مور وپلار یې تر معلوماتو وروسته نکاح وتړله او کله چې یې زوی پیدا شو غلزی ( د غلا زوی ) نوم پرکښیښود. داوجه تسمیه لومړی خل په مخزن افغاني کې لیکل شوي او وروسته نورو تاریخونو لکه خلاصه الانصاب ، تاریخ مرصع ، پښتانه د تاریخ په رڼا کې ، د پښتنو تاریخ ... کې نقل شوی ده تردې اندازې چې مرحوم محمد صدیق فرهنګ لاهم چې غلجیو په باب یې د نویو څیړنو په باره کې کافی معلومات درلودل په خپل الر افغانستان در پنځ قرن اخیر کې د غه وجه تسمیه تکرار کړیده .
البته د مرحوم فرهنګ دا یادونه د زیاترو محققینو په نظر د پښتنو سره د یو رازدښمنۍ ښکارندویې کوی چې په خواب کې یې پر نورو لیکوالو برسیره ښاغلي پوهاند دکتور محمد حسن کاکړ مفصله څیړنه کړي او دا نظریه یې یوه بې بنیاده خبره بللې ده . ( وګورئ د مقالو په هغو مجموعه کې د پوهاند کاکړ لیکنه چې د پښتو او پښتنو په باب جعلیات نومیږي او په کانادا کې خو کاله خپره شویده.) ما هم ترخپله وسه د دیوه مجله دریم کال دریمه ګڼه کې پدې برخه بیان کړیدی. د پښتنو قومونو په باب نورې مضحکې وجه تسمیې هم شته او زمونږ استاد ښاغلي پوهاند عبدالشکور رشاد یې یو اوږد لست برابر کړیدی چې یوه برخه یې د حیات افغانی د پښتو ژبې په تعلیقاتو کې چاپ شویده.
د غلجیو دنامه په توضیح کې پوهان د نووڅیړنو له مخې تول په یوه خوله دي چې دانوم غرزي (کوهزاد) دي. غرزي یعنې د غرو خلک . علامه حبیبي د توماس چک له قوله وایي چې په لرغوني دري باختري کې Gar ( ګر ) غره ته وایي او د امو سیند د لوري خوا د غرنۍ سیمې اریایي اوسیدونکي غرچه نومیدل. غرڅه اوغرڅنې په ننۍ پښتو کې مروجې کلمې دي چې د غره مړونو ته وایي. غرزي کلمه ورو ورو په غلزي غلجي او خلجي اوښتې ده . غرد یوې لاحقې په توګه د پښتانه له نامه سره تړلې دئ عربو د غور پښتانه پاچهان ملوک الجبال بلل. دغزنوي دربار مشهور شاعر، ابوالقاسم فردوسي ، په خپل تاریخي شهکار، شهنامه کې د زابل په غروکي د افغانانو دیو مشراو پهلوان اوږد داستان لري. دامشر کک کوهزادنومیدي چې په قوي احتمال سره یې (غرزي کک ، غلجي کک ) بللای سو. فردوسي په شاهنامه کې داسې وایي : ۲۷

چنین گفت دهقان دانش پژوه
مراین داستان را زپیشین گرو

که نزدیک زابل بسه روزه راه
یکي کوه بد ، سرکشیده به ماه

بیک سوی او دشت خرگاه بود
دگر دشت ، زی هندوان راه بود

نشسته در ان دشت بسیار کوچ
ز اوغان ولاچین وکرد و بلوچ

یکي قلعه بالای ان کوه بود
که ان حصن از مردم انبوه بود

مران حصن را نام مرباد بود
ازو جان نابخردان شاد بود

بد ژ در یکي بدکنش جاي داشت
که در رزم با اژدهاپای داشت

نژادش زاوغان سپاهش هزار
همه ناوک انداز و ژوبین گزار

ببالا بلند و به پیکر ستبر
به حمله چو شیر و به پیکار ببر

دورانش بمانند ران پیل
گه رزم چو شان تر از رود نیل

به نیرو جداکردي از کوه کمر
گریزان زرزمش بدي شیر نر

چو پیکار جستی زمردان مرد
زمردان بر اوردي ازگرز گرد

ورانام بودي کک کوهزاد
بگیتي بسی رزم بودش به یاد

هزارو صد و هژده اش سال بود
بسي بیم ازو در دل زال بود

داروانباد استاد احمد علي کهزاد په نظر د مرباد غر په فراه کې واقع دئ او(که نزدیک زابل بسه روزه راه ) داسې تعبیر وي چې زابل پراخه سیمه ده او په دې خاي کې له زابل څخه مراد د هیلمند او ارغنداب غاړي دي. نوموړي استاد زیاتوي ((د شت خرگاه عبارت از سرزمین پهناوریست که علي العموم کوچي ها دران مستقر بودند و خیمه ها و غزدي ها و خرگاه هاي خود را در ان پهن دشت برپامي نمودند . راهی که بطرف هندوان رفته بود ،امکان دارد که از طرف جنوب در راه قندهار وچمن کویته جانب هند میرفته ، ولی امکان دیگر هم موجود است که راه مذکور از طریق قندهار و غزنه به مرکز کابلستان که در ان وقت حصه زیاد ان پیروان هندویزم بودند کشیده شده باشد . ۲۸

په شهنامه کې موږ پو شمیر نور بیتونه هم موندلای سو چې د کک کوهزاد هویت په مشخص کیدلای سي:

یکي گفت ای نامور پهلوان
دل کارزار و خرد را روان

نهنگ دمانست و شیر ژیان
به نیروي اوکس نبسته میان

نژادش ز اوغان سپاهش بلوچ
ابردشت خرگاه بگزیده کوچ

*******

کک کوهزاد اژد های نراست | زکر شسب و ازسام جنگي تراست
دگر انـکه در کوه با ان دلیر | هـزاران جنگی همه هـمچو شیر
بمـردي فزونـند هر یک ز کک | بــود کـک زپیکار ایشان سبک
هـزاران سواران افغان گروه | ز لاچــین دلیران ابـر گرد کوه
ندارم درنگ امشب ایدر زکین | مگر سوی اوغان و خــرگه زمـین

******

سـوی دشت خرگاه تازیم زود | ز افــغان و لاچین بــراریم دود

د دښت خـرگاه موقعیـت مونـږ تــه دا راښیــي چــې دا د اوســنی زابـل او غزنی د پراخو دښتو سـره متصـل و چـې تـر نـن پـورې لاهـم د غلجـی کـوچیانو کـړدی پـورې پلنـې دي ، د شهنامې د متعـددو روایتـو لـه مخـې کـک کـهزاد افغــان ، د زابـل پـاچـا وه د دښت خـرگاه ښتانـه یـې عزیـزان و او پـه لښکرکـې یـې پـه زرگونـو اوغانــان شـامل وو چـې لـه دې ځرگندونـو څخـه ویلـی شـو چـې کـهزادهمداغرزی غلجـی دي. روایتـی شجرو د غـرزي پـه اولاد کـې د تـوران ، بولـر، بـارو، بـابو، درخــی ... نوموـنــه راښي چـې دا پخپلـه تراسـلامی اثـر ډیـر وړانـدې لرغونـي نومونـه دی . لـه دې څیړنـې څخـه داسـې نتیجـه راباسـو چـې پښتانـه اریـن نـژاد تـه منسوب ددې خــاوري بومــی انسانان دی . چـې وروسـته د تـاریخ پـه مختلفـو پړاوونوکـې د نـورو توکمونـو خلـک هـم ورسره یوځای شوي او داسـې پـه کـې منحـل شـوي دي چـې لـه بومـی پښتنوڅخـه یـې سـره بیلـوالی گران ښکـاري. ددوی ژبـه پښتـو لـه اریـايي ژبـو څخــه شـمیرل کیـږي . دهنـدو اروپـايي ژبـو لـه شـرقی شـاخه داوسـتا پـه گروپ پـورې تړلې ده ـ دا موضـوع اوس د بـو داسـې حقیقـت پـه تـوگه منـل شـوې ده چـې د ختیـځ او لویدیـځ پوهــان ورباندې متفقه الرایه دي او د تردیـد تکـی پـه کـې نـه وینـي .

# لمن لیکونه

۱) د هیرودوتس تاریخ ـ اووم فصل ـ ٦٦ گنه ـ ۴۹۳ مخ ـ انگریزي ژباړه ـ دا یادابښتونه پياوړي مورخ پوهاند دوکتور محمد حسن کاکړ رالیږلې چې مننه ترې کوم.
۲) cloaks یو ډول بې لستونوجامې دي چې ارتې غاړې لري او ماد واسکټ کلمه ورته مناسبه ژباړه و بلله.
۳) دهیرو دوت هماغه اثر اووم فصل ـ ٦٧ گنه ـ ۴۹۳ مخ
۴) هماغه اثر اووم فصل ۸۵ گنه ـ ۴۹۷ مخ •
۵) کاکړ ـ پوهاند ډاکتر محمد حسن ـ افغان ـ افغانستان و افغانها و تشکیل دولت در هندوستان ، فارس و افغانستان ـ ۱۳ مخ ـ پېښور . ۱۹۸۸ م
٦) هماغه اثر ـ ١٦ ـ ١٧ مخونه
۷) هماغه اثر ـ ۱۵ مخ
۸) حبيبي ـ پوهاند عبدالحی ـ د پښتو ادبیاتو تاریخ ـ دوهم ټوک ـ ۱۵ مخ ـ کابل ۱۳۴۲ ش
۹) اخوند درویزه ـ مخزن السلام ـ ۲۰۷ مخ ـ دهلي ـ ۱۳۰۰ ق کال
۱۰) وګورئ پښتانه د تاریخ په رڼا کې ، خلاصه الا نصاب ، تواریخ خورشید جهان
۱۱) ظفر کاکاخیل ـ سید بهادر شاه ـ پښتانه د تاریخ په رڼا کښې ـ ۱۰۴ مخ ـ پېښور .
۱۲) تاریخ تلفظ صرف پښتو ـ د دوکتور روان فرهادي ترجمه ـ داستاد عبدالحی حبيبي له تعلیقاتو سره ـ لومړی ټوک ۲۱۱ مخ ـ کابل ـ ۱۹۷۷م
۱۳) ظفر کاکاخیل ـ سید بهادر شاه، پښتانه د تاریخ په رڼا کښې ـ ۳۵ مخ . پېښور.
۱۴) محمد حیات خان ـ حیات افغاني ـ پښتو ژباړه ـ دریم ټوک ـ تعلیقات ـ بامخ ـ کابل ـ ۱۳۷۰ ش .
۱۵) هماغه اثر ـ هماغه ټوک ـ تعلیقات ـ یج مخ
١٦) ظفر کاکاخیل ـ سید بهادر شاه ـ پښتانه د تاریخ په رڼا کې ـ ۲۵ مخ ـ پېښور .
۱۷) خيني کسان وايي داخبره ممکنه ده چې قوم دي بني اسرایل وي او ژبه دې هندو اروپایي وي او په مثال کې یې Yeddish ژبه راوړي دا ژبه د هندو اروپاي ژبو په جرمانیک ښاخ اړه لري اوبوه ډېره نوې جوړه سوې ژبه ده چې د Early German او Hebrew یو مخلوط دئ . نن ورځ د ایتالیا ، ترکیې ، هسپانیې ، شمالي افریقا او یوزیات شمیر امریکایي يهودان نه په پوهیږي. ( وګورئ ؟ What is Jew_ ۱۱۷ مخ خلورم چاپ ) دا چې ژب پوهانو په هندواروپایي کورنۍ پورې ترلي ده علت به يې غالبا دا وی چې پدې ژبه کې تر عبراني ژبې د جرمني ژبې مواد ډېر دي .

۱۸) حبيبي ـ پوهاند عبدالحي ـ تاريخ مختصر افغانستان ـ ۱۴۱ مخ ـ ۱۳٦۸ ش ـ د سازمان مهاجرين مسلمان افغانستان نشرات .
۱۹) رشاد ـ پوهاند عبدالشكور ـ لودي پښتانه ـ ۱۳ مخ ـ كابل ـ ۱۳۳٦ ش .
۲۰) تاريخ سلطاني ۲۳ مخ ، تواريخ خورشيد جهان ٦۷ مخ ، لودي پښتانه ۱۲ مخ
۲۱) حبيبي ـ پوهاند عبدالحي ـ تاريخ مختصر افغانستان ـ ۲۳۴ ـ مخ ـ ۱۳٦۷ ش
۲۲) هماغه اثر ۴۰ مخ
۲۳) ويدي سرودونه له نن څخه نږدې څلور نيم زره كاله وړاندې ويل سوي دي ـ ويونكي يې هغه اريايي قبايل وو چې د امو په شمال كې اوسيدل او خپله مينه يې اريانا ويجه بلله . اريايي مدنيت د ويدا په څلورو كتابو كې منعكس سوی دي چې نومونه يې ريګويدا ، سام ويد ، اتهروا ويد، يجور ويد دي ـ ريګ‌ويد يې په ټولو كې قديم دئ.
۲۴) حبيبي ـ پوهاند عبدالحي ـ تاريخ مختصر افغانستان ـ ۱۰ مخ
۲۵) ددغه راز بدلونونوري نمونې دادي صرود . سردسير ، جروم .ګرمسير ، مستنج . مستنګ ، سجستان ـ ساګزستان ، قهستان ـ كوهستان ، ميرواعظ، ميرويس ،لهوګرد . لوګر ، طوخي ، توخي ـ سفيد روان ـ سپيروان (په كندهار كې د يوه كلي نوم دئ ) او نور .
۲٦) حبيبي ـ پوهاند عبدالحي ـ پښتو و لويكان غزنه ـ ٦۹ مخ ، كابل ، ۱۳۴۱ ش
۲۷) كهزاد ـ استاد احمد علي ـ افغانستان در شاهنامه ـ ۲۸۴ ـ ۲۸۹ مخونه ـ كابل ـ ۱۳۵۵ ش
۲۸) هماغه اثر ۲۸۷ مخ

# د پښتو اصل او ريښه

حبيب الله تږی

کله چې سړی هغه روايات او نظريات راسپړي چې د پښتو داصل او ريښي په باره کې په مختلفو آثارو کې راغلي دي ، نو له راورتي سره دا خبره هرو مرو مني چې « د پښتو د ژبې د اصل او ريښې په باره کې هم د نظر اختلاف تر هغه نه کم نه دی لکه خپله د پښتنو داصل او نسب په باره کې چې دي.» ۱

پښتو چا د ديوانو ژبه بللې ده ، چا سامي ژبو ته ورکش کړې ده او چا په هندو ايراني ژبو پورې تړلې ده . چا د هندو ايراني ژبو د سترې ونې په هندي څانګه پورې مربوطه ګڼلې ده او چا يې په ايراني څانګه پورې . چا بيا پښتو اصلاً د ساکانو يا سيتيانو ژبه بللې ده او چا د هندو ايراني ژبو تر مينځ يوه مستقله ژبه او د اتصال کړی ګڼلې ده .

د تذکرة الملوک ۲ مؤلف وايي چې ځينې روايتونه پښتو دديوانو ژبه بولې . دي ليکي :

« ځينې روايتونه وايي چې افغانانو خپله ژبه له ديوانونه زده کړه ، ځينې نور بيا وايي دا د کسې دغره د اوسيدونکو ژبه ده .دافغانانودا عادت وو چې ددغو خلکو ښځې او لوڼې به يې تړې بوولې او ودونه به يې ورسره کول اوځکه يې نو پښتو ژبه ورنه زده کړه او خپله ژبه يې چې ابراهيمي [عبري] وه ، هيره کړه .» ۳

کوم مطالب چې د پښتو د اصالت په باره کې ځينې غربي مؤلفينو ليکلي دي ، په هغو کې هم بعضې د تذکرةالملوک له افسانوي روايت نه وروسته نه پاتې کيږي .

هنري راورتي ليکي :« د پښتو ژبې د افعالو او ضمايرو له خصوصياتو او ځينو نورو مشخصاتو نه داسې ښکاري چې دا يوه عجيبه او لرغوني ژبه او له هرې معلومې ژبې نه متفاوته ده .» ۴

راورتي وايي ددې خبرې دليل دادی چې پښتانه اصلاً د يهودو د لسو ورکو شوو قبيلو بقايا دي . دی وايي کوم وخت چې دا قبيلې د فلسطين په يهوديه کې اوسيدې هلته يې ژبه ديو شمير نورو قبايلو له‌لهجو سره ګډه شوه .کله چې دا قبيلې له خپل اصلي ملکه دهغوي دا اوسنی ملک افغانستان ته روانې وې ، په لاره کې يې ژبه د ډېرو نورو ملکونو له ژبو

سره هم ګډه شوه. څرنګه چې دغه د لارې په سر ملکونه اکثره غرني وو نو خلک يې په مختلفو درو کې پداسې ورو ورو قومونو ويشل شوي وو چه له بهر سره يې رابطه او مخابره نه لرله ځکه يې نو د هر قوم ژبې له نورو ژبو سره بيخي توپير لاره . راورټي په پای کې ليکي څرنګه چې د پښتو ژبې اساس همدغه ګډوده ژبه جوړوي نو له دې امله دايوه عجيبه او له نورو نه متفاوته ژبه ده . ۵

کله چې راورټي دخپل ګرامرپه مقدمه کې دپښتو اونورو ژبو په ارتباط غږيږي، د هغوکسانو نظريات ردوي چې وايي پښتو يوه آريايي ژبه ده او وايي ((پښتو زما په خيال دسامي ژبو په کورنۍ پورې اړه لري)) پدې پسې راورټي کوشش کوي دا وښيي چې پښتو هم په صوتي ، هم په صرفي او هم په نحوي لحاظ له عربي او عبراني ژبو سره تړلې ده . ٦

راورټي يو خيرک او د ډيرې وسيعې مطالعې خاوند محقق ؤ او له زړو ايراني ژبوپه تيره بيا زند سره يې دپښتونـژدې ارتباط پوره درک کړی ؤ. مثلاً يو ځای ليکي :

(( نن له اباسيند نه سمدستي لويديځ پلوته داسې يوه ژبه ويل کيږي چې د عبارانو او ساختمان په لحاظ له هرې معاصرې ژبې نه بيخي فرق لري او په غالب ګومان له زند ، پهلوي او عبري نه راوتې ده او دا ژبه پښتو.... ده .)) ۷

خو څرنګه چې دراورټي مطالعه په زړو فارسي او پښتو اثارو کې ډيره پراخه وه او پدغو اثارو کې ، چې راورټي په ډير زيات اهميت ورته قايل ؤ پښتانه په مکرر او متواتر ډول بني اسراييل بلل شوي وو او خپله پښتنو هم دا روايت تائيداوه ، نو له دې امله دی تر پايه له سامي ژبو ، په تيره عبرې سره ، د پښتو د اصل او ريښې په نږدې ارتباط کلک ودريد او ورنه تير نه شو .

سر وېليم جونز، د بنګال د شاهنشاهي آسيايي ټولنې دموسسي رئيس ، له راورټي نه پخوا پښتو له سامي ژبو سره ورته بللې وه . جونز د بنګال د آسيايي ټولنې په مجله کې په هغې يوې لنډکۍ او بې درنګه تبصره کې چې ديوې تاريخي ليکنې په ارتباط يې وکړه ، وويل چې (( پښتو له کلداني ژبې سره ډيره زياته ورته ده .)) ۸

مکر د پښتنو د تاريخ او ژبې په شمير وتلو خيرونکو او د ژبنيو مطالعاتو مقتدر پوهانو له کلداني او نور وسامي ژبو سره د پښتو ارتباط په قاطعيت رد کړ او ويې ويل چې پښتو له اصله يوه اريايي ژبه ده .

کلا پروت لومړنی وتلی مستشرق و چې په کال ۱۸۱۰ کې يې د اسيايي ادبياتو د ارشيف په اول ټوک کې دا نظريه په صراحت رد کړه چې ګونډې پښتو له سامي ژبو سره تړلې ده . ده وليکل چې(( د پښتو او سامي ژبو تر منځ نه په کلماتو کې اندکترين شباهت شته او نه په ګرامري جوړښت کې .)) ۹

منستوارټ الفنستن ، چې د پښتنو د ټولنې او تاريخ د مطالعې په برخه کې د ډېراوچت صلاحيت خاوند و ، په کال ۱۸۱۴ کې د پښتو او کلداني ژبې د ورته والي په باره کې د ويليم جونز خبره رد کړه او ويې ليکل چې ده دوه سوه او اتلس پښتو کلمې ديو شمير نورو ژبو له معادلو کلمو سره مقايسه کړې . خو (( له دې وونه يوې هم له عبراني او يا کلداني سره اندکترين شباهت نه لاره .)) ۱۰

يو بل انګريز مولف ، جان ملکم ، هم د فارس په تاريخ کې الفنستن ته ورته نظر څرګند کړ او ويې ليکل : (( د عبري او پښتو يا د افغانانو دمعاصرې ژبې تر منځ د نږدې والي هيڅ څرک نه لګيږي .)) ۱۱

د پښتنو د تاريخ ، ژبې اوادبياتو لوی محقق اوسترمستشرق، برنارډ ډورن ، هم په کال۱۸٦۳ کې وليکل چې((پښتو ژبه له عبری يا کلداني ژبې سره نه دګرامرپه لحاظ اندکترين شباهت لري اونه د لغاتو په لحاظ.)) ۱۲

دورن د پښتو منتخباتو په مقدمه کې هم داخبره وکړه چې (( پښتو له هيڅ سامي ژبې سره څه ارتباط نه لري .)) ۱۳

په يو بل اثرکې هم چې دهرې مځکې انجيل نوميږي اوپه کال۱۸۴۸ کې بيګسترخپورکړی دی ، د پښتو د ساميت نظريه په قاطع ډول رد شوې او ليکل شوی دی چه پښتو ((د سامي ژبو هيڅ خصوصيات نه لري.)) ۱۴

البته يوزيات شمير غربي مولفينو او د ژبنيو مطالعاتو پوهانو نه يوازې دا چې له ډېر پخوا نه د پښتو د ساميت نظريه رد کړې بلکه دايې هم په ډاګه کړې ده چې پښتو يوه هندو اروپايي ژبه ده .

بیا هم کلاپروت لومړنی غربي محقق دی چې پښتو یې یوه آریایي ژبه وبلله او دا عقیده یې په ډېره کلکه په ډاګه کړه چې (( پښتو بې شکه د هندو ـ جرمانیک ژبو د ستري ډلې یوه څانګه ده .)) ۱۵

د ژبنیو مطالعاتو ډېر لوی عالم پاټ ( Pott ) هم پښتو په قاطع. آریایي ژبه وبلله . لوونتال پدې ارتباط داسې لیکي :

((پاټ Pott چې بل دده په سویه ستر د فق اللغه عالم نه دی تیر شوی ، یوه شیبه هم پدې صرفه نه کوي چې پښتو د هندو اروپایي ژبو په کنار کې ودروي .)) ۱٦

دورن هم په کال ۱۸۴۷ کې د خپلو منتخباتو په مقدمه کې پښتو یوه سوچه آریایي ژبه وبلله او وېې لیکل چې(( پښتو دهندو-فارسي ژبو په لویه کورنۍ پورې مربوطه ده .)) ۱۷

اما هر څومره چې د ژبې تاریخي. مقایسوي څېړنې زیاتره دعلم حیثیت غوره کاوه ، د ژبو په باره کې مطالعه هم هغومره دقیقه کیدله . د پښتو په برخه کې هم پوهانو یوازې پدې قناعت ونه کړ چې د هندو- ایراني ژبو په کورنۍ پورې مربوطه اریایي ژبه یې وبولي ، بلکه غوښتل یې داهم معلومه کړي چې ددغې لویې کورنۍ له کومې څانګې سره خاص ارتباط لري.

څرنګه چې په پښتو کې د هندو ایراني ژبې دلویې کورنۍ ددواړو ډلو خصوصیات دورایه او په وفرت موجود دي ،نو له دې امله چا پښتو په هندي ډلې پورې مربوطه وګڼله او چاپه ایراني ډلې پورې .

کوم غربي لیکوال چې پښتو یې لومړی ځل د هندوایراني ژبو له هندي ډلې سره مربوطه وګڼله هغه رابرت لیچ دی . لیچ په کال ۱۸۳۹ کې د بنګال د آسیایي ټولنې په مجله کې د پښتو ګرامر په باره کې یو مضمون ، چې په حقیقت کې په لویدیځ کې د پښتو ګرامر لومړنی طرحه ده ، خپور کړاو د هغه په مقدمه کې یې د پښتو اوسنسکرت داصواتو له یوې ساده مقایسې نه وروسته ولیکل چې ددغو دوو ژبو اصوات ښیي چې پښتو په قاطع ډول د سنسکرت بنه لري . ۱۸

اما چا چې پښتو د هندي ژبو د یوې ښایسته وسیعې تاریخي - مقایسوي مطالعې په نتیجه کې دهندو ایراني ژبو له هندي څانګې سره مربوطه وګڼله هغه رودولف هورنل دي. هورنل په خپل هغه اثرکې چې دګادي ژبو مقایسوي ګرامر نومیږي لیکي چې د هند شمال غربي سرحد

تر نهايي حدودو پورې پراکرت ژبې ویل کیږي .(( خو له دې خاې نه ها خوا پښتو او کافري ژبې پرتې دي.)) دی خبرې ته دوام ورکوي اولیکي : (( ترومپ په خپلو هغو مقالو کې چې د پښتواوکافری ژبو په باره کې یې لیکلي دي ، له ګادي سره ددغو دوو ژبو نږدې والی ته توجه وراړولې ده ... مګر خبره له دې نه وړاندې خي او [دغه ژبې] ، خصوصا پښتو د مګادي پراکرت ژبې مسلم خصوصیات لري . )) ۱۹

هورنل پدې پسې له خینو ګادي ژبو سره د پښتو او نورستاني ژبو یوشمیرګډ خصوصیات او ممیزات په ګونه کوي او په پای کې لیکي :
((له دې نه څرګندیږي چې مګادي ، پراکرت او پښتو او کافري ژبې په لرغوني زمانه کې بیخي سره نږدې وې اوحتی یوه ژبه یې جوړوله وروسته سوراسیني ژبې دمګادي او د غو ژبو تر منځ واقع شوې او مګادي ژبه یې ورو ورو د شرق په لور بیخي لرې تیل وهله.)) ۲۰

په پښتو کې د هندي اریايي ژبو خصوصیات دومره بارز وو چې حتی فرانسوي لوی ختیخ پوهان جیمزډار مستتر هم په اول سر کې په خپل هغه اثرکې چې هند ته د فلالوجیکو مطالعاتو د سفر رپوټ نومیږي او په کال ۱۸۸۷ کې خپور شوی دی ، د هندوایراني ژبو په هندي ډله پورې مربوطه وګڼله.)) ۲۱

اما چاچې پښتو اول وار د هندوایراني ژبو د ونې له ایراني څانګې سره وتړله هغه شپلي ډیور دی . ده په خپل هغه اثر کې چې(( د مقایسوي فلالوژی اجمال )) نومیږي او په کال ۱۸۵۳ کې خپور شوی دی ، پښتو اساسا ، د ایراني ژبو په کتار کې ودروله خو په عین وخت کې یې وویل چې پښتو ځانته خاص موقعیت لري . دی د ایراني ژبوپه بحث کې لیکي چې د افغانستان ژبه یعني پښتو هم په همدې څانګه پورې اړه لري خو(( ځانته یې په یوه خاصه اوابتکاري طریقه انکشاف ورکړي دی .))۲۲

د ژبنیو مطالعا تو لوی عالم ، ماکس میولر،هم پښتو له ایراني ژبو سره مربوطه وګڼله. ده په خپل هغه اثرکې چې عنوان یې " په شرق کې د جګړې دمرکز ژبې " دی او په کال ۱۸۵۵کې خپورشو، ولیکل ((افغاني یادپښتنو ژبه دخپل ګرامرپه لحاظ د فارس د ژبو له ډلې سره تړلې ده.))۲۳

میولروروسته په خپل یوه بل اثر " د افغانانو ژبه " کې چې ، په کال ۱۸۶۲ کې خپور شو ، خپله خبره نوره هم تصریح کړه او پښتو یې دایراني ژبو په شرقي ډلې پورې مربوطه وګڼله او پدې ترتیب یې له " زند " سره ونښلوله . ۲۴

پاتې په کال ۱۸۳۳ کې اروپايي ژبې په پنځو کورنيو ويشي او پښتو اوفارسي دواړه يې په دوهمه کورنۍ پورې مربوطې ګڼي . ۲۵
اما ځينو پوهانو بيا پښتو د هندي او ايراني ژبنيو ډلو ترمنځ يوه خانته اومستقله ژبه بللې ده. ډاکتر ارنست ترومپ چه د خپلو ډيرو وسيعو ژبنيو مطالعاتو او څيړنوپه لړ کې يې پښتو ګرامر هم ليکلي دي ، پښتو د هندي او ايراني ژبو ترمنځ يوه د اتصال کړۍ بولي او ليکي :(( پښتو کلمات مستقيماً له ګاونډيو پراکرت لهجو ، په تيره بيا پنجابي او سندي نه مشتق شوي دي ، د صرف او ترکيب د عمليې د ساختمان له نظره سندي ته بيخې زياته ورته ده. پښتو په تيره زمانه کې دمتعدي افعالوله نظره له سندي سره کامل مطابقت لري اويوازې د سندي ژبې پراساس تشريح کيدلی شي.مګر پښتو په هيڅ صورت کومه د پراکرت لهجه نه ده، بلکه يوه زړه مستقله ژبه ده چې له هندي آريايي ژبو دايراني ژبو کورنۍ ته دبدلون لومړنۍ مرحله ښيي اوځکه نو د دواړوخصوصيات اوممیزات پکښې څرګند دي، خوبيا هم دپراکرت خصوصيات زياتره پکې بارزدي. دپښتوداخصوصيت دهغې له جغرافيايي موقعيت سره هم اړخ لګوي .۲۶
پروفيسور اډيلنګ ( M.Adelung) هم پښتو يوه خانته مستقله او خاصه ژبه وبلله ۲۷ او شيلي ډيورهم لکه څنګه چې ورانديې وويل شول، وايي چې ((پښتو خانته په يوه خاصه اوابتکاري طريقه انکشاف ورکړی دی .))
۲۸

ډورن خپله د پښتو په باره کې هم همدا نظر لري او وايي چې پښتانه ،نه دايرانيانو له پښته دي او نه د هنديانو ، بلکه داددغو دواړو سترو ولسونو ترمنځ يو مستقل قوم دی . ۲۹
جان ملکم هم پدې برخه کې ډورن ته ورته نظر لري او ليکي چې ((پښتانه له فارسيانو او هنديانو نه متفاوت خلک دي .)) ۳۰
اماد ټا خبره چې د پښتو د ژبې د اصالت د ټاکلو په برخه کې د کاني کرښه شوه هغه فرانسوي لوی عالم اوستر مستشرق جيمز دارمستتر دی . ده د خپل هغه درانه اوستر اثر په اوله برخه کې چې د افغانانو ولسي سندرې نوميږي او د پښتو عنوان يې د پښتو نخوا هاروبهار دی ، پښتو او زند په پوره تفصيل او ډير دقت سره مقايسه کړې او په پای کې دې نتيجې ته ورسيد چې پښتو له زند سره دومره نژدې ارتباط لري لکه نوې فارسي يې چې له زړې فارسي سره لري . پدې ډول دار مستتر ديوه

واقعي طالب العلم په حیثیت خپله پخوانی نظریه د نویو حقایقو په رڼاکې بدله کړه او پښتو یې په قاطع ډول د هندو ایراني ژبو د لویې ډلې د ایراني ډلې په شرقي ډلګۍ پورې مربوطه وګڼله او په ډاګه یې کړه چې پښتو زند ته بیخي نږدې یوه بله ژبه ده . خو پښتو د شمالي هندي ژبو عناصر هم په بیخي خلاص لاس او پراخه پیمانه کسب کړي دی .۳۱

مارګنسترن چې د پښتو ژبې په تیره بیا د هغې د تاریخي مقایسوي څېړنې په برخه کې له ډارمستتر نه راوروسته د ډېر اوچت صلاحیت خاوند دی ، د ډارمستتر نظر کاملاً تالیدوي . خو په عین وخت کې پښتو په شرقي ایراني ژبو کې د ساکانو لرغوني ژبې ته دومره ورنږدې بولي چې وایي پښتو له اصله ، غالباً ،یوه د ساکالهجه ده . دی خبرې نه دوام ورکوي او وایي چې البته ددې امکان نشته چې سړی دې ددغو دوو ژبو ډېر نږدې اړیکې تثبیت کړی . ۳۲ د مارګنسترن خبره خینې نور مؤلفینو هم ، اساساً ، تالیدوي . ۳۳

که سړی د مارګنسترن نظریه منـي او پښتو د ساکا یوه لهجه ګڼي ، نو معنا به یې داوی چه پښتو لږترلږه دوه رزه کاله پخوامعموله وه . ځکه دساکانومشران له میلاد نه تخمین سل کاله دمخه یعنې د ( ۹ ق م) په شاوخوا کې ، په ننی پښتونخوا کې مسلط شول او په پنځم میلادي کال کې یې سلطه پای ته ورسیده او پدې پسې یې ژبه هم لادرکه شوه .

اوس سوال دادی چې پښتو او ساکاخو ، اساساً ، دایراني ژبو په شرقي ډله پورې مربوطې ژبې دي ، نو پښتو دادومره قوي د هندي ژبو خصوصیات له کومه کړل ؟ دا سوال دوه احتمالي خوابونه لرلی شي . یوداچې پښتو له اصله یوه ایراني ژبه وه او د هندي ژبو ډېر زیات عناصر لکه څنګه چې دار مستتر او نور وایې وروسته ورداخل شوي دي . بل داچې پښتوله اول سره نه داسې یوه ژبه وه چې هم یې د هندي ژبو خصوصیات لرل او هم د ایراني ژبو. راځئ چې لومړی دا اول احتمال وڅېړو .

دیوه قوم ژبې ته دیوه بل قوم د ژبې په ډېره وسیعه پیمانه خصوصیات ، معمولاً هغه وخت ورداخلیدلی شي چې لومړی قوم ددوهم قوم تر ډېرې قوي او اوږدې سیاسي او ثقافتي سلطې لاندې راغلي وي. خو تاریخ شاهد دی چې د پښتو ملک په اسلامي عصرکې هیڅکله هم د هندوستان تردغه راز سلطې لاندې نه دی راغلی ، بلکه

پدې دوره کې ډير خله هندوستان د افغانانو او پښتنو تر سياسي سلطې لاندې راغلی او اساساً همدا کار په هند کې د اسلام او اسلامي ثقافت دخپريدو سبب ګرځيدلی دی . اما له اسلام نه وړاندې داسې يوه دوره تيره شوې چې په هغې کې د پښتنو ملک د هندوستان تر يوې قوي اوطولاني سياسي او ثقافتي سلطې لاندې راغلی ؤ. دادوره دموريا دکورنۍ دواکداري عصر دی چې د چندراګوپتا د واکدارۍ له سر نه (۳۲۳ ق م) پيل شوې او د آشوکا په مرګ( ۲۲۷ ق . م ) پای ته رسيدلې اونږدې سل کاله يې دوام کړی دی . په واقعيت کې همدا يوازينۍ دوره ده چې کيدی شي پښتنو ته د هندی ژبو خصوصيات په دومره وسعت اوقوت ورننوتي وي او ددې معنی داده چې پښتو بايد لږترلږه يوه دوه نيم زره کلنه او حتی تر هغه نه هم زره ژبه وي .اما کله که سړی هغه اول احتمال منې او داسې ګنی چې په پښتو د هندي او ايرانې ژبو خصوصيات ان داول سرنه موجود وو هلته نو بيا د ترومپ نظريه تقويه کيږي او پښتو د هندي او ايراني ژبو تر منځ يوه ډيره لرغونې د اتصال کړی يا په بل عبارت ددغو دووکورنيو ديو شمير ژبو دانشعاب منشا ګرځي.

## ماخذونه


۱) هنري راورتي ، پښتو ګرامر،لندن،کال ۱۸۶۰ ، مخ ۱۷

۲) تذکرة الملوک دپښتنو تاريخ دی او راورتی دخپل ګرامر په مقدمه کې معرفی کړی دی.

۳) د راورتي ، پښتو ګرامر ، مخ ۸

۴) د راورتي ، پښتو ډکشنري پيښور، کال ۱۹۸۲، مقدمه ، مخ ۱۲

۵) همدا اثر ، همدا مخ

۶) راورتي ، پښتو ګرامر ،مقدمه ، مخ ۲۲ ۲۳

۷) همدا اثر ، مخ ۴

۸) ويليم جونز ، آسيايي مطالعات ټوک ۲ ، مخ ۱۷۶ کال ۱۷۸۴

۹) راورتي ، پښتوګرامر ،مقدمه ، مخ ۱۷

۱۰) منستوارت الفنستن ، د کابل سلطنت شرح او بيان اتريش،کال ۱۳۶۲، ـ مخ ۱۹۰- ۱۹۱

۱۱) جان ملکم ، دفارس تاريخ ۲ ، ټوک کال ۱۸۱۵ ، لندن ،مخ ۵۹۷

۱۲) برناد ډورن ، د افغانانو تاريخ ،يادداشتونه ، کال ۱۸۳۶ ، لندن،مخ ۶۵

۱۳) ډورن ، پښتو منتخبات ، مقدمه کابل،کال ۱۳۵۶ ، مخ ۲

۱۴) ايسيدورلو ونتال ، د بنګال د آسيايي ټولنې مجله ، کال ۱۸۶۰ ،ټوک ۲۹ ، مخ ۳۲۵ .

۱۵) راورتي ، پښتو ګرامر ،مقدمه ،مخ ۱۷

۱٦) لوونیتال ، مخکې یاده شوې خپرونه ، مخ ۳۲۵
۱۷) دورن ، پښتو منتخبات ، مقدمه ، مخ ۲
۱۸) رابرت لیچ ، د بنګال د اسیایي ټولنې مجله ، کال ۱۸۳۸ ، ټوک ۸ ،مخ۱
۱۹) رۆ دولف هورنل، د ګادي ژبو مقایسوي ګرامر، مقدمه کال ۱۸۸۰ ، لندن ،مخ ۳۳
۲۰) همدا اثر ، مقدمه ،مخ ۳۴
۲۱) جورج ګریر سن ، دهند د ژبو سروې ، ټوک ۱۰ ،کال ۱۹۲۱ ، لندن، مخ ۹
۲۲) شیلي ډیور ، د مقایسوي فلالوجي اجمال کال ۱۸۵۳ ، نیویارک ، مخ ۲۹۹
۲۳) ماکس میولر،په شرق کې دجګړې دمرکز ژبې کال ۱۸۵۵، مخ۳۲
۲۴) جورج ګریر سن ، دهند د ژبو د سروې ، ټوک ۱۰ ، مخ ۹
۲۵) لوونیتال ،مخکې یاده شوې خپرونه ، مخ ۳۲۵
۲٦) ډاکتر ارنست ټرومپ ، پښتو ګرامر ، مقدمه ،کال ۱۸۷۳ ،لندن، مخ ۱۲
۲۷) راورټي ، پښتوګرامر ، مقدمه ،مخ ۱۸
۲۸) د شیلي ډیور مخکې یاد شوی اثر ، مخ ۲۲۹
۲۹) دورن ، دافغانانو تاریخ ،یادداشتونه ، مخ ۷۲
۳۰) جان ملکم ، د فارس تاریخ ، کال ۱۸۱۵ لندن ، مخ ۵۹۷
۳۱) ګریر سن ، د هند د ژبو سروې ، ټوک ۱۰ ، مخ ۹
۳۲) جورج مارګنسټرن ، اسلامي دایرة المعارف ، ټوک ۱ ، مخ ۲۲۰
۳۳) اولاف کرو ، دی پټانز ،کال ۱۹۵۸، نیویارک ، مخونه ٦٦– ٦۸

# ښاغلي بابي زرتښت اواوستا اوپه اوستايي دوره کې دپښتنوځرک

محمد حسن کاکړ

محترم لطیف جان بابي له مانه وغوښتل چې د هغه د يوه نوي اثر، زرتښت او اوستا ، په باب يوڅه وليکم .ما دده غوښتله ومنله سره له دې چې ډېر وخت شوي ما د لرغوني افغانستان د تاريخ په باب لوستنې نه دي کړي .۱

ښاغلي بابي د خپل هيواد د تاريخي او ژبنيو موضوعاتو په هکله څېړنې او ليکنې کوي . په دې باب يې يو شمير آثار هم چاپ کړي دي . په همدغه لړ کې يې د پښتو نومنبود نوی خپور شوي اثر دی. دده د زرتښت او اوستا اثر ديوې لړۍ کړۍ ده .

لکه چې له نامه نه يې ښکاري دغه اثر د زرتښت او اوستا په باب دي . په هغه کې د زرتښت هسکيدنه او تعليمات چې د اوستا په کتاب کې تول شوي دي د تاريخ په رڼا کې بيان شوي او د اشتقاقانو دعلم له نظره څېړل شوي دي . په پای کې يې اعلام يعنې هغه کلمې چې په متن کې راغلي په يوه لست کې پر هغو شکلونو کې راوړي چې هم په پښتو کې دي او هم په اوستا کې راغلی دي . ددغسې موضوعاتو په باب دا لومړنی اثر دی چې ما په پښتو کې او د پښتو له نظره لوستلي دی . په دې ډول دا اثر ابتکاري دي . خو څرنګه چې په هر ابتکاري اثرکې نيمګرتياوې وي ، په دغه اثرکې هم نيمګرتياوې ليدل کيږي . د زرتښت يا زرتښت او اوستا په باب څه ليکل په اصل کې يوګران کار دی . همداراز داروپا په هغو ژبو پوهيدل هم ضروري دي

---

۱- وروسته له هغه چې ماځپله ليکنه محترم بابي ته واستوله په هغې باندې يې دنورو منابعو او په خاص ډول دلاندې منبع له مخې يا نظر واچوه اوله سرنه تنظيم کره. زردتښتي تمدن، دماڼک چې دهاله په قلم. دغه کتاب چې په هغه کې اوستايي تمدن له لرغوني زماني نه ترا ۶۵ عيسوي کال پورې په عمده ډول داوستا او شاهنامې اويوناني ليکوالو دليکنو له مخې ليکل شوي دي. په ۱۹۲۲ کې داکسفورد پوهتون له خوا خپور شوی دی.

چې اوستا او هم هغه اثار پکې ژباړل شوي چې پخوانیو یونانیانو لیکوالو هم د زرتښت اواوستا او هم د اریایانو په باب راپېړي اینبي دي . البته دا یو ایدیالی حال دي او ایدیایي حال په اساني سره میسر نه وي . خوبو محقق په دغسې حال کې هېم لاس ترزني نه کښيني ، په خاي یې له دوهمو منابعو څخه استفاده کوي. بناغلي بابي همدغسې کړي دي. د زرتښت او اوستا په باب څېړنه دیو بل دلیل له مخې هم یوګران کار دي او هغه دا چې دهغو په باب لومړني منابع لږدي .

هغه څرمني چې اوستا پرې لیکلې شوې وه ، او په ثمرقند اوپرسي پولیس کې خوندې وې د مقدوني لوی سکندر د یرغل په وخت یاسوزیدلي او یا له مینځه وړل شوې دی . لکه چې د مخه وویل شول دزرتښت تعلیمات چې د هغه د پیروانو په سینو کې له یوه نسل نه بل نسل ته نقل کیده په پای کې د ساسانیانو په وخت کې غونډ او تالیف شول . د زرتښت دین هم د ساسانیانو او هم تر هغه دمخه د هخامنشیانو په وخت کې رسمي دین و .

داوستا مرکزي موضوعات زرتښت او د هغه تعلیمات دي . دهغه د پیداکیدو خاي اومهال په یقیني دول معلوم نه دی . د زیږیدو مهال یې له عیسوي میلادنه د مخه د شپږو سوه او زرو کالونو تر مینخ اټکل شوی دی . دې د سپي تاماګانو ( Spitamas ) په کورنۍ کې پیدا شوی دی. داوستا په یوه کتابګوټي یعنې یشت ( Yasht ) کې دی د سپي تامازرتښت ( Spitama-Zarathushtra ) په نامه یاد شوی دی په لاندې دول :

(( چې دهغه په زیږیدو او د هغه په لویدو سره
اوبو او بوټو خوبني وښووله
چې د هغه په زیږیدو او لویدو سره
اوبه او بوټي دیر شول
چې د هغه په زیږیدو او لوئیدو سره
هر کلی وواییه
د سپیڅلي واحد تولو هست شویو
هرکلی دی وي چې زمونږ دپاره پیدا شوی
مذهبي لاربنود
سپي تاما زرتښت.)) ۲

د زرتښت پلار پوروشاسپه ( Pourushaspa) بوول شوي ، او په پوروشاسپه [دبني اسپي زوی؟]اسپه کورنۍ ته منسوب و . د زرتښت د زیږیدو ځاي هم په باوري ډول معلوم نه دی .ویل کیږي چې هغه به د پارس ختیځه خوا کې د بلخ یا باختر کومه سیمه وي . دا چې په اوستا کې ددغې سیمې نومونه په کراتو راغلي دغه اټکل تائید وي .په دې برخه کې بله مونیده داده چې زرتښتي دین د اوومې پیړۍ تر نیمایي یعني د اسلام ترخوریږد پورې د پخوانۍ افغانستان یا اریانا یا ایریانا او پارس د خلکو دین و. بلخ ته د زرتښت د منسوب کیدو بل دلیل دادی چې اریائیان دمیلاد نه دمخه د یونیم زر او دوه زرو کالو نو ترمینځ په بلخ کې آباد شوي و ، چې لرغونو یونانیانو هغه د بکتریا یا باختر په نامه یادو ، او((برسیره پردې د ایران ۳ او هند په مذهبي لیکنو کې د سینونو اوخایونو عمومي یادوني څرګندوي چې افغانستان ددغه ستر لیږد وروستي پړاوو ، چې هلته د اریائیانودغه دوه ډلې سره یوځای شوې.)) ۴ بوه ډله یې په بلخ یاباخترکې پاتې شوه ، او بله یې له هندوکش نه واوښته او دهند په هوارو سیمو باندې میشته شوه. په هرحال ،زرتښت په بلخ کې ویشتا سپه پاچا.( King-Vishataspa) دربارته لار پیداکړه اودربار یې دپاچا په شمول په خپل دین واړو ه او له هغه وروسته دهغه دین په ټولې اریانا کې خپور شو . خو په پخوانۍ افغانستان کې د زرتښت ددین ترڅنګه چې زر به یې مبادي بیان شي وروسته بودایي دین هم ورو ورو رواج پیداکړ چې د هغه موسس بودا و. دهغه اصلي نوم سه درتا ګواتما و او وروسته په بودا باندې یادشو ، چې په سانسکرت کې د " روڼ شوی " معنی ورکوي . دی له میلاد څخه ۵۶۳ کاله دمخه په شمالي هند

۲ - دهاله ، زردبتي تمدن ، بادشوي الر فسخ ۴۲ دبخدي دواکمني کورنۍ بو جنرال سپیتامنز(spitamenes ) نومیده . دی غالباً داسپه له کورنۍ څخه و په هر حال دې دخپلو سورو جنګ سالیو په ملګرتوب له مقدوني سکندر سره تر ډیره وخته پورې وجنګیده ترڅو په پای کې په سغدیانه کې دماساګیتانو له خوا، چې دساکانو یو خیل و، ووژل شو. اریـن ، دسکندر فتوحات ، دسلکنورت ترجمه ۱۹۵۸، مخ ۲۳۲

۳ - لیکونکي دهاله دنورو ایرانیانو په شان ، پخوانۍ افغانستان یا اریانا په ایران کې شامل ښودلی دي. خوداسمه نه ده او ددغې لیکنې په پای کې یې ناسموالی بیان شوی دی.

۴- دهاله ، دزرلښتي مدنیست ۲۱.

کي په پوې واکمنې کورنۍ کې پيداشوي و . په افغانستان کې دباميان دوه لوی بتان او دهغو په شاوخوا کې څو زره سمڅې د بوديزم ځرګندې علامې دي. هندويزم خو ددغو دواړو دينونو دمخه وروسته له هغه چې د آريانيانو يوه ډله دهند په هوارو ځلګو باندې ميشته شوه تکميل شوی و.

د همدغو اديانو او هم په چين کې د کنفيوسيوس ددين او په لويديځې اسيا کې دموسويت او عيسويت او وروسته داسلام ددين د هستګيدوله امله ده چې ديني او اخلاقي ارزښتونه د ختيځ دولسونو د کولتورو نو مهم عنصر تشکيلوي او هغه دوی د نړۍ له نورو ولسونو نه متمايز کوي. اسيا دنړۍ ټولو سترو دينونو ديه وچه ده .

د زرتښت دين ، يا په دقيق ډول د هغه فکري او عقيدوي سيستم د لرغونو اريانيانو يعني دويدي دورې د اريايانو له عقايد وڅخه الهام دی چې شروع يې د ځلورو ويداګانو په جمله کې له ريګويدا نه کيږي . د زرتښت تعليمات داوستاپه کتاب کې ټول شوی دی او اوستا ټولو هغو ليکنو ته راجع کيږي چې د زرتښت او د هغه د پيروانو له خوا رامينځ ته شوی دی . همداراز اوستايا زند اوستاهغې ژبې ته هم راجع کيږي چې دهغه تعليمات پکې بيان شوي دي . خو د اوستا کلمه په دغو ليکنو کې نه ده راغلې . هغه د لومړۍ ځل لپاره په پهلوي ژبه کې ذکرشوي ده .هغه نوم هم معلومه نه دی چې زرتښت يا د هغه پيروانو به د زرتښت تعليماتو دپاره په کار کړي وي. همداراز د هغې ژبې نوم هم معلوم نه دی چې دوی پرې ګړيدل او ليکنې يې پکې کړي دي داوستا کلمه هم راز راز تعبير شوې ده . په غالب احتمال چې هغه به دويد (vid) له فعل له اخيستل شوی وی چې معنی يې " پوهيدل " دي په دې ډول د اوستا معنی " علم " يا "عقل " کيږي. ۵°دويدا کلمه چې دسانسکرت کلمه ده او معنی يې علم " يا " مذهبي علم " دی هم د ويد له کلمې نه مشتقه شوې ده . د اوستا ژبه د سانسکرت له ژبې سره نږدې ده. لومړنۍ يې د لرغونې اريانا او وروستنۍ يې د لرغونې هند ژبه وه . داوستا کلمه د لومړی وار دپاره په پهلوي ژبه کې راغلې چې هغه په

---

۵° دهاله زرتښتي تمدن . ۳۸

پارس کې لـه زرتـښت نـه پنځلس پېړۍ وروستـه رامینځتـه شـوې ده .٦ اوسـتا پـه پـهلوي کـې د اوسـتاک (Avistak) یـا اوسـتاک وزنـد (Avistak-u-Zand) په بنوراغلي ده او زند پـه پـهلوي کـې د تفسیر معنـی لـري . پـه دې ډول زنـد داوستا تفسیر کیږي . دغـه برخـه د زنـد اوسناپـه نامـه تراوسـه هـم د زرتـښت په پیروانو کـې پـه اوسـني ایـران او هنـد کـې ژونـدی ده. پـهلوي پـه ارامـي الفبا کې له نبي نـه دکـین پـه لـورې لیکلـې کیـده. او ارامـي الفبا پـه اصـل کې سامي الفبا وه چې لـه میلادنـه اتـه سـوه کالـه رومبـی یـې د ایـران شـمال لویدیـځ تـه لارموندلـې وه . ارامـي همـداراز د شـمال - لویدیـځ سـامي ژبـو یـوه څانـګه وه چې پـه ختیـځې ارامـي او لویدیـځي ارامـي بـاندې ویشـل شـوې وه.

اوسـتا د څلـورو لـړو ډیـر ورو ټوکـو مجموعـه ده ، هـر ټوک یـې پـه بیـل مهال کې منیځ تـه راغلی لکـه هندویزم چـې پـه پیړیـو پیړیـو کـې تکمیـل شـوی دی. د اوسـتا یـو څـو ورې برخـې بیلـې دی او هغـه د کمکـی یـاخرده اوستا پـه نامـه یادیږي. پـه اصل کـې د اوسـتا ژبـاله برخـه لـه مینځـه تللـې ده . او هغـه څه چـې پـه پـهلوي کـې داوسـتا پـه نامـه تول شـوی دی د اصلـي اوستا یـوه برخـه ده. پـه هـر حـال اوستاهم د ویداګانـو پـه شـان مذهبـي سـندرې دي او دڅلـورو ټوکونـو نومونـه یـې دادي : یشنـا ( Yasna ) ، وسـپرید ( Vispered ) ، یشـتونه ( Yashts ) او وندیـداد ( Vendidad ) . ددغـو توکونوتـر ټولـو مـهم یـې یشنـادي او ګاتـا ګان (Gaths) د هغـه لرغونـې برخـه ده ، دومـره لرغونـې چـې د ویـدي دورې لـه لیکنـو سـره ورتـه والی لـري . ویـل کیـږي چـې پخپلـه زرتـښت ګاتـاګان ویلـي دي . ګاتـاګان د ټولـې اوسـتا نـه یـوازې لرغونـې برخـه ده ، بلکـه هغـه ترټولـو مهمـه هـم ده او لـه نـورو برخونـه د ژبـې ، اسلوب او وزن پـه لحـاظ تـوپیر لـري. دهغـو اصلـي اهمیـت لا پـه دې کـې دي چـې هغـه د زرلـښت د تعلیمـاتو ، و عظونـو او الهامـاتو مجموعـه ده او هغـه پـه عمومـي ډول داهورامـزدا او اهریمـن تـر مینـځ لـه جنـګ ، لـه دغـه جنـګ سـره دانسـان لـه ارتبـاط ، د بدیـو پـه قـواوو بـاندې دنیکـي د قـواو دلـه نـهایي بـرې ، او د اهوارامزدالـه موعـود او متوقـع سلطنت نـه بحث کـوي . یشنا چـې ګاتـاګان د هغـه یـوه برخـه ده ز ردتښتـي دین بنسټ تشکیلوي ، چـې هغـه د نیکـي او بـدي دمقـابلې پـه نامـه خلاصـه کیدلی شي. دغه فکـر د یشنـا لـه دغـې جملـې نـه ښکـاري(( هغـه دوه لومړنـي ارواح چـې هغـوی خپـل ځانـو لـه د غبرګونې پـه بـڼه پـه عمـل کـې وښودل

دبـدي او نيکـي فکـر،قـول اوعمـل دی . او ددوی ترمینـځ عـاقلان پـوه شـول چې نیکی بـه غـوره کـوي او احمقـان بـه هغـي نـه کـوي .)) ۷
دیشنا پـه بـل خاي کې دغـه فکر پـه لاندنـی منظومې کـې بیـان شـوی دی .
" د غو لومړنیو ار وا حو چې خانونه د غبر گونو په څیر و ښو دل
په فکر او قول او عمل کې ښو یې لانبه او بـل یې بد
ددوی تـر مینځ د حـق لاره غوره کـره عـاقل ، نا معقول هـسې نـه
او څه وخـت چې بیادوی سـره ولیدل د لومـړی خل دپاره پیداکړ دوی
ژونـد او نـا - ژونـد چې پـه پـای٠کـې پـه نصیب بـه شي
ډیـر بـد ژونـد دبـدي ، او ډیـر ښه فـسکر د ر ښتیني.)) ۸
پـه دې ډول اخلاقيـات د زرتـښت د تعلیمـاتو ښسـټ دی ، چـې د هغـه لـه مخـې (( هغـه څوک چـې د قـانون ( ashavan ) پـابندي کـوي ، دفریـب او خیـانت ( druj,angra mainyu ) پـه مقـابل کـې بـه لـه ښه روح ، اختـري ببري او لـه عـاقل روح ( Ahura Mazda ) سـره مرسـته کـوي . څنـگه چې هغـه بـه لـه ربنتـي فکرخخـه الهـام اخیستـي وي ، هغـه د ټول جـهان ددروج ( druj ) ، دهغـه د تابعـانو (daevas,Devas) د هغـه درو جانيـانو ( kavi,karapan ) د هغـه د جـادوګرو ( yatu ) اوپریـانو ( pairika ) او د هغـه د لمـانځلو رسـم ( د ژوندیومخلوقـاتو قربـاني او نشـه کوونکـې څښاک ) پـه مقابل کې بـه خپـل دریـځ ټاکـي . هغـه لـه بـې دینـانو ( dregvant ) اوترکـاتو ( Turks ) سـره یـوځاي د پیوونـده کړي لـه ژونـد نـه پـه تینـګه اوړي . هغـه دهـدف پـه هوښیـاري سـره پـه منظـم ډول ژونـد کـوي د قـانون ( Asha ) لـه مخې د ښه روح پـه پـیروي سـره چـې د هغـې تمثیـل بـه دیـوه اخلاقـي مشاور ( vatu ) لـه خـوا کیـږي . پـه دې ډول هغـه بـه پـه دغـې نـړی او تـر هغـه وروسـته د هیلـې سـلطنت ( xshatra ) د تبرکـاتو سـلطنت ، دلرتولـو ښه سـلطنت ( vahista,manah ) د ښې جـایزی (ashi,ada) ژونـد درک کـړی پـه پـوره سـعادت (Haurvatat) تلپـاتې لـوب ( ameretat ) سـره ،او تـر هغـه وروسـته بـه سـخته ازمونیـه ( yah,mazishta ) اودنـړی لـه سـره جوړونـه (frasho,kẹriti) وي " [9] تـر زرتـښت نـه دمخـه د دوو ډلـو اربـاب النـوع عبـادت رواج لاره : اهـوراګان (ahuras) اودیـوان ( devas ) یـادای وان (daevas) . څنـګه چـې پـه هغـه وخـت کـې انسـان لـه طبیعـت سـره نـژدې ژونـد کـاوه ، هغـه دخپـل ژونـد دپـاره د شـاوخوا پـه طبعـي قـواوو بـاندې ډیـر متکـي و .

۹- کـارنوي، زرتښتـي دیـن ، مـخ ۳۶۷



اهورا مزدا او اهریمن له خپلو پیروانو سره هغسې چې
له میلاد نه د مخه په شپږمې پیړۍ کې د پرسي پولیس
د ښار د تریپیلون په وره کې انځور شوي دي.

منبع:- امریکایي اکاډیمیک دایرة‌المعارف، ۱۹۹۷، ۳۸۸

دې زر په دې فکر شو چې ګته یې په دې کې ده چې هغه پټ قوتونه له خان نه راضي وساتي چې طبیعي سیر راهنمایي او اداره کوي . فکر یې وکړ چې لاندې اوبه ، مځکه ، ونې ، او فصلونه او پاس لمر ، ستوري ، سپوږمۍ ، اوورېځې دا هوراګانو یانه لیدونکو خاوندانو په قدرت کې دي. له یوه نه یې مننه وکړه چې دورخې له خوا نړۍ روښانه کوي ، اوتودوي ، بل یې ولمانځه چې په فصلونوباندې یې دباران نعمت اوروي او دې قادر کوي چې ښه حاصلات ټول کړي ، او بل ته یې ددعاګانو پورته کړه چې ده ته روغتیا ورکوي . په دې ډول انسان ورو ورو په لوړ ونه لیدونکو ارواحو او د هغوی دورکړې او بخشش په قدرت باندې معتقد شو،او څنګه چې هغوي دده په فکر په ده باندې ډېرې لورېنې کړې خاق یې موظف کړ چې د هغو عبادت وکړي او په جشنونو او خاصو ورځو کې د ډوډۍ اوبخو غوښو خیراتونه ور وړاندې کړي. خو تجربو زر وروښووله چې داهوراګانو قدرت مطلق نه دی .څه وخت چې سیلۍ پرې راغلې او ږلۍ پرې واورېدلې ، څه وخت چې سړو وریږداوه او تودو ښیو وربروه ، او هغه وخت چې وبا او طاعون ووهه او توپانونو او زلزلو تکان ورکړ دی دې نتیجې ته ورسېد چې بدکاره ارواح به هلته هم اوسي چې له ښو ارواحو سره مقابله کوي اود هغوی ګټورکارونه خنثی کوي. په دې ډول تخلیقي تصور طبیعي نړۍ د یو لړ بدکارو قواوو مکان هم وباله چې هغوي دخیر رسولو له ملایکو سره ټل جګړه کوي . انسان ددغو ملایکو دښمنان دخان دښمنان هم و بلل. خپل خیر یې په دې کې وګانه چې په نیکو قواوو باندې په ټینګه معتقد وي، اوله هغو سره دګدو دښمنانو پرضدمرسته وکړي .

مرسته وکړي . دغه عقیده خپره شوه چې انسان کولی شي د قربانیو په وړاندې کولو ، او د خاصو مراسمو په اجراکولو سره له دیوانو سره په جنګ کې اهوراګان پیاوړي کړي .[10]

ویل کېږي چې زرتښت په هغې کلیوالي کورنده کې کورنۍ کې زیږېدلی و چې یوازې د اهوراګانو عبادت یې کاوه . نو دهغه د تعلیماتو مرکزي ټکی دا شو چې د اهورامزدا ( Ahura.Mazda ) یا عاقل خدای دکایناتو یوازینی خالق دی ، او ددیوانو عبادت د بدی عبادت دی .

---

[10] دهاله ، زرتښتي تمدن ، ۱۷- ۱٦

دهغه په عقیده امیشاسپنتکان (Amesha,Spentas) د سخاوت اوه اسماني موجودات دي چې د اهورا مزدا د استاخو په حیث وظیفه اجرا کوي . د هغو په مقابل کې خبیثه ارواح دي چې په هغو کې سپنتا مین یو (spenta,mainyu) تر ټولو مهم دی ، او دروج (druj) یا انګرامین یو (angra,mainyu) د هغو داستاخي په حیث د مقابلې ډلې یعنې د امیشا سپنتکان د ډلې پر ضد نیغ ولاړ دي. د زرتښت په عقیده دغه نړۍ ددوی د جګړو ډګردی چې په هغې کې سپنتا مین یو د نیکې کارونه کوي او انګرامین یو یا د روج مین یو د بدي کارونه کوي . خو داد اهورامزدا حکم دی چې ربښتین توب به په پای کې بریالي کیږي او زړه نړۍ به په اورسره له مینځه ځي او نوي نړۍ به د هغې په ځای مینځ ته راځي . اهورا مزدا یا اورمزد (Ormazd) خپل مطلق قدرت له لاسه ورکوي، او له سپنتا مین یو سره یو ګنل کیږي ، په داسې حال کې چې انګرامین یو چې داهریمن (Ahriman) استاذی دی له هغه سره مخالفت کوي . اهریمن د خبیثه ارواحو یا د بدیګانو رب النوع داهورامزدا رقیب او مخالف دی .

د زرتښت دین د وحدانیت په لور روان دین دی . څنګه چې د هغه په فکر وروسته له هغه چې اهورامزد ابه دخپلو استازو د مجادلو په نتیجه کې د اهریمن استازي له مینځه وړي په پای کې به په کایناتو کې یوازې یو خدای یعنې اهورامزدا پاتې کیږي او وحدانیت به په دې ډول حقیقي کیږي . اې . جې . کارنوي (A.J-Carnoy) وای چې « زرتښت په څرګند ډول یو بنیادي مصلح و چې غوښتل یې د وحدانیت هغه فکر چې د هغه په چاپیریال کې په بالقوه ډول موجود و له ټولو هغو امتیازاتو څخه پاک کړي چې عنعنې ته یې منل ، او انسان او ارباب نوع له هغه متا بعت نه وزغوري چې په جادوګري کې نغښتې وو.»[۲]

کوم هغه اخلاقیات چې زرتښت تبلیغول د کروندګرۍ په اجتماعي ژوند بنا و . د هغو له مخې ښه سړی هغه څوک دی چې دسولې او ښه ګاونډیتوب په روحیه سره خپلې رمې پیایي او کرونه کوي. دی باید د یوانوته له اطاعت کولو نه سروغړوي ، څکه چې هغوی له خبیثه ارواحو سره په ګډه دا هورا مزدا مخالفت کوي او د کروندګري

---

[۲] د کارنوي یاد شوي اثر ، مخ ۸۶۳

ژوند لــه خطـر سـره مخـامخ کـــوي . دی د کرونـــده ګري کســـب د شـــیطانت اوخبـائث لـــه مینـــخه وړونکـــی او برخـــلاف د پریمـــاني او نیکمرغـــي راوړونکـــی بـولي . دغـه فکـر پـه وندیداد کې پـه لانـدې الفاظو کې بیـــان شـوی دی .

(( پـه رښتیـاده بدمرغـه هغـه مځکـه چـې د ډیروخـت دپـاره دبـدګر لـه خـوا شـاړې پـاتې کیـږي او هغـه یـوه ښه کرونده ګرتـه ضـرورت لـري .

حتی دیوې ښکلـي پیغلـې پـه شـان
چې تـر ډیره وختـه بـی ماشـومه وي
او یـوه ښه میـړه تـه ضـرورت لـري
سپی تامازرتښته ! هـر هغـه ځوک چـې مځکـه کـري
پـه کیـڼ لاس او پـه ښي سـره
پـه ښي لاس او پـه کیـڼ سـره
هغـه تـه راوړي هغـه پـه پریمـانی سـره.))

یاداچې :

(( څه وخـت چـې جـوار لویـږي ، بیـانو شـیطانان پـه وېره کـې لویـږي ، څه وخـــت چـې دانـې توکیـږي ، شـیطانان توخیـږي ، څه وخـــت چـې ډنـډې لیدلـې کیـږي ، شـیطانان ژاړي، څه وخـت چـې غـــوږې څرګندیـږي ، شیطانان بیـا ځغلـي ، پـه هغـه کـور کـې چـې جـوار اوړه کیـږي ، شیطان تکـول کیـږي .)) [۳]

دغـــه فکرونـــه شـایـد د زرتـــښت د وخـت او د هیـــواد د اجتمـــاعي ژونـد انعکـاس وي ، چـــې هغـــه لـــه پووندـــه تـــوب نـــه کرونـــده ګري تـــه د انتقـال مرحلـه وه . [۴] زرتـښت کرونـــده ګر پـــه ډول ډول ســـتایلي دي . هغـــه یـــې ځارو، او خـــواري کـښ ښوولي ، چـې لـږ خـوب او ډیـر کـار کـوي ،د سـپیدو پـه څرک سره لـه کوره وځي ، او د تیـارې پـه خوریـدو سـره پـه کـور ننـوځي ، دی تولـه ورځ پـــه مځکـــه بـانـدې کـار کـــوي ، او پـــه دې ډول د انســـان نیکمرغـــی ډیـروي. زرتښت پـه خپلـې عقیـدې کـې بـل غـټ مقام اورتـه قـایل شـوي دي. او ریـي د اهـورا مـزدا زوی ګڼلـې چـې هغـــه مزدیښنـایي کورونـــه رونوي.

---

[۳] دهاله ، رزتښتي تمدن ، مخ ۴۸

[۴] کارنوي ، زرتښتي دین ، پادشري الر ، مخ ۸۶۳ .

دزرتښت دپاره د کور نغري د محراب په شان وچې کورنيو يې شاوخوا عبادت کاوه . لرګي په لاس او عابد کور والا د عاکوي چې دغه سپيڅلې نښه ګونډې د تل دپاره دده په کور کې وځليږي . دی له هغه نه داسودګی او توبني ، ژوند او ميراني ، سپيڅلتوب او عقل او خليدونکی اولاد توقع کوي. تودنغری په بدل کې کور والا د خارويو په ګلې ،د ميړو په ډيرښت ، په فعال دماغ ، فعال روح او نيکمرغه ژوند متبرک ګرزوي. په زرتښتي دين کې نغري ته دومره اهميت قايل شوي دی چې د هغه په ځليدو او هغه ته د قرباني په ورکولو سره د کورنيو د تلليوکسانو ارواح حاضريږي ، او په دې ډول دمړو او ژونديو تر مينځ نه ليدونکی او نه شليدونکی علايق دوام کوي.

زرتښت شايد لومړی لارښودوي چې ددوه ګون توب فکر يې داخلاقو په بنسټ په دغه ډول بيان کړي دی. ممکن دهمدغه اخلاقي قوت له امله وي چې دغه عقيده چې د اريانا وای جاه په خاوره کې دکيانانو په دوره کې د وشتاسپه پاچاپه واکمنی کې هسکه شويده نه يوازې د زرتښت په وخت کې بلکه له هغه وروسته د پارس د هخامنشيانو ، ديونان او باختري اوساسانيانو په دورو کې د اوومي پيړی ترنيمايي يعنې داسلام تر خوريدو پورې يې د نړی د يوی برخې انسانانو په زړونو او دماغونو باندې حاکميت وکړ ، او د هغوی ژوند يې د خپلو اصولو له مخې تنظيم کړ ، دا ځکه چې اخلاقي بنسټ په اصل کې ډير ټينګ بنسټ وي ، لکه چې يوه امريکايي متفکره ، ايېن رېنډ ( Ayn.Rand) وايي: ((د اخلاقيانو قوت د ټولوعقلاني قوتونو په ډله کې ترټولو ستر قوت دی ... دانسانانو زياتره برخه به د ضد عقلانيانو ، تناقضاتو ، منافقتونو او غولولو سره سره د لويو موضوعاتو په هکله ، د اخلاقي حق په جانب توب احساس نه غير عمل ونه کړي اوکوم هغه اخلاقيات يې چې منلي وي دهغو به مخالفت ونه کړي .)) [5] .

زرتښتي دين که څه هم د اسلام په خوريدو سره نابود شو ،خو يو شمير پيروان يې اوس هم دايران په يزد او د هندوستان د بمبی په ښار کې د پارسي په نامه شته دي . دابه سمه نه وي چې ووايل شي د هغه ټول ارزښتونه حتی په افغانستان کې هم له مينځه تللي دي . د هغو

---

[5] اين رېنډ، فلسفه :څوک چې ورته احتياج لري، د سکنت کتاب خپرونه ۱۹۸۲ ، مخ ٦۷ .

آثار تر اوسه هم په رواجونو ، قصو او افسانو کې پاتې دي . ددغې عقيدې له مخې کورونو ته د مړو داراواحو ورتګ اوډکورنيو له خوا د هغوی په نومونو خيراتونه ورکول تراوسه هم يوقوي رواج دی . بل مثال يې ددوه ګون توب فکر دي چې د بدی او نيکی په نومونو کې په ولسي قصو او روايتونو کې يې دوام کړی دی . د دوه ګون فکر د انقلاب اوضد انقلاب ، شرک او وحدانيت ، او داسې نورو سره متناقضو مفهومونو کې تبديل کيږي. خو په دوو کته ګوريو کې لکه انقلاب يا ضد انقلاب ، نيکي يا بدي، سپين يا تور ، تخت يا تابوت ، ټول يا هيڅ کې د فکر محدودول په واقع کې د ازادی اوانتخاب تجديد دی. ددوه ګون فکر د څو ګون توب د فکر په خلاف او په نهايت کې نيمګړی فکر دی. نيمګړی په دی دی چې هم په فکر او هم په واقع کې د ضدينو تر مينځ نور ځکرونه اونورانتخابونه شته لکه د انقلاب او ضدانقلاب تر مينځ اعتدال يا تدريج ، د سپين او تور تر مينځ نور رنګونه ، د تخت يا تابوت تر مينځ عادي ژوند ، د ټول يا هيڅ ترمينځ يو څه ، او د الحاد او اعتقاد تر مينځ شک يا بې پروايي او داسې نور .

د زرتښت د اخلاقي دوه ګونتوب په باب د تبصرې ور بل تکی دادی چې اخلاقي مفاهيم مهالونو ځايونو اوکولتو رونوته منسوب وي ، نه د ا چې هغه به په ټولو مهالونو ، ټولو ځايونو او ټولو کولتورونو کې په عين مفهوم سره وجود ولري. اخلاقي مفهومونه او پسه مشخص ډول دنيکی او بدی مفهومونه به په مطلق ډول پسه هر ځاي ، هر مهال اوهرکولتور کې موجود وي خود هغو محتويات به له يوه مهال نه و بل ته له يوه ځايه وبل ته او له يوه کولتور نه و بل ته تفاوت ولري . داهم حتمي نه ده چې متناقض فکرونه به په واقعيت کې سره متناقض وي ، يا پوره سره متناقض وي : د تيارې په ژړ کې رڼا وي ،او د رڼا په ژړ کې تياره . کله کله تياره او رڼا دومره سره ګډه شوی وي ، چې حاصل مخلوط يې نه رڼا وي ،نه تياره.هرنارينه د ښځي کروموزوم لري او هره ښځه د نرکروموزوم. په بدي کې نيکي وي ، او په نيکي کې بدي هره. تاريخي دوره په خان کې د مخنی او اينده دورونو عناصر هم لري ، اوهيڅ تاريخي دوره که هر څومره انقلابي يا هر څومره محافظوي هم وي ، نه پوره انقلابي وي ، نه پوره محافظوي. حقيقت دادی چې تاريخي دورې له يوې بلې نه په مطلق ډول بيليدلې نه شي او څوګوت

توب ، نه دوه ګون توب ، په فکر او تاریخ کې حقیقت دي ،او د کوم فکر معتقدین چې مسلط وي هغه فکر هم مسلط وي .

زرتښت په اصل کې د تاریخ له نظره ډیر مهم دی . اوستا د بخدی دورې اریاناواې ځاه د لومړی ځل دپاره د ټاریخ رڼا ته سپارلی دی . د بلخ سیمه که څه هم د نړی له هغو سیمو څخه ده چې غنم پکې په ډیرې پخوانی زمانی کې کرل شوي او د غنمو په کرلو سره هلته زراعتي تمدن په ډیره قدیمه زمانه کې شروع شوي دی ، او د میلاد نه ددوو زرو کالو مخکې شاوخوا کې اریایان پرې باندې میشته شوي دي ، او هلته یې سیاسي نظمونه جوړ کړي او ودانسی یې پکې کړې دی ، خوددغو کارنامو په هکله ځایي باوري لیکلي معلومات نه شته ، تاریخ یې ددغسي تختې په شان دي چې یوازې یو څو ټکی لري. خو اوستایي تخته لیکلي شوې تخته ده .

ددغې دورې په باب که څه هم یونانی منابع ، د فردوسي شاهنامه ، عربي او فارسي منابع او میخي خطونه معلومات ورکوی خو دا ټول ډیر لږ،ډیر نیست او دوهم لاسی منابع دی. یوازې اوستادکیانی دورې په اخره کی دویشتاسپه پاچا په عصر کی د بخدی اریانا وای ځاه په باب تر ټولو منابعو نه په کراتو زیات معلومات ورکوی . اوستا بیحوري ځایي منبع ده ، او بیجوري به وي . سره له دې هم باندینیو او په خاص دول ایرانیانو زرتښت او اوستا ایران او ایرانیانو ته منسوب کړی دی . خوداسې کار نه دی، په اوستا کې د ایران او ایرانیانو نومونه نه شته . په هغه وخت په هغه خاوره کې چې له ۱۹۳۵ څخه راهیسې د ایران په نامه یادیږي کوم پیژندل شوی سیاسي نظم مینځ ته نه وراغلی . دکیاني دورې نه وروسته د میلادنه دمخه په المه پیړی کې د اوسنی ایران په شمال ، ختیځ کې دمادواکمنی پیل شوه . بیا د میلادنه دمخه په ۵۵۸ کې د سیروس په سروالی سره په پارس کې د هخامنشیانو واکمنی پیل شوه . دغه امپراتوري ورو ورو له اباسین نه ترمصره پوري پراخه شوه ، تر څو په ۳۳۰ ق.م کې لسوی سکندر له مینځه یووړه . هیرودوت په خپل تاریخ نومی اثر کې په ق . م پنځمې پیړی کې دغه کورنی هخامنشي ، هیواد یې پارس اواوسیدونکی یې پارسیان یادکړي. نه ایران یا ایرانیان یا حتی اریایان . د ایران کلمه چې پهلوي ده او له اریانا څخه راوتلی ده ممکن د لومړي ځل دپاره د ساسانیو په دوره کې رامنځ ته شوې وي .

د ساسانیانو واکمنی ارتخ شیرپاپه کان په ۲۲۶ میلادي کې شروع کړه اوپه ۶۵۱ کې عربانو له مینځه یووړه . په اسلامي دوره کې عربانو پارس دالعجم په نامه یادکړ .د ایران کلمه له یولسمې پیړۍ نه وروسته دفردوسي په شاهنامې سره بیا مروجه شوه . خو دغه کلمه د پارس په ځای تر نولسمې پیړۍ نه دمخه استعمال شوې نه ده . د ایران کلمه په ۱۹۳۵ کې دپارس په ځای ددغه ملک رسمي نوم شو .په دغه کال کې رضاشاه پهلوي له باندینیو څخه وغوښتل چې د پارس په ځای د ایران کلمه استعمال کړي . [٦] له بلې خوا هغسې چې په دغې لیکنې کې یو ځای بل ځای راغلي ، د زرتښت په وخت کې بلخ یا بخدي د کیانانو د واکمنۍ مرکزو. اسپه یې واکمنه کورنۍ اواوسید ونکی یې اریابان وو . دوی خپل هیواد داریانا وای جاه په نامه یادوه . اریانا اول د پیشدادیانو یاپاراداتانو په دوره کې چې له لرغوني مهال نه ترق م ۲۰۰۰ کلونو پورې اوږده وه دامو په شمال کې بیدیایي هیواد ووچې اوسیدونکی یې د اهورا مزدا په هدایت د مرککی سرونه د مامون کیدو په غرض د جنوب په لور ولیږدیدل ، او یوه برخه یې د بلخ په سیمې باندې میشته شوه . او هلته یې د اوستا یې مدنیت بنیاد کښیښود . ددوی بیا هم خپل ټاټوبې د اریانا وای جاه په نامه یاد کړ . دلته مناسبه ده وویل شي چې په پخواوختونو کې د نفوسو د لږوالي ، د ساحو دپراخوالي اود پوونده توب په وجه اوهم دا چې د هیوادونو پولې نا ټاکلې وي، د هیوادونو نومونه هغومره مهم نه و ، لکه چې د ملي دولتونو په دوره کې دی. په هغه وخت کې امپراتوري ګانې او دولتونه هغومره چې دواکمنو کورنیو په نامه یادیدل، دهیوادونو په نومونو نه یادیدل . د مثال په دول د هیرودوت په تاریخ کې د پارس نوم یو څوځلې ذکر شوي ، په داسې حال کې چې پارسیان پکې په کراتو راغلي دي. داسې هم باختریان یا باکتریان او د باختر یا یا کتریانو مونه دراخله . په هر حال ، هیوادونه او خلک یې باید د هغوي په اصلي نومونو یادشي ، نه د بل چاپه نومونو ، لکه هسې چې د قیق مورخان کوي .

---

[٦] کاکړ م ح ، افغان . افغانستان و افغان هاو تشکیل دولت در هندوستان ، فارس و افغانستان ، وفا ، پیښور ، ۱۹۸۸ ، مخونه ۱- ۴ .

هنري ولسن ممکن لومړنی مورخ اوسي چې په ۱۸۴۱ کې یې دغه کارپه خپل کتاب،لرغوني اریانا، کښکرې وي.ده خپل کتاب د یونان او باختردورې دپاچایانو د هغو سکو له مخې کښلي،چې چارلزمیسن،یوه انګریزي ګرځندوی ، د نونسمې پیړۍ په دریمې لسیزې کې د خپل سفر په موده کې په افغانستان او بلوچستان کې ټول کړي وو. مورخ ولسن ددغو سکو له مخې ثبیته کړې چې اریانا د هغه هیواد نوم و، چې د فارس او هند تر مینځ پروت و. دغه اریانا د یونان او باختری دوری اریانا وه، چې د سکندر تر مړینې نه وروسته مینځ ته راغلې وه . سکندر چې ترمیلادنه دمخه په کال ۳۵۶ کې پیدا شوی و ، په کال ۳۲۳ کې په ۳۳ کلنۍ کې مړ شو. د یونان او باختري دورې تر پیل نه دمخه د هخامنشي امپراتوري د سکندر په فتوحاتو سره له مینځه نه تللې وه . پارس موجودو ، خو له برمه لویدلي و. [7]دا چې د یونان او باختری قلمرو. په دغه مهال کې د اریانا په نامه یادیده څرګندوی چې لږ تر لږه په دغه دوره کې دویدی دورې اریانا وای جاه یوازې د اریانا په نامه یادیده .

د ویدي دورې اوسیدونکو او بلخ په باب مورخ احمدعلي کهزاد وایي چې (( پکت ، یا پښت یا بخت بیک ریشه برمیګردد و از قدیم ترین قبایل ویدي کتله اریایي باختر است که حین مهاجرت د وحصه شده و حصه ی دربخدي ماند.)) د هغې بلې دلې د خلکو په باب بیا لیکي چې ((هیرودوت از قوم پکتي یا پکتیس یا پکتویس و ازخانه مسکون انها پکتیکا یا پکتیا که در ریشه این نام ها کلمه بخد یا بخدي محفوظ مانده ذکر کرده . )) [8] ددغو وروستیو په باب د هیرودوت خپل عبارات دادي : ((هلته نور هندیان هم شته چې د پکتیک ( Pactyic) ملک ګاونډیان دي او دوی د هند په شمال کې اوسیږي .)) دی دا هم وایي چې دغه پکتیکان د (( باختریانو (Bactarian) په شان ژوند کوي.)) وریسې وایي چې(( د هندیانو په ډله کې دوی تر ټولو ډیر جنګیالي دي)) . بیا وایي چې (( پکتویسو ( Pactyes) واسکتونه اغوستل او خایي

---

[7] کاکړ ، د افغان او افغانستان یاد شوی اثر . مخ ۱ .

[8] د قول نقل د عبدالحی حبیبي له خوا ، محمد هوتک ، پټه خزانه ، د پوهني وزارت خپرونه ، کابل ، ۱۳۳۹ / ۱۹۶۰ ، مخ ۲۰۷ .

لیندی او چړې یې له خانو نو سره ګرزولې .)) [۹] د جارج مارګن سترن داریایي ژبو د متخصص هغه نظر چې د پښتو په باب یې وړاندې کړی دی ، هم د پورته توجیهه په تائید تمامیږي ، په دې تفاوت چې دي دپښتو ژبه د اوستا له ګاتا ګانو نه راوتلې بولي په دې دول چې ((دپخوانی اریاناهغه څانګه چې پښتو ترینه راوتلې ده باید د ګاتاګانو په سندرو پورې اړه ولري ، چې د اوستا ډیره لرغونې برخه ده )) . [۱۰] دپښتو ژبې د اصل او ریښې په باب محترم پوهاند تړی مستنده او پخه لیکنه لري چې په همدغه کتاب کې لوستل کیدلی شي.

د ویدي د پکت یا پکتیک د اوستا د بخدي یا بکتریا تر څنګ بله مؤضوع داده چې ایا د هغو اوسیدنکو خانله کوم سیاسي نظام لاره ،یا هسې خواره واره ووبې له دې چې سیاسي نظام ولري ؟ شواهد ښیې چې دوی په بخدي کې د اوستا په دوره کې او په مشخص دول د سکند ر تر راتګ نه د مخه خانله سیاسي نظام لاره ، لکه هسې چې د اریا یا هرات خلکو ، او د اراکوزیا یا کندهار خلکو سیاسي مشران او په غالب احتمال واکمني کورنۍ لرلې ، خو په دغه مهال کې هغه ټولې دهخامنشي واکمنو تر اثر لاندې وې . د بخدي سلطنت تر ټولو مهم سلطنت و . هلته داسپه کورنۍ واکمنه کورنۍ وه . یوناني مورخانو بخدي یا بلخ د بکتریا ( Bactria) په نامه یاد کړي ، چې د هغه مرکز زرې اسپه (Zariaspa) یا بکترا ( Bactra) [۱۱]و. د بخدي نومیالي واکمنان دلهراسپه ، وشتاسپه ، ګرشاسپه ، اروت اسپه په نومونو یادشوي دي . د وشتاسپه لوی وزیرد جم اسپه او د زرتښت پلار د پوروشاسپه په نومونو پیژندل شوي دي . اسپه په اوستا کې داس په معنی کلمه ده . [۱۲] اسپه چې داس مونث

---

[۹] هیرودوت ، تاریخ د ډی ودګرن انګریزي ژباړه ، د شیکاګو د پوهنتون خپرونه ، ۱۹۸۷ ، دریم فصل ، ۱۰۲ پارګی ( مخ ۲۵٦ ) ، اووم فصل ، ٦۷ پارګی ( مخ ۴۹۳ )

[۱۰] د قول نقل د کاکړ له خوا ، د افغان او افغانستان یاد شوي اثر مخ ۵۱ .

[۱۱] ارین ، د سکندرفتوحات ، د اوبرې وی سیلنکورت انګریزي ژباړه ، د پنګون چاپ ، کال ۱۹۵۸ .

[۱۲] دهاله زرتښتي تمدن یادشوي اثر ، مخ ۱۸۳.

دی ، د پښتو کلمه ده ، او په همدغه شکل تراوسه هم په پښتو کې ژوندی ده . په دې حساب داسپه کورنی پښتنه او واکمنان يې پښتانه کيږئ . ميرغلام محمد غبار ، احمد علي کهزاد ، يعقوب حسن خان اوعبالرحمن پژواک لادمخه دغه نظر ورانديې کړی وو چې (( ... د بکتريا (بخدي ) لرغوني هيواد د افغان لومړني پاچا يې ده . ځکه چې د پښتون کلمه له بکتريانه راوتلی ده.))[13] دا چې د افغان او ځينې نور پښتني نومونه داس له کلمې نه راوتلي دي همدغه نظر قوی کوی چې د اسپه کورنی پښتنه وه.

ابو ريحان البيروني وايي چې د افغان نوم په هغې کلمې پورې اړه لري چې په مها باراتا يا د هندوانو په حماسی کتاب کی ، چې د سانسکريت په ژبه کښل شويدی ، داسواکا په بڼه يادشوي دي . احمد علي کهزاد په دې هکله تفصيل ورکړي او ويلي يې دي چې اسواکايا اسواغانه دسانسکرت ترکيبي کلمه ده په معنی داس او مکان. په دې ډول اسواکا يا اسواغانه د سورو هيواد کيږي .[14] دپخواني يونان يوه ليکوال دکونرسين د (( خوسپه )) په يوناني شوي شکل ذکر کړي چې اصل يې ممکن د نبواسپو ملک يا بڼه اسپه خلک وي . اريڼ، بل يوناني مورخ چې دعيسوي ميلاد . ۹۰ کال نه خو کاله دمخه پيداشوي دي دسوات او باجوړ د خلکو په ډله کې د اسپه زي(Aspazi) نوم هم اخلی. تر هغه د مخه سترابو ، د يونان جغرافيه پوه او مورخ چې دولادت کال يي تر ميلاد نه د مخه ٦۳ کاله اټکل شويدی اسپه زی د هپه سی په نامه زکرکړی . سراو لاف که رو ، د پټان نومي کتاب مولف وايي چې(( اسپه زی اوهپه سي په اصل کې يوه کلمه ده چې يوسف زی د هغې معرب دي . ددې معنی داده چې داسلامي دورې يوسف زي په اصل کې اسپه زي وو. دی وايي چې همدا اوس هم يو کليوال يوسف زی د خان ته ای سپ زی (Isapzai) يا اسپه زی ( Aspazai) وايي ، نه يوسف زي .[15]

---

[13] وارتن گريگورين ، د معاصر افغانستان هسکيدنه ، د اصلاحاتو او عصري کولو سياست ، ۱۸۸۰ – ۱۹۴۰ د ستفور د پوهنتون خپرونه، کال ۱۹٦۹ ، مخ ۳۴٦ .

[14] کاکړ، افغان او افغانستان يادشوي اثر ،مخ ۱٦ ۲۴ هماغه يادشوي اثر . مخ ۲۴ .

[15] هماغه اثر يادشوي اثر ،مخ ۲۴ .

په منځنیو پېړیو کې د غور یوه واکمنه کورنۍ شنسب نومېده، چې دشین اسپ ترکیبي کلمه ده.

څنګه چې په اوستا یې بلخ کې واکمني کورنۍ په خان د اسپي نوم ایښي وله دینه داسي ښکاري چې خلکو او په خاص دول پښتنو اس ته په لوړ نظرکتل، او وروستیو د هغوی پیروي کړېې وي. د هغه مهال خلکو د اوبن، غوایي، سپي او وزې هم قدر کاوه او چاچې به په هغو ظلم کاوه هغه ته به جزا ورکول کېده، خو اوستا اس ته د نن ورځې په اصطلاح د سوپر مین حیثیت قایل و. (( ښینو ملایکو به چې غوښتل په خپل وار اسمانو ته وخېژي د اسونو دلې به یې په خپلو بګیو (Chariots) پورې ترلې. ویل کېږي چې هغو اسونو چې د پاسنیو موجوداتو بګۍ کشولې په شمیر کې به څلور سپین رنګي، خلیدونکې اوجګ اسان وو. سمان به یې په سپینو او سرو زرو نال شوي وو. اوپه مخکه یا اسمانو کې تر ټولو چټک موجودات وو.[16] واکمنان به دجنګ میدان ته په اسونو تلل او جنګیالیو به ملایکو ته د عاوې کولې چې ورته چټک اسان ورکړي. څه وخت چې ساتونکي ارواح په غوره کې وو، کور والابه یې په چټکو اسانو متبرک کول.

په وروستیو پېړیوکې اس، اس سور، رکابونه او په واقع کې ټول یراق هم د صلاحیت او واک نخښې وي. د عربي سیاسیه کلمه چې په اسلامي نړۍ کې په عمومي دول د سیاست او دولت چلولو د فن په مفهوم په کاریده، د اس داداره کولو په معنې هم په کاریده. هغه وخت چې عثمانیانو د اس لکۍ د صلاحیت د نښې دپاره په کارولې او د سلطان ښینې لوړ رتبه نظامي منصبداران یې (( دامپراتورۍ د رکابونو داغاګانو )) په حیث نومول دوی په څرګند دول داس والا تصویر د اغیزمن واک دسمبول په شان ګڼه. په لویدیځي نړۍ کې د فرانسوي شوال ( cheval) کلمه چې داس معنې ورکوي، په نورو ژبو کې په بیلو بیلو بڼو کې مروجه شوه او په هغو کې د اس او داس والا مفهوم د قدرت مستعار رسمبولونه ګڼل کېدل ۰ ۲٦ اروپا فیودالي نظام په یوه معنی په اس

---

[16] دهاله، زرتښتي تمدن، مخ ۱۸۳

✦ ۲٦ برنارد لویس، د اسلام سیاسي ژبه، شیکاګو د پوهنتون خپرونه، شکاګو، لندن ۱۹۸۸ مخونه ۱۱، ۱۹.

اواس والا باندې ولاړو ،او اس والا پکې د غوره درېخ خاوند و . په واقع کې اس د ماشين د عصر نه دمخه په هغه تناسب مهم و لکه وروسته چې ماشين مهم شو . داسونو اهميت هغه وخت ډير شو، چې رکاب جوړشو ، او په هغه سره د اوږده واټن وهل په لږوخت کې ممکن شول . که رکاب لرونکي اسان نه واي ، ممکن د اسياستر فاتحان نه واي ، او چنګيز خان امير تيمور ، بابر شاه نادرشاه افشار او احمد شاه دراني بريالي شوي نه واي چې ملکونه لاندې کړي او امپراتوري ګانې جوړې کړي . نو عجيبه نه ده چې په لرغوني بخدي کې واکمني کورني په خان باندې داس نوم ايښي و او اسان يې د سوپر مين په شان بلل .



ژغورونکی، بنسټ ایښودونکی میرویس نیکه

# قايد ميرويس هوتک اوخپلواکي

محمد حسن کاکړ

د حاجي ميرويس هوتک په ژوندکي ( ۱۶۷۳- ۱۷۱۷ ) کندهار د نفوسو په لحاظ له اوس څخه متفاوت و. په هغه مهال کې د کندهار خلک چې زياتره يې ابداليان ( درانيان ) او غرزيان يا غلزيان وو مالداران پوره کوچيان، نيمه کوچيان ، بذګران او دځمکو خاوندان وو.

د پښتنو اصلي ټاټوبي د بلخ ، غور او ننګرهار سيمې دي. داچې دوي ولې اوڅه وخت نورو سيمو ته وکوچيدل بيل بحث غواړي خويه التمې عيسوي پيړۍ کې زيات پښتانه د خاي د تنګوالي له امله دپښور شاوخوا سيمو او سوات او يا جوړته وليږديدل.دغزنويانو، په تيره د سلطان محمود غزنوي په دوره کې دوی شمالي هندوستان ته مخه وکړه . او د هندوستان داسلامي سلطنتونو په دوره کې د« هندوستان » دځنګل په نامه يادشول.هلته يې په خپله هم خپلواک دولتونه جوړکړل، چې دا موضوع هم بيل بحث غواړي .

پښتانه په ديارلسمې پيړۍ کې د مغلو د تاړاکونو په سبب دکسي ياد سليمان د غرو په درو کې ميشته شول. ابداليان د کسي له غرو درونه ورو ورو د لويديځ په لور وکوچيدل.دوی دشپاړسمې پيړۍ په نيمايي کې دارغستان د سيمې ستره ډله وه . له هغې سيمې نه يې لاهم د لويديځ په لور کوچ وکړ او دکندهار په شاوخوا سيمو باندې ميشته شول او ددغو سيمو اوسيدونکي يې لکه پارسيبانان او ملتانيان او نور وشړل. نور يې لاندې کړل ، هم يې د هغو مځکې و نيولې، او هم يې پراخې بې مالکې ځمکې خپلې کړې . دوی پدې ډول دکندهار په ختيځه کې د غلزيانو ګاونديان شول .

غلزيان چې په غور کې هسک شوي وو ، په اوومې پيړۍ کې دچينې زاير ، شون چونګ مشهور په هيون تسانګ ، د ليکنو له مخې دغزني په شاوخوا سيمو کې ابادوو . دوی په واقع کې د ګومل اوکرمې د سيندونو او کلات تر مينځ درو اوهواروکې دعمده قوم په حيث پراته وو. دوی په يولسمې پيړۍ کې دسلطان محمود غزنوي په وخت کې نوم وايست . په ينځلسمې او شپاړسمې پيړۍ کې يې په هندوستان کې دولتونه هم جوړ کړل ، چې دمخه دې ټکي له اشاره وشوه . په افغانستان

کې هغه غلزيان چې د کابل اوننګرهار تر مينځ سيمو باندې پراته وو دختيځو غلزيانو ، او هغوی چې د کابل او کندهار تر مينځ آباد وو ، دلويديځو غلزيانو په نامه ياد شول . دوی د شمير او زور په لحاظ له ابداليانوسره برابر وو، او چې سره ګاونډيان شول ، رقيبان وګرځيدل . په غالب احتمال داولسمې پېړۍ په نيمايي کې دوې سره جوړه وکړه ، اويه خيلو کې يې بېوه ګډه پوله وټاکله . دغه پوله د مورخ سلطان محمد دراني په قول ګرماب ، او د نورو په قول جلدک دی. موافقه د غلزيانو دمشر سلطان ملخي توخي او د ابداليانو دمشر ، سلطان خدايداد مشهور په سلطان خوکي ترمينځ وشوه.دهغې له مخې هغه سيمې چې د ګرماب په شمال ختيځ کې پرتې وې د غلزيانو شوې ، او هغه چې د ګرماب په لويديځ او سهيل کې پرتې وې ، د ابداليانو ګڼل شوې . دغې موافقې ددغو سترو پښتني قومونو تر مينځ د ټکر امکان کم کړ . خو تر هغې مهم په دغو سيمو باندې ددغو قومونو ميشته کېدل وو.

دا معلومه نه ده چې د ابداليانو خيلونه په کو شرايطو ميشته شول. د هر خيل دپاره مخکې د کوم ويش له مخې وټاکلې شوې ، يا هر خيل کومه هغه سيمه چې جرګړې وه ، پرې باندې ميشته شو ؟ خو څنګه چې په هغو سيمو باندې چې دابداليانو خيلونه ميشته شول د هغو مخکو په نسبت چې د غلزيانو خيلونو ونيولې پراخې وې احتمال لري چې په دغه مهال کې د ويش مسأله نه وي مطرح شوې . وروسته د نادرشاه افشار په وخت کې عبدالغني خان الکوزي دهرخيل دپاره سيمه وټاکله، او داحمد شاه دراني په وخت کې په دغه ويش کې نسمون راوستل شو . خو غلزيانو په هماغه اول سر کې دهرخيل دپاره سيمه وټاکله ، لکه چې مولف امان الله هوتک ليکي (( د سوري سيمه د تن زو ، عمرزو ، شيخ زو ملي زو ، معروف زو ، خدر زو، لغرو ، بابې زو ، او ساګزو شوه. غوره مرغه چې ... مخکې دمغولو تر راتګ د يوسف زو او ممند و مينه وه ، د ساګزو ، بابې زو ، طاهرو ،يوسف خيلو او سادت خيلو په برخه کې راغلې . دروغاني شاوخوا د برخو د کام شوې . دالنه غر علاقه درمې زو ، با بيانو ، بابې زو ، طاهرو او هوت خيلو شوی ، اودسره خنکل د رخت يحيې سيمې دبابو زو ، ساوت خيلواو پو لړو شوې .)) " داشي بنکاري چې دغه ويش چې ددوهم ملکيار (نه اول ملکيار چې هغه دهوتک نيکه زوی و) په مشرۍ وشو، دايمي و، لکه چې وروسته دعبدالغني خان الکوزي ويش په

ابدالیانو کې دایمي وو. په پښتنوکې یوازې په بونیر، سوات، دیر، باجوړ، او اتمانخیلو کې دمخکو دویش رسم نوبتي او موقتي و، چې هغه څه وخت چې یوسف زي په دغو سیمو باندې قابض شول، دشیخ ملي په ابتکار عملي شو. په هرحال، ملکیارله خپل ویش نه وروسته ولس دکرنې په لور وهڅوه، او له کوچیتوب نه یې وګرځوه. ددغه هدف دپاره یې ولس دکاریز دکیندلو دپاره وګماره چې دهغې زمانې له کاریزونو څخه نږدې پنځه شپیته کاریزونه یې تر اوسه هم ودان دي. خونوی ژوند په دغو قومونو کې نوی مسایل پیداکړل. په هرقوم کې دمخکو، څرخایونو او کاریزونو په سرلانجې پیداشوی، اودهغو هوارولو دپاره ضرورت محسوس شو. څنګه چې په دوی کې قومي ضوابط اوعنعنه قوي وه هر قوم هڅه وکړه چې دځان دپاره واحد سیاسي نظم مینځ ته راولي، ترڅو دهغه له لارې خپلې دننې چارې سمبال کړي، له نورو قومونو سره پیداکېدونکې جنجالونه رفع کړي، او له صفوي اومغلي امپراتوریو سره چې دوی دهغوی په قلمروکې راتلل روابط ولري. دلته په دغو اوارو سیمو کې دمخکه والو قومي مشرانو له کورنیونه هم سروالې کورنې هسکې شوې اوخپلواک ریاستونه مینځ ته راغلل. دسلطان خودکي اوسلطان ملخي له نومونو څخه هم معلومېږي چې دوی دخپلواکو ریاستونو واکمن سروالان وو. دابدالیانودسرکورنې سدوزی وه چې دهغې موسس اسدالله مشهورپه سدودصفوی امپراتورشاه عباس (۱۵۸۸ - ۱۶۲۹) په وخت کې دقوم دسروال په حیث پیژندل شوی و. دغلزیانو سرواله کورنې اول توخي او وروسته هوتک شوه چې دمیرویس له هسکېدونه وروسته دباد شاه خیل په نامه یادیده او هوتک په مرغه، اته غر، او سورې کې میشته وو.

غلزیان او ابدالیان دګرګین تر رالګه پورې په دننیو چاروکې خپلواک وو، که څه هم لومړنې دمغلي او وروستې دصفوي امپراتورۍ په قلمروکې شامل وو. دغه امپراتورۍ ګانې دشپاړلسمې پېړۍ په سرکې هسکې شوې وې. چې دکابل صوبه دمغلواو کندهار دصفوي امپراتورۍ په قلمروکې شامل وو. اودهندوکش په اخوا سیمو باندې شیباني ازبکانو قبضه کړې وه. خوکندهار دزیات اهمیت په سبب دمغلو او صفویانو ترمینځ یو وخت بل وخت دټکر میدان کېده او څوځله یې دهغه په سر جنګونه هم کړي وو. دغلزیانو او ابدالیانو لویانو ددغو امپراتوریو

له رقابتونو څخه استفاده کوله، او دوی په بین المللي سیاست کې وارد وو. دامعلومه نه ده چې دغو مشرانو په خپلو قامونو باندې تر کومه حده حاکمیت چلوه . خو دا معلومه ده چې دوی دخپلو قومونو شخړې ، اوهغه قوم مینځي او بیروني مسایل چې دوی یې متاثرکول، په جرګو سره هواروول او په جرګو کې دخیلونو سرانو قوي غړلاره . په دوی کې دجرګو رواج ښيي چې ددوی لویان مطلق واکمنان نه ،بلکه ولسي مشران وو .دا هم معلومه ده چې دغو لویانو له مربوطو امپراتور یو سره دمالیاتو په تولولو کې کمک کاوه. په دې دول ولس له خارجي عمالو سره سروکار نه لاره ، مګر دا چې دمالیاتو له ورکولو نه سر وغړوي اوامنیت ګډود کړي . نو خلک په خپل کاروبار بوخت وو.کلي ، باندې ، کلاوې او ماجتونه یې جوړ کړل ، کاریزونه ،نهرونه او ویالې یې وایستلې، مځکې او باغونه یې ودان کړل. په دې دول ولسونو دکروند ګري ژوند ته په زیاته اندازه مخه وکړه . په ابدالیانوکې د نیمه کوچې توب ژوند هم رواج پیداکړ، خو دغلزیانو له هر خیل نه یو څه سوچه پوونده پاتې شول . دوی شمالي هندوستان او د غزني شاوخوا سیمو ته تلل راتلل. په عین حال په دوی کې خینو سوداګري هم کوله اوسوداګران یې آن تومرکزي اسیا ، جنوبي هندوستان او بنګال پورې هم تلل.

په کندهار کې رقابتونه او سیاستونه وروسته له هغه لاجدې شول چې شاه حسین صفوي چې په ۱٦٩۴ کې پاچا شوی وګرګین خان چې په اصل کې ګرجي او نوی‌مسلمان شوی وکندهار ته د بیګلرګی په نامه دوالي په حیث له ډیرو اختیاراتو سره ولیږه. په دغه وخت کې کندهار ته د مغلو له خوا خطر متوجه شوی و . د هندوستان مغلي دولت له صفوی دولت څخه غوښتې و، چې کندهار ورپریږدي .ددې احتمال وچې د کندهار په سردوی سره ونښلي سره له دې چې دواړه دولتونه له پخواني برم او زور څخه لویدلي وو .ګرګین خان غوښتل ددغه خطر په مقابل کې د قومونو قدرت خانته منتقل کړي .نویې لومړی کاردا بشو چې دمالیاتو په تولولواودنیغ حاکمیت په چلولو سره د قومي مشرانو واک محدود کړي .دغه سیاست چې دعنعنوي سیاست په خلاف و،ابدالیان وپارول.ګرګین خان ددوی ترمینځ د سیسې وکړی .او په دوی کې یې یوه دله د بلې دلې پرضد ولمسوله. هغه وچې ددولت خان سدوزی (داحمدشاه نیکه) قوي دله یې پر بلې دلې وخپله ،او د وروستی دلې

مشران ، عطاسدوزی او عزت يې وهځول چې خپل قوم کندهار له نږدې خاې په خاې کړي. دوی همدغستې وکړل ، خو ډيره موده نه وه تيره شوې چې ګرګين پر هغو نابېره ودانګل، ويې خپل او مهاجرت ته يې اړ کړل. نږدې ټول ابداليان شوراوک ، بکوا ، فراه ته وکوچيدل چې وروسته يې په هرات کې دلومړی خل د پاره خپلواک دولت هم تاسس کړ. په کندهار کې غلزيان دعمده قوم په حيث پاتې شول. په دغه وخت کې د قوم مشر حاجي ميرخان هوتک ، يا حاجي ميرويس خان هوتک و چې په کال ۱۶۷۳ کې زيږيدلی و. په دغه وخت کې به شايد دپنځو وپشتوکالو و. دغه خوان مشر په راتلونکو نويو او سختو شيبو کې پاخه تجويزونه ونيول او عملي کړل، او په هغو سره يې ثابته کړه چې دې نه يوازې د خپل قوم بلکه د نورو قومونو په رهبري کولو او قرباني ته د هغوداماده کولو په لاره کې په سيمه کې بې جوړې شخصيت و اوګرګين خان دده په پرتله خام او تند مزاجه بيګانه حاکم و .

ګرګين خان د ابداليانو له شړلو څخه وروسته ميرويس هوتک ته رجوع وکړه . په غالب احتمال د ګرګين خان هدف داو چې دده قوم هم وځپې او په کندهار کې قوي قوم پرې نه ږدي او په ورو قومونو باندې د خپل خيال حکومت وکړي خو دميرويس هدف د ګرګين خان د هدف په خلاف او هغه د پوره خپلواکي خپلول و. نوخپل هدف ته درسيدلو دپاره يې له ګرګين خان او صفوي دولت سره په ظاهر کې ددوستي لار غوره کړه . او دګرګين خان په غوښتنه يې دښاردکلان تری منصب ومانه او هغه ته يې خان نږدې کړ دومره نږدې چې د مورخ سلطان محمد دراني په قول ((ګرګين بي مشوره او بکار نپرداختي ، بغير اجازه او اقدام صلح و جنګ نه ساختي ، اکثر ماليات دور دست را بموافقت ومراقبت او بدست مې اوردي و لشکر رابه سر کردګی ميرويس ميفرستادی و ماليات راحصول مينمودې )). خو ډير موده نه وه تيره شوی چې ګرګين په ميرويس باندې بدګمان شو او هغه يې دپارس پاى تخت اصفهان ته تبعيدکړ اوله شاه حسين صفوي نه يې و غوښتل چې ((خوب است اين مرد در اصفهان باشد . ارامي قندهار مربوط به حبس اين مرد است ورنه باعث اختلال قوم و حکومت شاه در قندهار ميګردد و بايد به او اجازه عودت به قندهار هيچ داده نه شود)).په دې ډول ميرويس په ژوندانه کې د لومړي خل دپاره په سخت مشکل واوښت. مشکل يې داو

چې دی په یوه بیګانه ملک کې د هغه ملک دسیاست مخالف پېژندل شوی ، او تر خارنې لاندې نیول شوی و. نوبې سملاسي هدف داشو چې خان ازاد کړي او هیوادته بیرته وګرزي تر څو خپل اصلي هدف ته درسیدو دپاره کاروکړي . هلته یې د سوغاتونو په ورکولواو دخپل تدبیر اواغیزناکی وینا په برکت دربار ته لارپیداکړه او ددربار په یوی متنفذی ډلی باندی یې دومره نفوذ وکړ چې دهغی سروال یعنی صدراعظم اعتماد الدوله په شفاعت شاه حسین دی نه یوازې معاف کړ ، بلکه کندهار ته یې دورتګ اجازه هم ورکړه ، چې د پخواپه شان دګرګین خان مشاور اوسی او په عین حال کې دهغه اعمال وڅاری . دسیاسی بندې لپاره دایوه هسی کارنامه ده چې نظیرئې ماته په تاریخ کې معلوم نه دې. میرویس په اصفهان کې خاڼله داهم معلومه کړه چې دفارس امپراتوری مخ په خورې ده ، رسمي سیاست دسنیانو اوشیعه ګانو ترمینځ اختلاف شدید کړی، درباریان په مخالفو ډلو سره ویشل شوې اوپخپله شاه یو ضعیف شخص دی. ددغو کشفیاتو په اساس میرویس دې نتیجې ته ورسید چې دپوزه خپلواکۍ ګټلو وخت رسیدلې دی.

میرویس کندهار ته تر ستنید و وروسته دشاه دسپاربتنې او دمصلحت له مخې له ګرګین خان سره دمشاوری او دنبار دکېلان لر په صفت بیا همکاری غوره کړه .خو ګرګین خان پرې داده نه واو ویې غوښتل چې وېې ازمایي. نو یې دهغه لور خپل زوی ته په نکاح وغوښته . دمیرویس دپاره دابله سخته کشاله شوه ، په دې چې په پښتنو کې په تیره دسر په پښتنو کې دادود نه و چې خپلې لونې پر دوهغه هم باندنیو ته نکاح کړي. نو یې دقومی مشرانو په صلاح یوه بله نجلی دخپل لور په نامه دګرګین خان زوی ته په نکاح کړه او هغه یې په دې دول غافل کړ. میرویس وروسته قومی مشران دمانجی په کلی کې په پټه سره جرګه کړل. دمانجی کلی دکندهار دختیځ په دیرش کیلو مترې کې دکابل - کندهار په لارکې دپوپل زیو په سیمه کې پروت دی . دریدی خان مهمند په قول چې په خپلی منظومی محمود نامه کې یې راوړې ، اوهغه په پټه خزانه او دخپلواکۍ لمر ځرک کې نقل شوی دې ، دمانجی په جرګې کې دغو مشرانو ګډون کړی وو: سیدال خان ناصر، بابو جان بابی، بهادر خان اندړ، ملا پیر محمد میاجي، عزیزخان نورزی ، یوسف خان هوتک ، ګل خان بابړ ، نورخان، بړیڅ ، نصروخان الکوزی، یحیی خان هوتک ،

حاجی نور محمد مشهور په حاجی انکو اویونس خان کاکړ. میرویس جرګې ته خپل وړاندیز وړاندې کړ او هغه داو چې دبلوڅو، کاکړو، او ترینانو خانان دې خپل ولسونه دمالیاتو له ورکولو څخه واړوي لړڅو ګرګین خان مجبور شي له پوځ سره لیرې لاړ شي او دوی وکولی شي هلته هغوی له مینځه یوسي. جرګه والو دهغه تجویز ومانه، په قران یې لوړه وکړه او له هغه سره یو موټی شول. میرویس هغوته هغه فتواګانې هم وښوولی چې له وطن نه یې دغاصبانو دشړلودپاره دمکې له علماوو څخه ترلاسه کړې وې. میرویس مکې ته دحج دادا کولو دپاره له اصفهان نه تللی و، او دغه فتواګانې یې ترلاسه کړې دي. دبلوڅو، کاکړو اوترینانو خانانو دمانجی دجرګې له پریکړې سره سم خپل ولسونه دمالیاتو له ورکولو نه واړول او دپاڅون لومړی عملی ګام یې وچت کړ. دګرګین خان په مقابل کې دالومړنی ولسی ((سرغړونه)) وه. هغه هم خپله مشورتی جرګه وبلله او میرویس هم پکې ګډون وکړ. میرویس بیاهم دمصلحت له مخې (دسرغړونی) د خپلو دپاره په کلکه خپل ملاتړ و ښود. ګرګین وروسته له هغه شپږنیم زریز پوځ د کاکړستان، ژوب او بلوچستان په لور واستوه او پخپله دیوه سپاره کندک په قوماندانۍ وریسې روان شو، او میرویس ته یې وویل چې له خپلو قومنې ایله جاریو سره به دارغستان په ده شیخ کې ورسره یوځای کیږي. میرویس په داسې حال کې چې ګرګین خان له خپل کندک سره موعو د ځای ته رسیدلی وو،له خپل اوه سوه ییز قومي ایله جاري سره خان وورسوه. د شپې له خوا یې نابیره پرې ودانګل او هغه یې له تول کندک سره له مینځه یووړ. داپیښه که څه هم مهمه وه معنی یې دانه وه چې کندهارازاد شو. په بلوچستان کې شپږنیم زریز پوځ او دکندهار په ښارکې دولس نیم زره عسکر د هغه په حصار کې ځای په ځای وو. دکندهار صفوي عسکر و وسلې اوتو پونه لرل او دښار په تینګ حصارکی یې خانونه مامون ګڼل. په هغه برسیره (( د ښار د باندې اکثر کلي اوولس ایرانیان وو .)) دا تول دمیرویس دپاره یو بنل چیلینج وو .خو میرویس په ابتکاري تجویز نیولو او د هغه په عملي کولو کې پوخ شوی وُ. لومړی یې واړه ایله جاري تولي د ښارشا وخوا وګماړل اود ښار رابطه یې له خارج سره قطعه کړه. دصفوی پوځ دګرګین خان دسرنوشت څخه بې خبره پاتې شو. دایله جاری بل تولی دبابو جان بابی په قوماندانۍ خان د ښارکلا ته ورسوه . وریسې میرویس له څه

باندې درې زرو ایله جاریو سره په داسې حال کې چې هغوی د صفوي د وژل شویو عسکرو په وسلو سمبال او د هغوی جامې یې هم په تن وې ښارته ورسید. میرویس د ګرګین جامې په تن کړی وی. اوټول سواره ښارته ورننوتل. د پارس عسکرو په میرویس د ګرګین خیال وکړ او پښتنو دښارحصارته په ننوتلو سره په بې ساري چټکۍ سره عملیات پیل کړل. دپارس عسکرو او منصبدارانو ته لی دغونډ یډ و وخت ورنکړ. ډیری ترینه ووژل څه لی ژوندي ونیول او څه یې وتښتیدل. پښتنو دمیرویس په مشرۍ په دغه ډول په کندهار کې د پردیو د دوه سوه کلن حاکمیت علامه له منځه یووړه اوله لاسه تللې خپلواکی یې بیرته خپله کړه. داوخت کال ۱۱۱۹هجري قمري او ۱۷۰۹ عیسوي و.

د صفویانو هغه شپږنیم زره عسکر چې کاګرستان او بلوچستان ته تللي وو، دګرګین خان له مرګ نه وروسته کندهار ته ورسیدل، خو له پښتنو سره له یوې ناکامې مقابلې نه وروسته چې په هغې کې ډیری ووژل شول او ونیول شول وتښتیدل او دتراجیدي خبر یې اصفهان ته ورسوه.

له هغه وروسته میرویس په څرګند ډول جرګه وبلله او جرګه والو ته یې په خطاب کې وویل.((تاسې چې د دین دپاره هرڅه کوي ... د مرمرو په ډبرې باندې به ولیکل شي. او خلک به یې د محشر تر ورځې درناوي وکړي.)) د جرګه والو یوه ډله اندیښمنه وه او څرګنده یې کړه چې ((دپارس امپراتوري پراخه او زو روره ده، پریمانه پوځونه او خزانې لري، مونږ غریبان به په کومو وسایلو له هغو سره مقاومت وکولی شو؟)) دمیرویس دپاره دا هم ګرانه شوه چې اوس به خپل ځینې بې زړه اوتسلیم طلب وطنوال څنګه قانع کوي. په قوت اوفصاحت یې هغوي ته خطاب وکړ چې (( ډېره موده شوې چې دپارس خلکو د انصاف اوعدالت له حدودو څخه تیري کړی دی اوپه بیلو بیلو لارو یې زمونږ عزت اوولس زخمي کړی دی.)) هغه دا هم ورته وویل چې اوس د صفوي امپراتوري ضعیفه شوې اود رنګید و په حال کې ده. هغو ته یې هغه فتواګانې هم وښودلې چې د پردیو د سلطې د طردولو په مقصد یې د مکې، ماورالنهر او هندوستان له علماوو څخه ترلاسه کړې وې. هغه په دې ډول دشکمنو اوتسلیم طلبانو شک او تر دد رفع کړ. بیا جرګه والو دی د خپل قاید په حیث غوره کړ، او ډیرو یې د مقاومت کولو دپاره تیاري وښود.



د ژغورونکی، بنسټ ایښودونکی میرویس نیکه مقبره

د صفوي حکومت خپل عکس العمل په دوو بڼوکي څرګندکړ: مذاکره او زور لومړی یې دخپل حاکمیت داعادې دپاره قاید میرویس ته استا زي ولیږل.قاید میرویس دهغه لومړي نماینده، محمدجامع ته وویل چې((ته خیال کوي چې عقل او پوهه ... هغو غرونو ته چې دغه هیواد یې احاطه کړی دی نه ده راغلې . پربږده چې ستاپاچا څنګه چې یې زړه وي خپل زور واز مایي . کله هغه څنګه چې ته وایې زورور وي بوازې به کړو نه په تشو خبرو زموږ له طرحو سره مقابله وکړي.)) قاید میرویس دپارس دوهم استازي ،محمد خان ، دهرات والي ته چې دحج د سفر ملګري یې و هم ورته ځواب ورکړاو ورته یې وویل چې له لوی څښتن څخه مشکور اوسه چې فساد دوستي په سبب پر مونږ د میلمه حق پیدا کړی دی . که داسې نه وای ناته به جزا درکړل شوې وای څکه چې ((ته مونږ ته په سپک نظرګوري او موږ وروسته له هغه چې څخیرونه شکولي دی د مړ یتوب دپاره بولې . خو په یقین سره پوه شه چې دانتقام وخت رسیدلی دی او غیر لمن افغانان د پارس د خلکو دپاره دخدای تعالی غوره شوی وسایل دي. زمونږ توري ایستلی شوی دی اوترڅو چې ستاسي شاه له تخت نه کوزنه کړل شي ، او هیواد موفتح نه شي په تیکو کې به نه شي .)) له هغه وروسته د صفوي حکومت په نظامي عملیاتو لاس پورې کړ او خسر وخان ، د ګرجستان والي او د ګرګین خان وراره یې د دولس زریز پوځ په قوماندانۍ کندهارته ولیږه .

خسرو خان په خپله دنده کې لږه حده پورې بریالي شو . لښکرو یې په ګرشک کې د پښتنو یو لښکر په شاوتمبوه او په ۱۷۱۱ کې یې د کندهار ښار کلا بند کړ او له اوسیدنکو څخه یې بې له قید و شرط نه تسلیمي وغوښتله . میرویس محاصره کوونکي په محاصره کې ونیول اودسونګ او خوړو شیان یې پرې بند کړل . د محاصرې دوام او دبې قید او شرط تسلیمي تقاضاددې سبب شو چې خسروخان د عبدالله سدوزی په مشري ابدالي متحدین له لاسه ورکړي او محاصره شوی ښاریان په خپل مقاومت کې ټینګ شي . سره له دې چې په اول کې خپلو غوښتل چې تسلیم شي . په دغه حال کې قاید میرویس په یوه لوی لښکر سره چې دنوې او لیرې قامونو له جنګیالیو نه یې د مقابلې په مقصد برابر کړی و ، د خسرو خان پر پوځ برغلل وکړ او هغه یې د پوځ له دیرې برخې سره له مینځه یووړ. د پارس بل انتقامي پوځ د محمد خان رستم په قوماندانۍ

هم په همدغه سرنوشت واوښت . له هغه وروسته د صفویانو نظامي وجود او سیاسي سلطه اول په کندهاراو وروسته په هرات کې له مینځه بووړل شوه او میرویس خپلواکي یقیني کړه.
قاید میرویس وروسته کندهار له کلات نه تر فراه پورې یې له کوم جنګ نه اداره کړ، او په ۱۷۱۷ کې په پخه خواني کې د څلوروڅلویښت کالو په منګ وفات شو. دی په اصل کې له ۱۷۰۹ نه وروسته دکندهار واکمن و. دده دواکمنۍ او اداري په باب معلومات نشته خو دي ښي له کوم شک نه دکندهار په پوره خپلواک کولو سره دافغان دخپلواکۍ بنسټ ایښودونکی دی. باید په یاد ولرل شي چې د خپلواکي بیرغ لومړی روښانیانو هسک کړی و . روښانیانو د بایزید انصاري مشهور په پیر روښان ، د هغه د زامنو او لمسیانو په مشري د مغلو د سلطې پر ضد په شپاړلسمې او اولسمې پیړی کې په وقفو سره مبارزې وکړې . په دغو مبارزو کې د پیرروښان دکورنۍ د سرکسان تول تلف شول. د خپلواکۍ ګټلنو په لارکې یلهکورنۍ شاید دغومره تلفات نه وي ورکړي . په هرحال له هغو وروسته داولسمې پیړی په دوهمې نیمایي کې ایمل خان مومند او خوشحال خان خټک د عین مقصد دپاره له مغلو سره کلونه کلونه وجنګیدل. د روښانیانو په شان دوی هم په مقصد ونه رسیدل خو دوی تولو د پښتنو تاریخ د تودو مبارزو تاریخ وګرزوه او د مبارزو روحیه یې ژوندۍ وساتله .
د قاید میرویس حرکت د همدغو مبارزو په لړ کې بریالي حرکت دی . هغه په کندهار کې د صفوي د امپراتورۍ پوځونه له مینځه یووړل ، اوکندهار یې پوره خپلواک کړو. دغه بریالي توب یې په لږو منابعو اوبشري قواووسره حاصل کړ. په بشري قواووکې فعاله برخه دغلزیو هغه هم د تولو غلزیونه بلکه دلویدیځو غلزیو وه. له دوی سره کاکړان، ترینان، بلوچان، بریڅ، یو شمیرابدالیان اوهزارګان ودریدل. دابدالیانوغټې برخې دکندهار په ازادولوکې برخه نه لرله اومیرویس ونه شوکولی تول ابدالیان دازادی په مبارزې کې له خان سره ملګري کړي.له دغو قومونوڅخه میرویس درې نیم زره جنګیالي تنظیم کړی وچې دمولف امان اله هوتک په قول یې((یوڅه ګودې رندې وسلې لرلې))، په داسې حال کې چې ددښمن شل زریزپوځ لویک اوتوپونه لرل اوتنظیم شوی وو.

سره له دې هم پښتانه پرې غالب شول. دوی په دوه دليلونو پرې غالب شول . يو دليل يې داو چې گرگين خان په خپل نوي سياست يعنې د قومونو د داخلي خپلواکي په محدودولو سره قومونه اود هغوی مشران وپارول او هغو د پوره خپلواکی گټلو په لارکې د ميرويس ننګه په ټينګه وکړه .خو دابه درسته نه وي چې ووېل شي ټولو قومونو اومشرانو او خانانو يې هم دغسې وکړل.په وروستيو کې ځينې تسليم طلب وختل. البته ميرويس د هغوی انديښنې رفع کړې . خو دغه اطمينان موقتي ثابت شو . د ميرويس له مرګ نه وروسته د هغه ورور اوجانشين ميرعبدالعزيز ، هم تسليم طلب وخوت ، تر څو دميرويس مشرزوی ، مير محمود ، دازادۍ غوښتونکو په ملاتړ هغه له منځه يوړ . دغې پېښې د ميرويس په کورنۍ کې د انتقام او تربوري حس وپاروه تردې حده چې دغه حس په پای کې د هغه دکورنۍ د سقوط يو سبب وګرزيد.

د پښتنو د بريسالي لوب بل دليل پخپله ميرويس دی . ماد ميرويس په باب دغسې ليکنه تراوسه نه ده لوستلې چې ليکونکي به يې هغه مذمت کړی وی .برخلاف ،مورخانو دده شخصيت اوکارنامې ستايلي دي. ج ت . کروشنسکي اوجان هان وې ، معاصرو باندېنيو تاريخ کښونکو ، دده او همدا راز دده داخلاقوکارنامې په تفصيل سره بيان کړي او ستايلي دي . ددې عمده دليل دا دی چې ميرويس نه يوازې دهوتکو بلکه د لويديځو غلزي قومونو سروالې کورنۍ ته منسوب و ، اودی په دغې سروالې کورنۍ کې دولسي مشر په حيث هسک شوی و . دلويديځو غلزيو خپلواک رياست که څه هم سلطان ملخي توخي تشکيل کړی و ، د ميرويس په وخت کې د هغه پلارښالم خان هوتک د هغو مشرو چې د هغه له مرګ نه وروسته ميرويس د قوم په مشري غوره شو. دميرويس کورنۍ شتمنه ، سوداګره او دودی ماره وه . په خاص دول دميرويس مور، نازو انا چې د سلطان ملخي توخي لوروه ، شاعره ، عالمه ، دودی ماره او په ولس مينه ميرمن وه. او هغې خپل زوی ، ميرويس دهدفمن ژوند دپاره روزلي و. پخپله ميرويس له قومي مشرانو ، علماوو ، سوداګرو او وګړو سره محشور و .په ولسې دود او دستور پوهيده اولانجې يې په جرګو هوارولې . د خپلواکي ګټلو دحساس دوران مشکلات يې په يو لړ جرګو سره حل کړل . پنځمه يې دسره غره په شنه کوتل کې ددابنفرپه غبرګه کې ديوي ونې لاندې وکړه چې هغه وروسته د پنځو ونه

یاده شوه . دا چې دی فصیح او قانع کوونکی و شاید له دې امله وچې دی جرګه مار سروال و. ممکن دهمدغو شخصي اوصافو په سبب وي چې دی د خپل پلار قایم مقام وټاکل شو. په هرحال میرویس په مکه اوهندوستان کې د فتواګانو د حاصلولو او په پارس کې وطن ته د ستنیدو په مقصد له علماوو او دولتي مامورانو سره مجلسونه او بحثونه وکړل . په دغو مجلسونو کې یې نوی اومخالف نظریات واوریدل، بصیرتونه زد ه کړل ،اوله سیاست سره لاهم علاقمن شو . له سیاست سره د همدغې علاقې له امله وچې ده خپل هدف ته درسیدلو په لارکې له خپلې شتمنی نه چې هم ورته په میراث پاتې وه او هم یې پخپله په سوداګرۍ سره ډیره کړې وه ، په سخاوت سره استفاده وکړه. ده د خپلو سفرونو ، تجربو او همداراز د خپل د فعال اوبا وقار شخصیت او خپلواکۍ حاصلولو د داعیې په برکت وکولې شول چې په خپل وطن کې علما اوقومي مشران اوخانان تردې اندازې ترخپل تاثیر لاندې راولي چې هغوی خپل مقتدیان اوولسونه د خپلواکۍ د غاصبانو په مقابل کې پاڅون ته وهڅوي. عامه خلک په دې نه پوهیدل چې هغه د ازادي جنګ و . دمولف امان الله هوتک په قول((په ناصرو او هوتکو کې هم عام خلق په دې نه وو خبر چې مونږ د خپلواکۍ جنګیالیان یو.)) خو میرویس دغسې شخص وچې په ډیرو سختو حالاتو کې هم په خپل هدف کې تکنی نه شو . بلکه نور یې هم دهغه په لور و هڅول. تجویزونه یې ونیول اودهغو په برکت او دملګرو په همکارۍ یې وکولې شول پوره خپلواکۍ وګټي، خپلې کارنامې دوپاړ نه ډک سر مشق وګرزوي او خپل نامه ته ابدیت ورکړي. میر غلام محمد غبار دی ((مرد مبتکر و مبارز و موسس بولي )) اواضافه کوي چې (( برای انهدام تسلط خارجي و حصول ازادي واستقلال ملي درګوشه افغانستان عملا راه را بازکرده بود.)) دده نوښتګر تدبیرونه سرې ته د جوزف ستالین ویناپه زړه کوي چې ویلي وه (( ښه د پلوماسي دیوې فرقي کارکوي.)) د پوره خپلواکۍ د ګټلو په لارکې د قومي مشرانو او خانانو بې دریغه ملاتړاو پخپله د میرویس دولسي شخصیت)) له امله و چې ده د خپلې سروالۍ په دورې کې له هغونه خان وچت ونه نیو او یوازې یې د قاید یا سترمشر یا وکیل په لقب اکتفا وکړه . داسې ښکارې چې د خپلواکۍ ګټل، نه حاکمیت چلول د هغه اصلي هدف و .میرویس وروسته له هغه چې قاید شو د مرګ تر ورځې یې

د مشر په حیث سلوک وکړ، نه دامیر یا پاچا په حیث چې خان به دخدای نائب یا سوري ګڼي اوولس به رعیت بولي .ده په واقع کې بوازې خپل خان ، خپله کورني او خپل قام خپلواک نه کړ. ده قومونه هم خپلواک کړل او هم خپلواک پریښودل. خپلواکي ګټل او خپلواکي ورکول د قاید میرویس ستره کارنامه ده.

# دثورانقلاب یادثورکودتا؟

محمدحسن کاکړ

> په دې کې خطر دی چې خپلې مفکورې له نورو څخه واخلی. باید له نورو څخه معلومات حاصل کړې خومفکورې، دتجربو په شان، بایدپخپله ستاواوسي.
>
> لارډاکتن

(دغه لیکنه په کال ۱۳۶۸ / ۱۹۸۹ کې په پېښور کې دآزاد افغانستان دلیکوالو داتحادیې (وفا) په اداره کې په یوه سمینارکې لوستل شوې وه، اودلته په یو څه سمون سره دلومړي ځل دپاره خپرېږي).

په کال ۱۳۵۷ / ۱۹۷۸ کې دثور دمیاشتې په اوومه دمحمد داؤد په سروالۍ دافغانستان دلومړي جمهوریت نسکوریدنه او په ځای یې دنورمحمد تره کي په مشرۍ دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دریدنه داردو کارؤ. دادټول پوځ کار هم نه و. په پوځ کې دهغې برخې کار و چې ستر اتیجیکي مقام یې لاره. دغې برخې له هغه ځای نه دبرحال حکومت دتصمیم نیولو عالي مرکز په چټکۍ سره له کارنه وغورځوه. په یوه حساب یې دلسو او په بل حساب دځلیرویشت ساعتو په اوږدو کې حکومتي واک یا په دقیق ډول دحکومت دسر والي مقام ترلاسه کړ.

دپوځ دغه برخه دپلچرخې دزغروري ځلورم لمبر قواوي اودبګرام هوایي قوه وه. په دې حساب دحکومت نیونه دهغو نظامیانو، په خاص ډول دهغو نظامي منصبدارانو کارو چې تر نورو قواوو څخه ډېر په پیچلو او عصري وسلو سمبال و. ددغو منصبدارانو شمېر دحفیظ الله امین په قول یوازې په کابل کې درې سوه تنه افسران وو. دی په عادي نظامي تمریناتو کې ډېر انداختونه کړي اوځانونه دحکومتي واک غصبولو دپاره تیارکړي وو. تره کی په خلقي پوځیانو باندې دومره ډاډه و چې ویل یې غواړي دزمري په میاشت کې انقلاب وکړي، او په هغه باندې دزمري انقلاب نوم کښېږدي. په هر حال، دغه منصبداران دقوي عقیدې اوټینګې ارادې خاوندان وو، اودکودتا په وخت کې یې دمخالفو منصبدارانو، په تېره دامرانو په محصورولو او وژلو کې له ګرندیتوب نه کار واخیست. له څه کم یولک نظامي افرادو څخه ممکن دوه زره دپاڅیدونکو په پلوې پاڅیدلې وي. سره له دې چې دپوځ سنره برخه دحکومت پرخواوه پیښې په دغسې چټکۍ سره رواني شوې



د یرغلگرو ماتوونکی غازی وزیر محمد اکبر خان

اونتیجه دومره زردپا څیدونکو په ګته تمامه شوه چې مخالف منصبداران دمحمدداوُدلـه مړیني نه وروسته له سرته رسیدلي عمل سره مخـامخ اوپـه ظـاهرکې تسلیم شـول.ښاریـان خوځه کوې چې په دې نیوهېدل چې څوک څه کوي ګوندي لویان حتی دګوند عمو مـي منشي، نورمحمد تره کی، اودګوند منشي، ببرک کارمل،هم په کودتا یـې عمـل خـبر نـه وو. له ګوندي لویانوڅخه یوازې حفیظ الله امین اوله نظامي منصبدارانو سره رابط غـړي چـې هغه هم یوڅوکسه وو،خبروو. امین چې د ثورکودتا دهغه په ابتکار او قوماندې سره دهمدغو رابطو غړیو له لارې دخلقی منصبدارانو له خوا پیل اوبریالی شوه په دغه وخت کې دګونـد دلوړمشرتابه یعني سیاسي دفتر یاپولټبورو غړی هم نه و.دی چې دپخوا نه د تره کی لخوا نه پـدې دنـده ګمـارل شوی ودی دمرکـزي کميـتي غـړي اودخلقـي فراکسیون دنظـامي ګوند یانوآمرو.دثور دمیاشتي په پنځمه اوشپږمه تره کی او کارمل اوپنځه نورګونـدي لویـان بندیان وو، نوریې یاپټ وو او یادچاردهي په کلیواوباند وکـې سـرګردان ګرزیـدل.ګونـدي ایډیا لوګانو په دغه عمل باندې دانقلاب نوم کښېښود، حال داچې هغه کودتـا وه، اول بـه زه دلته دواړه په لنډ ډول معرفي کړم.کودتا دکو(coup ) اودتا (d,etat) نه جـوړه فرانسـوي ترکیبي کلمه ده په معنی د(دولتـي سټروک) یـا(ددولـت سقوط).پـه اصطـلاح کـې کودتـا دحکومت سملاسي نیولوته چې زیاتروخت په تشدد سره ترسره کېږي ویل کېږي. دانقـلاب کلمه دځرخولومعنـي لـري،اوتعریـف یـې یـو اوتاکلـي نـه دي. پـه معنـوي ډول انقلاب دحکومت.ترکیب ته دتغییر ورکولو په معنـی و، چـې هغه لزوماً دزورلـه لارې څه نـه و.پـه دربارکې چې به کوم وزیر تبدیل شو خلکو بـه دغـه تغیـیر دانقـلاب پـه نامـه یـاداوه خـود ۱۷۸۹ کال نه وروسته په دغه تعریف کې تغییر راغي. خلکو دغه کال دېوه نوي ډول انقلاب شروع وباله چې له ماضي سره یې مقاطعه حقیقي وه،اوخصوصیـت یـې تشدداوداجتماعي ، سیاسي اواقتصادي اساسي تحول دپاره نامحدود امکانات وو.خلکو داسي هم فکرکاوه چې دغه نوي حادثه له ملي سرحداتو څخه اوړي اوبوڅه عمومي اوعالمي ده.حتي هغه خلـک هم چې انقلاب یې نامطلوب ګانه په دې موافـق وو چـې انقـلاب ددوي دعصـر دسیاسـت دپاره اساسي و ۱

وروسته انقلابیونو انقلاب هغه عمل ته وایه چې دټولني زیاتره خلک پـه عمـدي ډول حـاکم نظـام نسکورکړي، او پـه ځاي یـې دځپلـي خـوښي ترهغـه ښه نظـام راولي. ولادمیرلینن، دشوروي اتحاد مؤسس چې دشلمي پېړۍ ډیر وتلی انقلابـي دي، انقلاب پـه دي ډول شرح کوي. ((دانقلاب اساسي قانون چې په ټولو انقلابونو په تیره په شلمې پیـړۍ کې دروسیې په دریو انقلابونو سره تائید شوي دي، په لانـدې ډول دي: ددې دپـاره چـې انقلاب وشي دزبیښل شویو اوستم ځپلو ولسونو دپاره کافي نه ده چې په زړې لارې بـانـدې

---

۱- رابرټس ، جی. ام. دنړۍ تاریخ ، دپنګون چاپ کال ۱۹۹۲ ،مخ ۶۹۳

دژوند کولو ناممکني درک کړي، او اوښتون وغواړي. ددې دپاره چې انقلاب پېښ شي اساسي خبره داده چې استثمارکوونکي په زړې لارې باندې ژوند اوحاکميت ونه شي کولی.)) دې وراندې وايي : ((يوازې هغه وخت چې ( لاندني طبقات) ونه غواړي په زړې لارې باندې ژوند وکړي او ( پورتني طبقات ) ونه شي کولی په زړې لارې باندې حاکميت ته دوام ورکړي، انقلاب بريالی کېدلی شي. دغه حقيقت په نورو الفاظو کې هم افاده کېدلی شي. انقلاب بې له عمومي بحران څخه په ټول ملک کې ( چې استثمار کونکي اواستثمار شوي دواړه متاثره کړي ) امکان نه لري . له دينه داسې نتيجه اخيستله کېږي چې ددې دپاره چې انقلاب پېښ شي اساسي داده چې لومړی دکارگرو زياتره برخه ( يا لږترلږه دطبقاتي شعور خاوند په سياسي لحاظ فعال او سوچمن کار گران) پوره درک کړي چې انقلاب ضروري شوی اودوی ددې دباره تياردي چې دهغه دپاره خانونه قربان کړي. دوهمه داچې حاکمه طبقات په دغسې حکومتي بحران کې لتاړ وي چې هغه حتی تر ټولو ببرته پاتې کارگران هم په سياست کې کشوي .)))(( دهراصيل انقلاب علامه دخپل شويو کارگري پرگنو په حجم کې لس چنده يا حتی سل برابره زياتوالي دې چې تر اوسه بې تفاوت او دسياسي مبارزې دکولو مستعددي)) ، حکومت ضعيف کوي، او دانقلابونو دپاره ممکنه کوي چې هغه په چټکی سره نسکورکړي)) لينن داهم وايي چې (( انقلاب دکارگري طبقې داکثريت په نظرياتوکې بې له کوم تحول څخه امکان نه لري ، داسې تحول چې ، پرگنو له سياسي بحران څخه په لاس راغلي دې ، نه هڅکله يوازې په پرو پا گند سره)) ۲

په دې ډول دخلقيانو دواک نيولو عمل حتی پخپله ددوی د ((سترلاربنود)) دوينا له مخې هم انقلاب نه و، خو څنگه چې دخلک دموکراتيک گوند لوبانو او ايديا لوگانو دخپل گوند غړي په انقلابي فکرونو سره مجهزکړي وو، دوی په هغه باندې د ((انقلاب)) نوم کښېښود. انقلاب دگونديانو دپاره دعقيدې په شان سپيڅلي ارزښت پيداکړ اودوی په خپله انقلابيان شول، په داسې حال کې چې په ټولني کې دانقلابي شرايطو څرک هم نه وو، لکه چې وروسته به په دغه ټکي باندې بحث وشي. انقلابيانو سمله لاسه په دې پيل وکړ، چې له ماضي سره پريکړه وکړي . نو يې افغاني تجاربو ته شاکړه. دسر دولتي افغاني ماموران يې په تيره هغوی چې په لوېديځي نړی کې تحصيل کړي وو، ياووژل ، يابنديان ياموقوف کړل او يايي ورته تنزيل ورکړ. ددوی او همدا راز د نورو حرفوي اوملکي ماموراتو په ځای يې خپل گونديان وگمارل، سره له دې چې دوی په دولتي چارو ونه پوهيدل. په عين حال کې يې زيات شمير شوروي مشاوران هم په نظامي او هم په ملکي

۲- لينن ، کين تلونکي کمونيزم ، دماشومانو ناروغي ،مترقي خپرووونکې موسسه ، مسکو ، د۱۹۷۷ کال انگريزي چاپ مخ ۹٦ .

ځانګو کې استخدام کړل او په دوي باندي یې تر غیر ګوندي افغانانو نه زیاته تکیه وکړه. داټول ددي دپاره چې دوی خپل دولت په انقلابي اصولو بناکړي اودهغه له لاري دټولنې دپېړیو پېړیو اجتماعي روا بط سمله لاسه په انقلابي ډول واړوي ، اوکه څوک ورسره مخالفت وکړي، او یا حتی ور سره همکاري و نه کړي ور سره ((انقلابي برخورد)) وکړي ګوندي لوبانو ددغه فکر په اساس عمل کاوه چې ددولت په نیولو سره دوي دخلکو دژوند او مرګ واک ترلاسه کړي اوځنګه چې دوی انقلابیان او دخلکو خد متګاران دي بوازي دوی دولس ستونزي هوارولي، اودولتي چاري په مخ بیولي شي . نور محمد تره کي ویل چې (( مونږ انقلاب کړي، مونږ حکومت کو))

((انقلابي برخورد)) ددوي په خپل سر غوځونکي چلند شو. دولتي شکل اړول اوله نوروسره ((انقلابي برخورد))کول پاروني وکړي خوهغه څه چې ټول و لس یې وېساروه، او ګوند یان ئې ورسره لاس په ګریوان کړل ددوی هغه کوښښونه وو چې غوښتل یې په هغو سره اجتماعي روابط واړوي. دهمد غه مقصد او همدا راز ددولتي شکل اړو لو دپاره یې اته فرمانونه یو په بل پسې په خپل سر وایستل او په حاکمانه ډول عملي کړل داسي چې دعمل په جریان کې یې دخلکو دحقوقو، ار زښتونو او ژوند پروا و نه کړه . ولس په ټول هېواد کې دانقلابیانو پرضد پاڅونونه وکړل،اوانقلابیانو هغه په وچ زور وځپل. په زرګونو یې بندیان کړل، وکړول، او ووژل، سره له دي هم انقلابیانو ناري و هلې چې ددوی دولت دخواري کښو دولت دي. ددوی په فکر ددي معنی داوه چې دوطن بذګران اوکارګران اوپه مجموع کې خواري کښان له خپل بد حال څخه اګاه، له هغه نه بېزاره او دهغه په اړولو پسي وو ، خو په خپله په دې قادر نه وو چې خپلې هیلې او غوښتنې مشخصې اوافاده کړي ، او په عمل کې یې پیاده کړي . نو ددوي رښتیني ځامن یعني هغه نظامي منصبداران کوم چې دافغانستان دخلک دموکراتیک ګوند په خلقي فکرونو مجهزکړي او په ګوندکې تنظیم کړي وو ، ددوي په نمایندګي پاڅیدل اوهغه نظام یې نسکورکړ چې دخواري کښو په زیان او د ((فیودالانو)) ، ((ارستوکراتانو)) ، ((پانګه ورو)) ،(( کمپرادورانو)) او((طفیلیانو)) په ګټه وو .

لکه چې د مخه یې ذکر و شو له خواري کښو نه دګوندیانو مطلب کارګر اوکروندګر وو خودوی په دېرو لحاظو نو سره په اساسي ډول متفاوت وو او د نورو په مقابل کې یې ګډ دریځ نشو غوره کولی. دکا رګر و په باب دغومره ویل بس دي چې په افغانستان کې ددوی شمیر دومره لږ وو ، لکه یو ټاپو چې په سمند رکې وي. بخپله نور محمد تره کي هم په دغه حقیقت اعتراف کړي و. ده په کال ۱۹۷۹کې دمارچ په ۱۸ دشوروي اتحاد دصدراعظم ، الیکسي کاسیګن د یوي تیلیفوني پوښتنې په ځواب کې ویلي وچې ((په افغانستان کې دکارګروشمیرډیرلږدي.)) دغه لږکارګران هم زیاتره

ددولت اولږ یې دخصوصي صنایعو مستخد مان وو. دوی هغسي کارګران هم نه وو کوم چې په لویدیځې اروپاکې دتیري پیړۍ په لومړي نیمایي کې وو . هغه مهال کارګرو په ډیرو سختو شرایطو کې دپه اصطلاح دبخور نمیر په حا ل کې ژوند کاوه . دافغانستان دکارګرو ژوند د اروپا دتیري پیړۍ دکارګرو تر ژوند نه په کرالو ښه وو. لومړۍ ډلې چې دخلقي حکومت په مقابل کې دکومې موضوع په سرکار پرېښود دمکروریانو کارکوونکي وو، چې حکومت دهغو غوښتنه و منله او موضوع یې زرغلی کړه. دکارګرو په خلاف کرونده ګر دافغانستان دخلکو غټه برخه تشکیلوی او افغانستان دورو مځکه والو ملک دي. لوی مځکه وال هم په ملک کې وو، په هرات، فراه، میمنې، کندوز،اومزارکې خو ددي شمېر لږوو. دزرګونو جریبو نو مالکان په ټول ملک کې دګوتو په شمېر وو . دورو مځکه والو ترڅنګه دېې مځکو کرونده ګرو ، زراعتي ، اجاره ګرو او په مجموع کې دبذګرو یا زرا عتي کارګر و شمېر هم ډیروو، اودي. ددوي دژوند په باب دیوه مهم ټکي په نظر کې نیول حتمي دي ، او هغه دا چې د مځکو دحاصلاتو په باب له مځکه والو سره دبذګرو مناسبات دپېړیو پېړیو دعرف او عادت له مخې داسي تنظیم شوي وو ، چې دمځکې دماهیت یعني ښېرازتوب اونا ښېراز توب په تناسب دمځکې په حاصلاتو کې دکرونده ګرو برخه پانیمایي ، پادریمه ، پاځلورمه اویا پینځمه وه اودحکومتي مالیاتواونور غرامالو تادیه هم دمځکه والو په غاړه وه. په کندوز کې دمځکو داجوره کار عایدات دحکومتي او سط مامور له قانوني معاش نه ډیر زو. دمځکې داجاره ګرو عایدات تردې هم زیات وو، او داپه دې سبب چې دوی له مځکونه د خپل زحمت په اندازه حاصلات ترلاسه کول . هو، دهغو بذګرو حال بد و چې بذګري ورته نه پیداکیده . دغسي بذګراونور وزګاران په صناعتي اوتعمیراتي اجوره کارو تبدیلیدل ، او په ښارونو ، په تیره دکابل په ښار کې ددوي شمېر ډیر وو. په دې حساب په یو څه استثني سره کرونده ګردلږو ډیرو شتمنو په لولو سره دمارکستي اصطلاحاتو په اساس دوروبو رژواګانو په ډله کې حسابیدلې شول . داسي شواهد په لاس کې نه شته چې وښیي کرونده ګرو دغسي صنفي یاطبقاتي شعور پیداکړي وو، چې د هغه له مخې خپل کره عیار کړي اود مځکه والو په مقابل کې جګ شي. دوی په هیڅ و خت کې دفیودالي روسي ، یا فیودالي جرمني اویا دفیودالي فرانسي دبذګرویه شان دصنفي روحیې له مخې دمځکه والو په مقابل کې ګډ عمل نه دي کړی . نو عجیبه نه ده چې دوي دخلقي حکومت ترشا و نه دریدل سره له دې چې دغه حکومت دهغو دملاتړ دګټلو دپاره دمځکو اصلاحات عملي کړل ، او په هغه سره یې لویو مځکه والو له دیرش جریبه مځکه پرېښودله ، اضافګي یې ترینه وا خیسته او په یې مځکو بذګرو باندې یې دکورنۍ په سر پنځه جریبه وویشله . په واقع کې حکومت دمځکو داصلاحاتو په عملي کولو سره دپخوانیو زورمنو حکومتونو دتشدد چلند په عمل کې هم تالید کړ او هم یې له هغونه زیات زور زیاتي وکړ . په معاصر افغانستان کې

په تيره دامير عبدالرحمن خان په وخت کې هغومره چې حکومتي عمالو بدګران تکولي مخکه والو نه دي تکولي .مخکه والو دهغو دتکولو دپاره نه حقوقي اونه عملي امکان لاره. داچې يادګر او له هغو سره مخکه وال اوروحانيون دحکومت دنا دودو په مقابل کې يو وخت بل و خت پاڅيدلي دي بايد عجيبه ونه ګڼله شي. دوي هيڅ وخت دمجردو مفاهيمولکه نظام ، صنف، طبقي ، طبقاتي فکر او طبقاتي مبارزي اوداسي نورو په فکرکې نه وو. دمعاصر افغانستان دسياسي تاريخ تر ټولو مهم بعد له حکومت سره دنورو ډلو په تيره دقومونو تصادم ، اودننه په حکومت کې داعلي واک په سرد ډلکيو ، کورنيو او افرادو ترمينځ جګړي دي . نو کودتا يې نظاميان دخواري کښو او بدګرو دفکري او عملي لاري نمايندګان نه شي کېدلي سره له دې هم نو رمحمدتره کې به ويل چې نظامي انقلابيان دخواري کښانو يعني دبذګرواوکارګرو خامن دي . له دغې وينانه دهغه مقصد داوچې هغه څه چې نظامي انقلابيانو وکړل ددوي دخواري کښو پلرونو دهيلو اوغوښتنوله مخې و . دغه توجيه هم سمه نه ده. نظامي ګونديان ټول تعليميافته ګان وو او په هغو کې دځينو دتحصيل موده دولس کاله ، د ډيرو شپاړس کاله ، او دنورو لا اوږده وه . په افغانستان کې تحصيل که څه هم عمومي او وړيا و په واقع کې عمومي نه و دخواري کښو يعني دبذګرو دخامنودپاره په عمل کې ممکنه نه وه چې دومره اوږد تحصيل وکولي شي . په لغمان کې په ابجد، لومړنی ښوونځي او منځنی ښوونځي کې زما بيخي ډير شمير همصنفا نو او نورو تحصيل پريښي دي . زماهغو همصنفانو اوتورو لتحصيل ته دوام ورکولي شو چې کورنيو يې دهغو کارته سخته اړه نلرله . نظامي ګونديان دمارکستانو په اصطلاح دوړو بورژواګانو، غټو بورژواګانو ، فيودالانو او بيوروکراتانو په ډله کې حسابيدل. ځيني يې دواکمني کورنی تبرته هم منسوب وو. په دې ډول دغه نظامي ګونديان دلوړ تحصيل، (چې ډير ويې په شوروي اتحاد کې کړي وو) عايداتو ، سليقې ، جهان ليد، هدف او په يوه کلمه د شخصيت له نظره له عامه خلقو نه متفاوت اوحتی له هغوی سره په مخالف قطب کې وو . د عصري تعليم کړو او خارج ته تللو افغانانو په حيث دوي په دغسي شغل بوخت وو چې سروکار يې له تخنيک ، دولت او قدرت سره وو. دوی عصر يان اودعصري ژوند اوتحول غوښتونکي وو. هغوي چې په ګوند کې تنظيم شوي او له کمونيستي تعاليمو سره اشنا شوي وو متعهد شوي وو . چې دخپل ګوند په دستور او اتکا سره حکومتي واک تر لاسه کړي که څه هم دغه کار په غير قانوني ډول سره تر سره شي . په دي ډول دوی په دغسي کمونستي افکارو کې نغښتي وو چې دافغانستان دشرايطو او دخلکو دذهن محصول نه ، بلکه له خارج نه په تيره له شوروي اتحاد نه ، وارد شوي وو دوی په وا قع کې له خپل ولسُ نه بيګانه شوي وو او په ولسي مبارزو کې يې برخه نه وه اخيستي. ځنګه چې ددوي د ايډيالوجي مرکزي تکي دقدرت تر لاسه کول و دوي په هغه ټينګ ودريدل . دغه ټکي نه يوازي ددوي دپاره بلکه

د ډېرو نورو تعليم کړو يا دنوي تحصيل کړي دلي خواصو (elites ) دپاره هم ډېر جالب و. خو دوی په دي چي نظاميان وو تر نورو نه په ښه موقعيت کي وو . په ډېر و بيرته پاتي ملکونو په تيره په افغانستان کي سياسي او نظامي قدرتونه سره تړلي دي. له ۱۹۵٦ څخه وروسته چي دافغانستان پوځ په خاص ډول په عصري و سلو سمبال شو او د نويو اوپيچلو وسلو داستعمال دپاره منصبداران په باندنيو ملکونو کي تعليميافته شول دوي و روسته د ښه موقف خاوندان وګرځيدل.دغه عنعنوي نظامي ساحه دحکومتي کيد و او دولتي کبد و او په نتيجه کي دواک کتلو دپاره تر هرې بلي ساحي او تر هربل وخت نه زياته مهمه شوه . افغانستان چي دخپل خاص موقعيت له امله دخپل نفوس په تناسب لوي پوځ اوزيات شمير منصبداران لرلي دي په هغه کي يې د ښه استعداد خاوندان جلب کړي دي.

په معاصر افغانستان کي نظاميانو په عمومي ډول او انقلابي منصبدارانو په خاص ډول دملک عمومي سياست ډېر متاثر کړي دي . خو په سياست باندي ددوي اثر دعامه ذهن پرخلاف اودهيواد په زيان تمام شوی دی . ددغه حکم دپه حقه ښودلو د پاره به څو مثالو نه راوړم .دمحمد داوُد دصدارت په دوره کي پخوا له دي چي په کال ۱۹۵۵کي لويه جرګه وغوښتله شي او له هغې نه له شوروي اتحاد نه دوسلو دپيرودلو اجازه ترلاسه شي دپنځوسو ياشپيتو لوړ رتبه منصبدارانو نه يوه لوړه شورا جوړه شوه . محمد داوُد دغې شورانه څرګنده کړه چي دامريکې په ګډون لويديځ هيوادونه نه غواړي په افغانستان باندي وسله خرڅه کړي مګر داچي شرط پرې باندې کښېږدي په داسي حال کي چي شوروي اتحاد هم په مونږ وسله خرڅوي او هم زمونږ دبيطرفي درناوي کوي. نو افغانستان بايد له شوروي اتحاد څخه وسله په بيه واخلي . مشهور مرستيال خان محمد دبوي و ينا په تر څ کي دمحمد داوُد دنظر په ملاتړ څرګنده کړه چي افغانستان ته دپاکستان له خوا خطر متو جه دي او امريکا هم د پاکستان په خوا ولاړه ده . په دي حال کي زمونږ دپاره بله لاره نه شته مګر داچي له شوروي اتحاد څخه و سله ترلاسه کړو . شورا په نږدي اتفاق سره دغه نظروما نه. جنرال اسدالله ساپي ، دملي دفاع د و زارت د محاکماتو رئس، ورسره مخالفت وکړ اودليل يې راووړ چي افغانانو تر اوسه په بيطرفي سره خپل ملک ساتلي او اوس نه ښايي خپل ملک دشورويانو غيږي ته و سپاري . ده دا هم وويل چي مونږ بايد په ديني لحاظ هم دغه کارونه کړو . نو دمحمد داوُد په مشري دنظامي منصبدارانو دغه فيصله دافغانستان دکشالي اصلي منبع ده . دوی په دي نپوهيدل ، ياپې نه غوښتل په دي پوه شي چي دغه شوروي اتحاد دختيځي اروپا له هيوادو نو سره څه ډول سلوک کاوه.

دنظامي منصبدارانو بل مثال هغه خلقي منصبداران او په سر کي يې اسدالله سروري دي کومو چي په خپلو کوندي لويانو زور اچوه چي دمحمد داوُد حکومت بايد ړنګ شي . دوي له دغه درک نه عاجز وو، چي کومه هغه سياسي خلا چي په دغسي عمل

سره منځ ته راتلونکې وه ، ددوی ګوند هغه دکولی نه شوه . و روستی مثال چې دانقلابي منصبدارانو دي لاهم ورانوونکي ثابت شو . دشورویانو په نظامي يرغل سره چې ددوي انقلابي حکومت يې نسکورکړ دوي بايد دخپلو خواري کښو (( پلرونو)) وطن،ازادي، ناموس اوخپلواکي نه ددفاع په خاطرچې د همدغه مقصد دپاره دهغو په پسو اواعتبار روزل شوي ،اومنصبداران شوي وو،دهغه مخالفت کړي واي اويه خپل مخالفت سره خپله ملي اوانساني وظيفه ترسره کړي واي.اما دغو غولول شويوانقلابيانو داچې له خپل پلارني هيوادنه دفاع ونه کړه، برخلاف له غولوونکو، افغان وژونکو او افغانستان نيوونکو سره يو ځاي شول، او دخپلو خوارکښو ((پلرونو)) په خپلو او وژلو او د وطن په ورا نولو کې ور سره حشر شول. ددي دپاره چې دموضوع په هراړخ باندي بحث شوي وي ، بايد دانقلابي منصبدارانو ،او په عمومي ډول، دانقلابيانو نظرهم په پام کې ونيول شي، دوي خپل انقلاب په دي موجهه کاوه چه (( فيوداليزم )) ، ((ماقبل فيودالی حـال)) ، (( پانګه والي)) ، ((کمپرادوري)) او په عمومي ډول دوطن بيرته پاتي توب دوطن زياتره خلک يعني خواريکښ بذګران ، کارګران او بيوزلان د ژوند له ښيګڼونه محروم کړي او دژوند ښيګڼې اودهيواد شتمني يوه مفت خورلړه کې يعني(( فيودالانو ))،(( پانګه ورو)) ،(( روحانيونو )) ، (( اويه بل عبارت))،((حکمراني طبقي )) خپل کړي.ددوي په فکر ددغه حال اودبيرته پاتي توب له مينځه وړل.اوداجتماعي عدالت تامينول له انقلابي لاري نه غير په بله لار ممکن کيدلي نه شو،اودوي دهمدغه مقصد دپاره په انقلابي عمل باندي لاس پوري کړ. دافغانستان وا قعيتونه دغه نظر نه تاليد وي . لکه چې د مخه پري بحث و شو ديـا دوشويو دليلونو ترڅنګه بل دليل دادي چې کومې هغه انقلابي نسخې چې دانقلابي منصبدارانو باندنيواستادانو ايسلي وې اود بيرته پاتي توب درفع دپاره په هغو عمل شوي دي دهمدغو خواري کښو افغانانو اونورو لـه خوا ردشوې دي . دهمدغه مخالفت په وجه ګوندیانو دغه نسخې ورو ورو واړولي او په پخوانيو اشنا لارو باندي يې بيرته يو ن پيل کړ. اوس (۱۹۸۹) دوي په ظاهر کې له خپلو انقلابي معتقداتو نه هم اوښتي او په دغسي سيا ستو نو يې پيل کړي چې ددوي له معتقداتو سره په تضاد کې دي. سره له دي هم دوي له يوه شي نه لانه دي تير شوي ،اونه غواړي له هغه نه تير شي ، يا پوره ترينه تير شي ، مګر داچې ترينه واخيستل شي .دغه شي قدرت دي ، خو اوس چې پري سخته راغلي دانقلاب نوم هم نه اخلي په داسي حال کې چې پخوايي په ډير و قلقلو سره د ((زغورنده انقلاب)) او((دپه شانه تلونکي انقلاب )) په نامه ياداوه .خو داپه هيڅ ډول کفايت نه کوي. دانقلابي منصبدارانو او په عمومي ډول دانقلابيونو ديادو شويو ګروهو ، پريکړو اوکړو نتيجه دڅورکودتا او دبرحال دولت رنګول شول بې له دي چې بل دولت يې پرځاي تينګ شي. دغه حال زمونږ د جامعي دپاره ښه عواقب نه لري. دافغان دتاريخي لويې جامعي دپاره به

تر دې بل سترمصیبت کوم وي چې ددولت یا په دقیق ډول دیوه سیاسي نظام له لرلو نه محرومه وي . دخلق دموکراتیک ګوند د انقلابي سر والانو د قدرت نیولو هڅه سرې ته دبي بي اوکنیزې هغه قصه په زړه کوي چې هرافغان یې په خوله وایي ، مګر هیڅ افغان یې دکاغذ په مخ نه راوړي. دغه ګوند ثابته کړه چې د ایدیالوجۍ دمخې حتی داستعداد اوعزم خاوندان هم حکومت نه شي کولي داخو لا پسه خاي پریږده چې جامعه لـه سره تنظیم کړي دعا وکړئ چې لکه د دغسې ګوند د مشرتابه غړي دافغانانو لـه مینـځ نـه بیا هسک نه شي .

# ببرک کارمل
# خپل یاپردی؟خپلواک یابلواک؟

محمدحسن کاکړ

زمونږهدف باید زمونږ وطن ، زمونږ ټول وطن، او بل څه نه، مګر زمونږ وطن اوسی‌او دخدای تعالي په لطف دغه وطن یوستراوپر تمین یادګار وګرزي، نه دظلم اوترور ،بلکه دعقل، دسولي او دازادي .
ډانیل وبستر

غوارم پـه دغـې لیکنـې کـې دهویـت او ملـي خپلواکـي پـه رڼا کـې په ببرک کـارمل بـاندي یـو څه ولیکـم .

لومـړي بـه یـو څه توضیحـات وړانـدي کـړم . پـه افغانسـتان کـې چـې یـو ډیـر لرغونـی هیـواد دي سیاسـي نظامونـه ډیـرپخـوا تاسیس شـوي و او دملـي دولـت بنیـاد پکـې امیر شـیر علـي خـان ایښی دي خودغـه دولـت دانګلیسـانو پـه دوهـم جنـګ سـره لـه مینـځه لاړ.کـوم هغـه دولـت چـې امیرعبد الرحمـن خـان لـه سـره تنظیـم کړاساساً دلـور ترکودتـا پـوري وپـائید .
په دغـې دوري کـې دغـه اوسـنی افغانسـتان هسـک شـو، اود ((دولـت خـداداد افغانسـتان)) پـه نامـه ددغسـي دولـت بنیـاد پکـې کـښیـودل شـوچـې پکـې دلومـړي خل دپـاره متحـد الشـکله سیاسـي ،اقتصـادي،حقوقـی،اوپـولي ، نظامونـه دپـاچـا پـه سـروالي سـره تاسیس شـول،اوپـاچـا پکـې درسـول د((نـایب)) او (( دخـداي دسـوري .)) پـه نامـه نـړدي لـه نـامحد ودو اختیـاراتو څخـه بهره مـن وګڼل شـو.

دپـاچـا امـان الله خـان پـه پـاچـایي کـې دخلکـو برابـري پـه اساسـي قـانون کـې چـې پـه ۱۹۲۳کـې وایسـتل شـوه، ومنلـه شـوه ، او د ملـي او مدنـي ټولنـې د جوړولـو پـه لـور لومړنـې ګامونـه واخیسـتل شـول، پـه دي معنـي چـې پـه دغـه قـانون کـې ومنلـه شوه چـې ((تمـام مـردم افغانسـتان نـزد دولـت حقـوق مسـاوي دارنـد.)) د (( برابـرو حقوقـو )) افغانـان پـه اساسـي قـانون کـې پـه دغـه

عباراتو ازاد هم اعلام شوي ، (( تمام مردم افغانستان داراي ازادي هاي فردي اند.)) او((حريت فردي ازهرگونه مداخله وتعرض مصئون است.)) بل غټ او ښتون دپاچا په مقام کې راوستل شو او هغه داچې پاچا(( ... بر اساس اصول شرعيت ومواد اين قانون حکم خواهد راند واستقلال راحفظ وبه ملت وفادار خواهد ماند)) په دي دول دپاچا پخواني نبودي نا محدود اختيارات محدود شول، اودغه اختيارات هنم بايد د(صدر اعظم ) او ( وزيرانو) له خوا چې پاچا به يې غوره کوي ، عملي شي ، داتول تغيرات په دغسي يوه نوي افغانستان کې ومنل شول، چې داساسي قانون په ژبه ((... دراجراي امور داخلي وخارجي اش کاملاً آزاد ومستقل است.)) ددغه قانون غټ اهميت په دي کې دي چې هغه د آينده قوانينو دپاره سرمشق وگرزيد. دپاچا محمد نادرخان قانون د((سلطنت مستقله افغانيه)) او((تابعيت افغانيه)) اصطلاحاتو په خايولو سره لاهم ملي بنه غوره کره. ۳۳ کاله وروسته په ۱۹۶۴ کې دمحمد ظاهرشاه په پاچايي کې بل نوي اساسي قانون وايستل شو ، چې هم دمحتوياتو او هم دعملي کيد و په وجه هم تر پخوانيواوهم تر وروستيو قوانينو نه مهم او په ملي ژوندانه کې اغيز ناک ثابت شو.په هغه کې ومنل شوه ، چې ((حاکميت ملي درافغانستان بملت تعلق دارد)) دغه ملت دقانون په ژبه (( توسط ... وري درحيات سياسي مملکت سهم ميگيرند.)) په عمل کې همد غسي وشول . خلکو دوه خلي دولسي جرگې غړي په دغسي ازاد دول غوره کړل،چې هيڅکله يې په دغو مره آزادي سره نه و انتخاب کړي. په خپله پاچا دملي حاکميت تمثيل کوونکي وښودل شو، چې وظيفه يې (( داسلام دسپيڅلي دين )) ، (( دوطن استقلال )) د(( ساحې بشپړ توب)) د(( اساسي قانون )) او د((خلکودحقوقو)) ساتل تعين شو ل. په قانون کې دافرادو مجموعه دملت په نامه ياده شوه په دغو الفاظو چې (( ملت افغانستان عبارت است از تمام افراديکه تابعيت افغانستان رامطابق با حکام قانون دارا باشند.)) دملت هر فرد افغان په نامه اعلام شو په دي دول چې (( برهر فرد افراد مذکورکلمه افغان اطلاق ميشود.)) کومې هغې لويې جرگې چې دغه قانون غوره کړ دافغان کلمه داسې تعريف کړه: ((مقصد ازکلمه افغان اين است که هر فرد افغان که در افغانستان زندگی ميکند وتبعه افغانستان است از هر قوم و قبيله ايکه باشد افغان گفته ميشود. )) اساسي قانون دوي موظف وگرزول چې

((دفاع از وطن وظیفه مقدس تمام اتباع افغانستان است)) دغه تول ارزښتونه په هغه اساسي قانون کې هم ومنل شول، چې دمحمد داؤد خان دجمهوري دولت په دوره کې په ۱۹۷٦ کې وايستل شو. په دغه قانون کې لا (( دفاع ازاستقلال، حاکمیت ملي، وتمامیت ارضي )) په اوله ماده کې اعلام شول، خو په دغه قانون کې يو شمير اقتصادي منابع دولتي اعلام شول، او په دې ډول دولت ته لار څه سو شلستي بنه ورکړل شوه.

په يادو شويو قوانينو کې يادشويو ارزښتونو دافغانانو په زړونو کې لاهم ټينګ ځايونه لرل. په هغه بر سيره افغانان خپلو کورنيو، خپلو قامونو، او خپلو ناموسونو ته هم په ټينګ ډول وفادار وو. دوي دغو ارزښتونو ته خپله وفاداري دافغان او انګليس په جنګونو کې په عمل کې په اثبات رسولې وه. باندينيانو په تيره انګليسانو دهمدغې وفاداري په وجه دوی ته په مجموع کې دافغان ملت،او افرادو ته يې افغانان ويل. دافغان کلمه حتی دامير شير علي خان په سکوکې هم کښل شوي وه. دغو ارزښتونو دشوروي تر ير غل پوري بديهي شکل غوره کړي وو. په عين حال کې په جامعې کې نور ارزښتونه هم رادننه شول، ار دتعليم کړو افغانانو مغزونه تسخير کړل، چې له هغونه يو هم ببرک کارمل و.

ببرک کارمل په خاص ډول وروسته له هغه په ملي او بين المللي ډګرکې نوم وايست چې دشوروي اتحاد حکومت دي د۱۹۷۹ کال ددسمبر په ۲۷ مه په کابل کې دوزيرانو دعالي شورا او دانقلابي شورا درليس يعني د افغانستان دحکومت او دولت دسروال او په عين حال کې دخلق دموکراتيک ګوند دعمومي منشي په حيث په اقتدار راوست. دغه عمل دافغانستان دپورته يادوشويو تولو اساسي قوانينو دارزښتونو، دافغاني تولني دارزښتونو او د افغانانو دغوښ اکثريت ددهن پر خلاف ؤ. البته کارمل، دهر بل افغان په شان، حق لاره چې دغه مقام ته ځان ورسوي، خو نه دادده حق و، او نه ور سره دافغان ملت منله چې دی دې دشوروي په پوځ او زور سره حکومتي او دولتي مقام تر لاسه کړي. ده ولي دغسې وکړل، او ګوند يې ولي دده دريخ ومانه.؟ ددغې پوښتنې خواب ددوي دوينا وو او ليکنو له مخې دادي چې دوي غوښتل دسو شلستي نظام له لاري خپلو وطنوالو ته خدمت وکړي. دلته به په دغه فکر باندي چې هغ سم دي يا ناسم دي، او په افغانستان غونډي هيواد کې هغه دتطبيق وړدي يانه دي بحث ونه شي. خودا به

دافغانستان خلک ور سره ونه مني ، لکه چې عملاً یې ونه منله ، چې دوي یا نور افغانان دي دباندني پوځ په زور دحکومت او دولت سروالي خپله کړي. داچې ددغه فکر خاوندانو دشوروي پوځ له لارې دولتي واک تر لاسه کړ، او په دې دول دهمدغو خلکو دحاکمیت حق نقض کړ، پو خرګند حقیقت دی خو داچې دوي افغانیت ترک کړي وو، یا داچې دوي خانونه نیمګړي افغانان ګرزولي وو، اویایې دافغانیت پر خلاف عمل وکړ ، بحث غواړي .

پخواله دې چې پورتنه موضوع تر بحث لاندې ونیسم ، غواړم دافغان دکلمې په هکله چې دهغې په باب په همدغه اثر کې دمحترم محمد معصوم هوتک او زما په یوې بلې لیکنې کې بحث شوي، یو څه ووایم.

دافغان اصل اسواکا (Asvaka) اسواک ؟) دي ، چې دلومړي ځل دپاره په مهابارانا (Mahabarata ) ، دلرغوني هند په هغې حماسې کې ذکر شوي چې تر عیسوي میلاد نه دمخه ۱۲۰۰ کال کې کښل شوي دي ، اسواکا ، اسواغا نه (Asvaghana) دسانسکرت ، یا لرغوني هند دژبې تر کیبې شکل داس والا، یا اس سپور ، اوهم داس سور دهیواد په معنې دي. اسواکا په زره پارسو کې دابګان ( Abgan) ، اوګان ( Avgan) ، او په هندي کې داوا ګانه( Avagana) په شکل راغلي، چې وروسته په اسلامي دوره کې افغان شوي دي . دري ویونکي اوس هم افغان داوغان په نامه یادوي . ( دپښتون کلمه تر اسواکانه هم لرغوني ده ، او هغه دویدي دوري په ریګویدا کې له نن نه دري زره کاله دمخه منځ ته راغلې ، دپکتاس یا پختاس (Pakhtas ) په شکل، او دلرغوني یونان دلومړي مورخ،هیرودوت ( ترمیلادنه دمخه پنځم قرن) په عصر کې د پکتو یس یا پکتیس (Pactyes ) په بڼه قید شوي ، چې دپکتیک یا پکتویک (Pactyic ) دهیواد او سیدونکي و۲دافغان یا اوغان کلمه دنورو له خوا دپښتنو دپاره په کارېده ، خودوي خپل خانونه په هغو نومونو یادول چې وروسته پښتانه ، پشتانه ، یاپختانه شول .

دلته دلاندې ټکو په نظر کې نیول لازم دي . یو داچې دافغانستان هر تبعه ، که څه هم دافغان په نامه یا دشو، دهر قوم افرادو دنورو قومونو دافرادو په مقابل کې خانونه خپل قوم ته منسوب بلل ،اونورو پښتانه دافغانانو په نامه هم یادول. بله داچې دافغان کلمه له هیواد یعني له افغانستان سره نښتي ده، اولکه چې دمخه مې وویل افغان

اوافغانستان(افغان ستان ) دواړه هم داس سورو ، اوهم دهیواد په معني دي. داسي بنکاري چې دوخت په تیریدو سره دافغان نوم یوازي خلکو یعني پښتنو ته مختص شوي ،اوهیواد یي دنوروو له خواد(( جبال الافغانیه کشور افغان ، مرز افغان ،حدافغانیان ، او [همداراز] دافغان په نامه یادشوي دي ،)) ۳ او بیا افغان افغانستان شو ، په داسي حال کې چې په خپله پښتنو له هیرو دوت نه په را وروسته مهالونو کې خپل هیواد دپښتونخوا یا روه په نومونو یادوه.دافغانستان نوم دمورخ سیفي په تاریخنامه هرات کې ۳۴ کرته ذکر شوي دي . دغه اثر دخوارلسمي میلادي پېړي د۱۳۱۸ او ۱۳۲۲ کلونو په مینځ کې لیکل شوي دي . دامیر شیرعلي خان او امیر عبد الرحمن خان په وختوکې دافغانستان پولي دلومړي ځل دپاره دبین المللي توافقاتو په موجب وټاکلي او حد بند ي شوي، او دافغانستان نوم له هغه وروسته په ملي او بین المللي سطح کې رسمي اوعام‌شو. ۴ بله داچې پخواله دې چې په قانون کې دافغانستان نه دفاع دټولو اتباعو وظیفه وګڼله شي ، دوی دوطن په دفاع باندي ټینګ ولاړ وو. دوي خکه دوطن په دفاع باندي ټینګ ولاړ وو، چې دوي ، ددوي پلرونه ، اوددوي نیکونه له همدغه وطن سره په روحیاتي او د ژوند په لحاظ تړل شوي وو. وطن یا هیواد دوی ته هسي یو جغرافیوي موقعیت نه و. هغه ددوي مینه وه اود ما یکل ګل ون په نظر((څنګه چې دهیواد اصطلاح دیوه ځا مېنې ته راجع کیږي ، هغه تر ټولو موښساتو څخه دیره سپېڅلي ده.مېنه یوازي په جغرافیوي حس سره موقعیت نه دي ، بلکه هغه هغه ځاى دي چې یو څوک وریوري اړه لري . مېنه دارزښت سر چینه ، دژبي منشأ ، او هغه نغري دي چې له هغه ځاي نه دکورني دتقلید وړ لو یان هسک کیږي . داهغه ځاي دي چې هلته یو څوک یو څوک کیدلي شي .)) ، له همدي امله افغانان دایتالویانو او جرمنیانو په شان ، خپل هیوادته پلارني هیواد وایي ، او څنګه چې دغه هیواد د(( دیرو ارزښتونو ، په شمول دعنعني ، ژبي ، تاریخ ، اوعرقي هویت سرچینه ده ، په اساني سره لیدل کیږي چې هغه وخت چې دغه ارزښتونه وتر ټل شي،یوڅوک دهغو ددفاع دپاره وسلوته لاس اچوي.)) ۵ . افغانان دخپل هیواد نه ددفاع په لارکې حتي ددنیا دستر و فاتحانو ، او امپراتورانو په مقابل کې په میړاني سره جنګیدلي ، اویه دي لار کې یې دومره دیري قرباني ورکړي . چې شاید نورو خلکو له خپلو ملکونو نه ددفاع په لار کې نه وي ورکړي . په دي دول دافغانانو او په خاص دول دپښتنو هویت او پېژند ګلو ي په افغانستان پوري مبنلي ده. له همدي امله به وي چې پښتو په حماسي اشعارو کې دوطن تر نورو ژبو نه دیره غني ده ، او دملنګ جان تراني جوک نه لري . څنګه چې افغانستان یو دیر لرغوني هیواد دي ، او څنګه چې پښتانه په هغه کې په زرګونو کلونو اوسیدلي دي ددوی دغه هویت ددغې اوږدي مودې په بهیر کې ښه ټینګ شوي دي . نو دافغانیت غټ عنصر وطن ، یعني افغانستان ، تشکیلوي ، اویو افغان دخپل وطن او دخپلو وطنوالو په قرینه ، اوا ر تباط کې خپل شخصیت تکمیلوي ، خان ازادګڼي،او په مجموع کې خپل ملت ته په واکمني

باندي معتقد وي . په اصل کې دغه عقيده دوی ته له خپلو نيکونونه په ميراث پاتې ده ،او دوي دهمدغه ميراث په برکت اودخپلي ميراني او په همت دسيمي په خلکو کې په ازاد اوسيدلو او له وطن نه ددفاع په لار کې نوم ايستلي ، اوددغو اوصافو له برکته يو سر لوړي ملت کڼل شوي دي . سره له دي هم کارمل،کارمليانواوپه کارمل پوری اړوند دافغانستان دخلق دموکراتيک ګوند درهبری غړو په خپل پلارني وطن باندي دشورويانو نظامي برغل ومانه او ديته يې غاړه کښيښوده چې دهغه عمال ددوي په خپل وطن کې پري باندي واک وچلوي . ماهيځ فکر نه کاوه چې افغانان ، هغه هم په اصطلاح روښانفکر افغانان به چې دخپلواکي په ارزښت پوهيږي ، خپل افغا نيت به چې خپلواکي يې يو عنصر دي ، په سوويتيزم باندي بدل کړي ، چې بلواکي يې غټ عنصردي. دابه سمه نه وي چې وويل شي دوی افغانان نه وو .دوي افغانان وو.خو افغانيت يې ناقص شوي وو.دغه حکم بحث غواړي، اوزه به دلته دغه بحث په ببرک کارمل باندي پيل کړم ، په دي هيله چې معلومه کړم هغه څومره افغان پاتې شوي او څومره شوروي شوی و. دغه بحث به په کارمليانوباندي هم رښا واچوي ، څکه چې هغوي په خپله اراده هغه ته هغسي تسليم شوي وو، چې لکه ديوي طريقي مريدان خپلو مرشدانو ته تسليم شوي وي .

دکارمل په هکله په ډيرو خپرونو کې معلومات شته ، خو هغه هم لږاو هم غير دقيق دي. هغه څه چې زه يې دلته دهغه دسوانح په باب په کاروم ، په هغو معلوماتو بنادي ، کوم چې ماله محترم پوهاند ډاکټر عبدالغفار متوکل،اومحترم سپينتا حسين خيل څخه ترلاسه کړي دي. ، دواړه کارمل او دهغه کورنۍ له نږدي نه پيژني او دواړو ماته دهغو په هکله ليکلي معلومات لطف کړيدی دي. پوهاند متوکل دنجات په ليسه کې دکارمل همصنفي او دهغه تر بندي کيدو ، يعني تر هغه وخته پوري چې کمونيست شوي نه و، دهغه ملګري و. پوهاند متوکل په پوهنتون کې له تدريس نه برسيره دمرکزي روغتونو سرطبيب هم و.

ببرک کارمل په کال ۱۹۲۹ کې دکمريو په کلي کې دغسي پلار اومور څخه پيدا شوي ، چې دافغانستان له تابعانو څخه وو.دکمريو کلي دکابل دښار په شل کيلو متري کې دجنوب شرق په لور دچکري منارد غره شمالي دامان کې پروت دي. غرب ته يې دشيوکيو او سهاکو ، ختيځ ته يې دحسين خيلو او بت خاک کلي پراته دي. شمال ته يې دبګراميو کلي اوچمن پروت دي . زياتره خلک يې په دري اولږيي په پښتو خبري کوي،خو دببرک نيکه،ميرزامحمد هاشم خان دکمريوله کلي نه نه و .هغه لا له افغانستان نه نه و. دمحترم سپينتا په وينا دکلي په خلکو کې اوس هم ويله کيږي . چې دي دکومې مور له خوا حرامي زيږيدلي

او دعرب خان په جومات کې دشپې له خوا اچول شوي ، اودغه ماشوم بیا دکلي خان ، عرب خان ، لوي کړي دي . خو محترم سپتنا دغه اوازه بې بنیاده ګڼي او وایي چې ((خپله میرزا محمد هاشم په ټول افغانستان کې ...نه پلار لري، اونه مور ،نه کاکا ، نه ماما ، او هیڅ خوک داثابتولي نه شي چې دي به دنني افغانستان وي .)) دده په قول (( میرزا محمد هاشم خان دکار ګذار په نامه [په] رسمي دولتي دفتر کې با صلاحیته مامورو. دغه رسمي دفتر په دولتي تشکیل کې انګریزانو په کال ۱۸۷۹ کې دخپل اشغالګر پوځ په مرسته خینې منطقې اشغال کړې وې نو دغه دفتر دجنرال فریډرک رابرټس نومي له خوا په کابل کې پرانستل شو ، چې ددغه دفتر په مرسته داشغال شویو کلو باندې ونه مالیات اومحصولات راټولیدل،او داشغالګر پوځ دخوراک اوځښاک ټول ضروریات ددغه . دفتر په ذریعه اکمالیدل، چې انګریزانو دخپل اعتماد وړ کار کوونکي میرزا محمد هاشم هلته مقرر کړي و .)) دي وړاندې لیکي چې ((دکلي اکثرخلک په دي عقیده دي چې میرزا محمد هاشم اصلاً له کشمیر نه انګریزانو سره جوخت کابل ته راغلي دي .))

میرزا محمد هاشم خان له افغانستان نه دانګریزانو له وتلو نه وروسته کشمیرته ستون نه شو ، او په کمریو کې یې هستوګنه غوره کړه ، خودي هلته هسې خوار کشمیري مهاجر نه ، بلکه دښه ژوند اوعزت خاوند شو. غټ دلیل یې دادي چې ده دخپل ماموریت په دوره کې ددغه کلي له خانانو ، صدرالدین خان او همداراز ، له عرب خان او دهغه له زوي ، محمد عمر خان ، سره روابط ټینګ کړل ، ان تر دي چې محمد عمر خان خپله خور هغه ته په نکاح کړه او دخور په ټیکري کې یې (( ډیره اندازه ځمکه )) ورکړه . محمد عمر خان ملا خیل ته منسوب ، او دکلي خان و. په کلي کې دری خیلو نه اوسي په نامه دملاخیل، میر بې خیل او مندی خیل. دغه خیلونه چې یوازي په همدغه کلي کې میندل کیدلي شي ، خانونه عربان بولي ، خو دخانۍ او ملکۍ په سر یې سره سخت رقابتونه اوجنګونه کول او لا س بري به زیاتره دملا خیلو وو. دغه خیل دمیرزا محمد هاشم خان په مرسته لا دزیات اعتبار خاوند شو په دي چې دهغه یو مشر ، صدر الدین خان ، دهغه په کمک سره دفعه دارمقررشوي وه. او دي تر مرګه پورې دانګریزانو مواجب خور و، او له مرګ نه وروسته یې هم معاش دانګریزانو له خوا دده وارثانو ته تادیه کیده . دهغه وارثانو دده معاش دحسام الدین په ذریعه له هندوستان

شخه هر کال په لاس راوړ. حسام الدین هم ملاخیل ، او دهغه زوي کرام الدین کاکړ و، خو ده په دي دکاکړ تخلص خانله غوره کړ ، چي موريې کاکړه وه. په هر حال ، میرزا محمد هاشم خان ددوو خامنو خاوند شو : محمد حسین او گل حسین. محمد عمر خان خپلو دغو خوریو ته بیاخپلي لوني واده کړي. له محمد حسین خان نه دري خامن دهمدغي ښځي له خوا پیداشول چي نومونه یې سلطان حسین ، سلطان محمود ، او سلطان مسعود شول . داهسي نومونه دي چي دهندوستان په مسلمانانو کي زیات رواج لري، او دوي خپل نومونه واړول چي افغاني بڼه ورته ورکړي : دسلطان حسین نوم ببرک ، او دسلطان محمود نوم محمود بریالي شو. ببرک بیا وروسته له هغه چي په کمونیزم باندي معتقد شو ، دکارمل لقب غوره کړ خو دکارمل کلمه لکه هسي چي ښکاري دکار ملګري په معني به وي نه ده. د یو بل راوی په قول هغه (سلطان حسین) د خپل نوي نوم (ببرک کارمل) لپاره د تصور په تال داسي خیالي تصویر جوړ کړي و چي د کارل مارکس او ولادیمیر لینن د نومونو سره په پیوند کي چي په هیڅ منطق او لیک دود سره پیوند نه نیسي، پیونداوه په دي دول.




ددغه لقب ایستل یا جوړول پخپله دکارمل نوښت نه دي. هغه د همدغه راوي په قول ((په اغلب گمان چي شاه محمد دوست ... دکارل مارکس او لینن له نومونو نه جوړکړي دي)) شاه محمد دوست دغه نوم په اصل کي په خپل زوي باندي ایښي و ، او کارمل بیا دهغه په اجازه خپل تخلص وگرزوه. په هر حال، دببرک کارمل مور د محمد عمر خان لور ، اودهغه دزوي محمد حنیف خور، اوملاخیله وه، چي دغه خیل په اصل کي عرب دي ، (محمد حنیف دمشهور پرچمي عبدالوکیل پلار دي ) او دکارمل پلار دمیرزا محمد هاشم خان کشمیري زوی دي . په دي حساب ببرک کارمل دمور له خوا عرب او دپلار له خوا کشمیري دي .

البته میرزا محمد هاشم خان په افغانستان کي لومړني کشمیري نه دي . تر هغه دمخه هم کشمیریان په افغانستان کي اوسیدل. کشمیر چي داحمد شاه دراني په وخت کي په ۱۷۵۲ کي نیول شوي و، تر ۱۸۱۸ پوري دافغانستان دامپراتوري یوه برخه وه . په دغه مهال کي او

هم وروسته له هغه چې دپنجاب مها را جه ، رنجيت سنګهه ، پرې باندې مسلط شو ، له کشمير نه ډير خلک کابل ته راغلل ، لکه چې له نيولو نه وروسته يې افغانان هلته تللي وو . دامير شير علي خان په وخت کې په کال ل ۱۸۷٦ کې چې دقاضي عبد القادر تر څارنې لاندې دکابل اوسيدونکي وشميرل شول ، ټول شمير يې ۷۰۰ ، ۱۴۰ تنه وټاکل شو ، او دکشمير يانو شمير پکې درې زره تنه وو . ٦
ببرک کارمل په کمريو کې هم ژوند نه دې کړې چې داطرافي او کليوالو خلکو ارزښتونه يې خپل کړي وي. هغه ترڅو دې خپل ټول عمر دکابل په ښار کې تير کړي ، څو هلته هم نه په يوه محل کې ، او نه ټول وخت له خپل فاميل سره . دې په داسې حال کې چې دپلار کورېې په کمريو کې و ، په کابل کې دنجات په عالي ښوونځي کې شامل شو ، او هلته يې دعبدالرشيد خان په کورکې ژوند کاوه ، چې دمور خپلوان يې و. دهغه کور دنجات ليسې ته نږدې په جوي شير کې واقع و. کارمل به کله دخپلې عمه ميره ، غلام فاروق خان کره هم اوسيده . دهغه کور دپرانچه په ګذر کې وچې دمرده شويانو په کوڅې هم ياديده . غلام فاروق خان ټيلګرافي دمحمد نادر شاه له وژل کيد ونه وروسته بندي شوي هم و. په دغه وخت کې دکارمل پلار چې له يو نظامي مستعجل کورس نه فارغ شوي و، دهغه عالي نظامي کورس قوماندان مقرر شو ، چې دلوړ رتبه منصبدارانو دپاره جوړ شبو وو . هغوي چې دترفيع وخت يې نږدې و، او ددې دپاره چې ترفيع وکړي بايد دغه کورس ولولي . په دغه کورس کې چې دملا لي ليسې ته نږدې واقع و، جرمنانو تدريس کاوه. په هغه کې سردار محمد داوُد ، سردار اسدالله سراج ، محمد اصف خان ، مشهور په قوماندان اصف خان هم شامل و. کارمل به دخپل پلار دليدلو دپاره هلته له او په دغه ترڅ کې يې دکورس له يو جرمنې استاد، مايور، سره چې دپلار استاد يې و پېژند ګلوي پيداکړه ، او دهغه له لوري سره يې ددوستي تا روغزوه. له هغو نه به يې دجرمني هيټلرد فتوحاتو ، او نازيزم په باب مجلې او عکسونه ترلاسه کول ، او صنف ته راوړل. دهمدغې پېژند ګلوي له امله به و ، چې کارمل دغې عصري کالي اغوستل چې دجرمني خوانانو په شان مطوم شي : شا پو ، نيمه اروپايي پتلون ، او لنډ لستوني کميس. نورو شاګردانو دغې کالي نه اغوستل. ببرک کارمل په ځوانۍ کې مذهبي احساسات لرل ، او يو وخت بل وخت به په دهمزنګ کې دعلم اوجهل دمنار په وړاندې لاس په دعا ولاړو . په مکتب

کې‌یې‌تبارزنه لاره . پلاریې دعالي نظامي کورس له اکمال نه وروسته دغزني په فرقه کې مقرر شو ، او له هغه وروسته یې خپل فامیل دکابل په شهر اراکې په یوه کرایي کورکې هستوګن کړ. محمد حسین خان یونیم کال وروسته له هغه چې در پشخورو په فرقه کې قوماندان مقرر شو ددهمزنګ بندي خاني شاته بل کرایي کور ونیوه . وروسته یې دکابل ښار والي نه په نوي ښارکې یوه نمره خمکه تر لاسه کړه ، اوهلته یې دوه کورونه ودان کړل ، چې په یوه کی په خپله اوسیده ، او بل یې ګوداکبر اعتمادي ته په کرایه ورکړ . اعتمادي له ښه نامه نه بهره من نه و، او ببرک دکرایي اخیستلو له لاري دهغه په کورکې لار پیداکړه . هلته به دي هم په (( خورد ونوش )) کې اخته شو ، او له کرایي نه به تیریده. دغه کاریې دپلار دپاره دمنلو وړ نه و. دمحترم پوهاند متوکل په الفاظو (( یک روز عصر وقتي من بدیدن ببرک بخانه شان رفتم مشاهده نمودم که در حویلي کتاب ها حریق شده وپدرش ببرک رابا میز ، مشت ولغت میزند ومادرش فریاد میکشد . وقتیکه داخل [حویلي] شدم فرقه مشر صاحب به عصبانیت گفت : غفارجان ! این ببرک خاین مرا بدنام ساخته نزد حکومت روي ندارم ، برایش نصیحت کن . هر گاه ازاین رفقاي هر جایي خود دست ور دار نمیشود . این خانه براي او نمیباشد .)) دابه چېې کتابونه وو، چې ببرک کارمل به حتي دمکتب په دوره کې هم لوستل.دي دمطالعي خاوند و ، مګر دچپي کتابونو مطالعه یې دپلار دپاره دمنلو وه، دا اوله ((هرجایي رفیقانو)) سره دهغه محشوریت دپلار اوزوي تر مینځ اختلاف خلق کړ. داختلاف بله موضوع دمحمد حسین خان بله ښځه کول و، له پورتنی پیښې نه زر وروسته دببرک مور مړه شوه ، او کوند پلار یې خپله کونډه ورینداره چې ښینه یې هم وه، په نکاح کړه. ببرک له دغه کار سره مخالف و. ماله نو رو کسانو څخه اوریدلي دي ، چې ببرک له هغې یعني له خپلي خاله سره هم جوړ و. له هغه وروسته کارمل اناهیتا کورته بلله . اناهیتا چې له امریکې نه دنرسنګ دکوم کورس له ویلو نه وروسته ستنه شوې وه ، په ډاکتر کرام الدین کاکړ واده وه . ددوي دوستي محمد حسین خان زوروه ، لکه چې محترم متوکل وایي (( این موضوع محمد حسین خان را رنج میداد ، وبمن گفت : (( ببرک خاین با خانم کاکا ي خود معاشقه مینمًاید .)) دببرک کارمل دپاره کو ر نو کور نه و ، کله به دمحمد زمان خان کره اوسیده ، او کله یې دحقوقو دپوهنځي په لیلیه کې چې دشاه دو شمشیر ه زیارت تر شا دښلام

نبي خان ځوځـي پخوانـي کـو رو ، لـه غـلام جیلانـي بـاختري ، محمـد امـان . اورنـګ اونـورو سـره شـپې تـیرولې. محتـرم متوکـل وایـې (( بـبرک از خانـه ګریـزان شـده بـود وبـه دامـن ایـن وآن مـی افتـاد . در آواخـر در خانـه محمـد نبـي خـان ، معلـم پشتوي مکتـب نجـات واقـع جمـال مینـه زنـدګی میکـرد ، تـا وقتیکـه جیلانـي بـاختري در جمـال مینـه خانـه ابـاد کـرد ورفقـا را در انجـا جمـع مینمـود نـد ، وجلبسـه میکردنـد، امـا ایـن جلبسـه هـا سیاسـي ګفتـه نمیشـد ، چـون همـه مصـروف فـلاش وقمـار میبودنـد.)) جـلالي بـاختري دکـارمل دخالـه زوي و . داوخـت کـارمل دحقوقـو لـه پوهنـځي نـه فـارغ شـو ي و.

دکـارمل دتحصیلاتـو پـه هکلـه مـې دقیـق معلومـات تـر لا سـه کـولي ونـه شـول. داسـي ښکـاري چـې دي پـه کـال ۱۹۴۸ کـې دنجـات لـه لیسـې نـه فـارغ شـو ي وي . غوښتـل یـې دحقوقـو پـه پـو هنـځي کـې تحصیـل وکـړي ، خـو دپـو هنتـون ریـس ، ډاکـتر محمـد انـس ، دي پـي سـي بـي تـه معرفـي کـړ ، پـه دې دلیـل چـې کـارمل دنجـات دلیسـي دسـاینس لـه څانـګې نـه فـارغ شـو ي وُ. پـي سـي بـي دفزیـک ، کیمیـا ، او بیـالوجي لومـړي تـوري دي ، اودغـه سـخت کـو رس چـې دیـوه کـال دپـاره و ، دطـب پـو هنـځي دپـاره حتمـي مدخـل و. کـارمل دغـه کـو رس لـه څو میاشـتو نـه وروسـته تـرک کـړ. شـاید دا پـه کـا ل ۱۹۵۰ کـې و . پـه دغـه وخـت کـې دپوهنتـون دمحصلانـو اتحـا دیـه چـې دمحصلانـو لومړنـی اتحادیـه وه دسـردار شـاه محمـود خـان دصـدارت پـه دوره کـې دپوهنـې دوزیـر ، فیـض محمـد خـان ذکریـا ، لـه خـوا منظـور شـوې وه ، او پـه فعـالیت یـې پیـل کـړي و . دغـه اتحادیـه دمـالي ، انظبـاطي ، اواداري کمیټـو پـه لرلـو سـره ښه فعالـه وه،او پوهـاندا متـو کـل یـې مرسـتیال و ، دچارشنبي پـه ورځـو کـې یـې داسـتقلال پـه کـول کـې پـه زینـب ننـداري کـې کنفرا نسـونه ورکـول. کنفرانـس ډیـر او ریدونکـي لـرل ، چـې یوبـې زه وم. اتحادیـه لـه صنفـي حـد نـه اوښتـې ، او پـوره سیاسـي شـوې وه ، او دورځـي موضوعـات یـې څیـړل. پـه دې ډول دغـې اتحـا دیـې دوینښ زلمیـان ، وطـن ، اونـداي خلـق لـه ګوندونـو سـره پـه ګـډه دکـابل سیاسـي فضـاتوده او الهـام بخښونکې ګرزولـې وه ، تـردې حـده چـې سـردار شـاه محمـود خـان او در بـار یـې پـه دموکراسـي باندي پښیمانـه کـړل . پـه داسـي حـال کـې چـې حکومـت دلـو مـړي ځل دپـاره دملـي شـورا داومـې دورې انتخابـات ، اوتـر هغـه دمخـه پـه ۱۹۴۹ کـې پـه ټول ملـک کـې دښاروالیـو انتخابـات آزاد پـرې ایښي و ، داتمـې دورې انتخابـات چـې بـاید د۱۹۵۲ کـال پـه پـاي کـې شـوي واي ، مقیـد وګرزول. تـر هغـه دمخـه یـې غـیر حکـو متـي ازاد اخبارونـه هـم بنـد کـړي

وو. ددغو تحديدالو پر ضد په کابل کې مظاهري وشوې او په يوې مظاهرې کې مظاهره کوونکو دارګ لر ختيخ وره پورې خانونه ورسول، او له پاچا نه يې وغوښتل، چې دستوري انتخابات لغواعلان کړي ، حکومت نه داچې دهغوغوښتنه ردکړه ، دټولوګوندونودسرکسان يې بنديان کړل. په دغې مظاهرې کې ببرک کارمل خوځونکې رول لاوبوه، خو دهغه دنيت په هکله راويان شکونه لري . سپينتا حسين خيل وايې چې (( کله چې د۱۳۳۱ کال دحمل دمياشتي په ۳۱ ورځ دملي شورا دالمي دورې په مناسبت مظاهره جوړه شوې وه ، دمظاهرې دله دباغ عمومې دپله له خوا دپل خشتي جومات نه ورخرمه اپارتمانونو مخې ته ورسېده ، او په هغه ځاې کې [خلک] سره جمع شول ، په کوم ځاې کې چې دډاکتر عبد الرحمن محمودي معاينه خانه وه. دببرک سپين بالاپوش په ځان و، او دمظاهرې لر مخه روان و او دحکومت پر ضد يې شعارونه ورکول . محمودي اوغبار دواړه دمعاينې خانې داپارتمان برندې ته را ووتل: خو دمطلب خبرې يې مظاهره چيانو ته وکړې ، او ببرک يې دافراطې شعارو نو نه منع کړ ، او ديوې مسالمت آميز ه مظاهرې خواهش يې وکړ ، خو بيا کله چې مظاهره له هغه ځايه وخوځيده ، ببرک هغه دارګ په لور روانه کړه ، مظاهرې قهر آميزه شکل غوره کړ ، چې په نتيجه کې مير غلام محمد غبار ، ډاکتر محمودي ، فرهنګ ، بران علي تاج ، سرور جويا ، اونور بنديان شول ... ببرک هم بندي شو،خودببرک اونوروبندي خانې ډېر فرق درلود.)) وروسته غبار په دغه هکله کارمل په يوې غونډې کې لورن کړ.دمحترم سپنتا په قول غباردنورمحمد تره کې په کورکې ببرک د يوې (( درويشت کسيزې کميټې په وړاندې )) په دغوالفاظومخاطب کړ: (( لو پسر جنرال خاين ، جاسوس دولت ، که بمظاهرات فرمايشي تعدادي از وطن پرستان راچندين سال بزندان انداختي . اګر چه خود هم بزندان آمدي ولي شب وروزت معلوم نبود که بکجا بودي . اکنون با ز ميخواهي که براي بادارت خدمت بداري وچند وطن پرست ديګر را روانه زندان بداري.)) په دغه ورځ چې (( .. غبار هر څو سره ببرک وغانده او افشاي که ببرک ځان دهغه ولنه کړه ، بلکه ډېر په احترام يې غبارله داستاد په نامه خطاب وکړ ، او غوښتل ديانه جملې يې دهغه په صفت کې بيان کړي . پس له دې غبار نور نو ګوښه له رانغي .)) محترم متو کيل هم په مظاهره کې دببرک رول په دغوالفاظو بيانوي:(درهمين وقت محمودي ، غبار وداکترقيوم رسول تيزبندي شده

بودنــد وگفتـه میشد کـه بـبرک بـراي راپـور دادن بحکومـت وقـت خـود رادربنـدي گري داده اسـت.)) ديـوه بـل روايـت لـه مخـي کـارمل پـه دي فکر نـه وچي دمظاهري کولو په سبب به بندي شي .
دکابل ولايت توقيف خانـه د۲۳ کلـن کـارمل دپاره دسياسـي استحالي مرکزوګرزيـده. هلتـه دده بنـدي خانـه دسپنتا پـه قـول دنـورو لـه بندي خـانو يعني کـوټو نـه (( فـرق لاره )) غبـار هـم پـه هغـي وينـا کـي چـي ببرک تـه يـي وکـړه ، همدغسي فکر القا کـوي. پـه تـو قيف خانـه کـي کـارمل بـه هغـي کـوټي تـه تـه چـي هلتـه ميراکبرخيبراوصالح محمد اکا اوسيدل ، دسپنتا دليکنـي لـه مخـي )) (( صـالح محمـد اکـا بـه ويـل چـي بـبرک نومـي هلـک زمونـږکوټي تـه راتـه، ميراکبرخيبرسـره يـي خـبري اومرکـي کولـي.)) ببرک هلته لـه مير اکبر او همـدا راز لـه مـير محمـد صديـق فرهنـګ سره چـي هغه هم هلته بنـدي و ، دسـو شـلزم فکـري ملګرتـو ب ېيـل کـړ ، خـودي پـه پـاي کـي پـه سـوويتزم کـي دومره ډوب شـو ، چـي خان يـي لـه هغونـه بيـل کـړ، او پـه شـوروي اتحـاد پسوي وتـاړه. دهغـه دغـه استحاله مـا دهمدغـه اثـر پـه پسوي بلـي ليکنـي کـي بيـان کـړي ده.دلتـه بـه دغـو مـره ووايم چـي دډموکراسـي بـي اړتـوب ،حکومـت واکمنـي اودبنـدي خـاني سـختي ګانـي کـارمل شـايد پـه دي فکـر کـړي وی چـي ددې دپـاره چـي سياسـي التداړتـر لاسـه کـړي، بـايد دشوروي اتحـاد مـلا تړدکمونسـتي کيـد ولـه لاري وکـتي. کـارمل چـي دسـردارمحمد داؤد دصدارت پـه دوهـم کـال کـي پـه ۱۹۵۴کـي د بندنـه ازاد شـو، او ديـوه روايـت لـه مخـي دمحمدحسـن شـرق پـه واسـطه دحقوقـو پـه پوهنـځ کـي شـامل شـو.لـه ميرآکبر سـره پـه ګډه ويـل چـي ( ...د ربنـدي خانـه راه يګانـه وعقيـده مشـترکي را در راه سـيادت مـردم افغانسـتان بـا همديـګر يافتـه بودنـد .)) ۷ دغـه عقيـده دشـوروي دولـه کمونـيزم يـا سـوويتزم عقيـده وه ، خودسـردار محمـد داودخـان دصدارت پـه لـس کلنـه (۱۹۵۳ - ۱۹۶۳ ) دوره کـي ددغـي عقيـدي پـه اسـاس دعمـل کولـو دپـاره مجـال نـه و، کـه څه هـم حکومـت لـه شـوروي نـه دځپلـو انکشـافي پلانونـو دپاره کريـد لونـه تـر لاسـه کـول ، خـو د همـد غـو او نـورو انکشـافاتو ، پـه تـيره دنـوي تعليميافتـه منځنـي طبقـي پـه پـن کيـدو سـره سـو شلسـتي او اسلامسـتي فکرونـه افغانسـتان تـه ننوتـل ، اوسياسـي حلقـي رامنـځ تـه شـوي . کـارمل پـه ۱۹۵۶ کـي لـه پوهنـځي څخـه خـارج شـو ، او وروسـته لـه دي چـي داحتيـاط عسکري دوره يـي تيره کـره پـه ۱۹۵۸ کـي پـه پوهنـځي کـي بيرتـه شـامل شـو او پـه ۱۹۵۹ کـي لـه هغـه فـارغ شـو . اول يـي دپوهنـي پـه وزارت کـي پـه

ماموریت پیل وکړ ، او بیا د پلان وزارت ته لاړ ، چې صدیق فرهنگ یې مشاورو .کارمل په عین حال کې دکرنې په وزارت کې ، چې غلام حیدر عدالت یې وزیر و ، او دکارمل خاله زوي غلام جیلاني باختري یې اداري رئس و ، داجیر په حیث هم کار کوه ، اوله معمول نه زیاته اجوره ورته ورکول کیده .کارمل په ۱۹۶۰ کې صدراعظم محمد داود خان ته لوی خدمت وکړ. ورته یې اطلاع ورکړه چې صبغت الله مجددي تر پل ارتن لاندي بم ایښي ، اوغواړي هغه وخت یې وچوي چې دشوروي اتحاد کوم عالي رتبه هیأت چې کابل ته راغلي و ، له هغه نه تیر یږي . دغه اطلاع دصبغت الله مجددي ورور، رحمت الله مجددي له خوا ، دمیر اکبر خیبر په ذریعه ور رسیدلي وه . رحمت الله مجددي دمیراکبرخیبرتر نفوذ لاندي تللي وه ۸ احتمال لري چې کارمل په دغه کار سره په عین حال کې دشوروي حکومت اعتماد هم خپل کړي ، او د کې جې بې غړي شو ي وي. کارمل په عین حال کې دربارته هم لا ر پیداکره . په دي هکله شفاهي روایتونه ډیر دي ، دیوه لیکلي روایت له مخې (( از منابع موثق شنیده میشد که ببرک کارمل توسط اقاي میر محمد صدیق فرهنگ ... در تشویق جوانان به قبول کمو نیزم سهم بار زي داشتند .)) ۹ پخواني پاچا هم له دغې کتنو نه منظور لاره.دمحترم عبد الحق واله په قول پاچا (( هم بانورمحمد نره کې وهم با ببرک کارمل پنهانی ملاقات هاي داشت که بیش تر منظور شان نرم ساختن آنها وواضح ساختن این حقیقت بود که هنوز زمینه در افغانستان براي سو شلزم مساعد نیست .)) ۱۰ کارمل دفکري ملګرو جلبولو کارته هغه وخت زوره ورکړه چې دپاچا او محمد داودخان په لطف نې په دولتي ماموراتو کې اعتبار پیداکړ. حکومت په خاص دول دصدراعظم نوراحمد اعتمادي په وخت کې په داسې حال کې چې دنو رو ګوند ونو په تیره داسلامي تنظیمونو په مقابل کې سخته رویه غوره کړي وه ، دکارمل ددلي په مقابل کې یې نرمه رویه نیولي وه . حکومت حتی دمسکو دکورنې دکمو نستانو په مقابل کې چې په ۱۹۶۸ کې چې نمایند ګانو یې دشوروي اتحاد دکمونست ګوند په کانګرس کې په مسکو کې ګډون کړي وو، او داکار دهغوي په کمونست توب په څرګند دول دلالت کا وه ، اوحکومت ته یې دهغوي پر ضد دقانون له مخې داقدام کولو زمینه برابره کړي وه هم څه ونه کړل ، سره له دې چې سید قاسم رښتیا لیکي چې ده هم پاچا او هم اعتمادي ته ددغه انکشاف دمضرو عواقبو

خبرداري ورکړي وه. ۱۱ دخلق دموکراتیک ګوند دپاره چې له نامه نه غیر کمو نستي ګوند و اوپه ۱۹۶۵ کې په منظم ډول میدان ته وتلي و ، په ډیر و سطحو کې او دډیرو حلقو اوکسانو له خوا فعالیت کیده ، له ۱۹۶۷ نه وروسته چې هغه دپرچم او خلق په ډلو وویشل شو ، او کارمل دلومړني ډلي مشر و ، دکارمل دپاره چې ټول عمر یې په ښار کې تیر کړي و ، تر نورو ګوندي لویانو نه په ښار کې هغه ته د فعالیت زمینه زیاته برابره وه نو یې په ښار کې په دولتي مامورانو ، تعلیمیافته ګانو ، او نورو ښا ریانو کې خپل فعالیت ته تر پخوا زیاته زوره ورکړه. له پخواني صدراعظم محمد داودخان سره یې لیدني اوغونډي کولي . په دغو غونډو کې محمد زمان خان ، دنجات دلیسي پخواني مرستیال ، او دصدارت دتفتیش برحال رئس هم له کارمل سره ګډون کاوه . محترم متو کل دهغه له قول نه لیکي چې « داودخان ببرک راهمیشه ببرک جان خطاب میکند وخیلي دوستش دارد .» محمد داود اوکارمل چې په اساسي ټکو کې سره په تضادکې وو په یوه ټکي باندي سره جوړو چې هغه دقانوني پاچایي او ددموکراسي له نظام سره مخالفت وو. دواړو دهغه دبې اعتباره کولو دپاره له یوه اوبل نه دمظاهرو په تحریکولو او دبې ثباتي په راوستلو کې استفاده کوله . دکارمل دغونډو بل مرکز په مکرو رویانو کې دجیلاني باختري یوه کوټه وه . کارمل به هلته له خپلو ملګرو لکه سلطان علي کشمند ، عبدالسلام ، سلیمان لایق ، باختر ي اونورو سره ګوندي جلسي کولي. شاه محمد دوست به چې په صدارت کې زیات وقت دقلم مخصوص مدیر و ، او دمحمد هاشم میوند وال دصدارت په دوره کې لکه سوري ورپسي هر چیري روان و ، دهغه اونورو په باب اطلاعات راوړل اودمحترم متوکل په قول « ګذارشات را به مجلس مي اورد وان ها به مرجع خود روانه میکردند .» دجلب او جذب بل عامل محمود بریالي ، دکارمل سکه ورور و.کارمل هغه دشلو کلو نو نه کم خوانانو دجلبولو دپاره ګما رلي و ، او دجلسو لګښتونه یې ورکول. دجلب اوجذب عمده مرکز داناهیتا راتب زاد کورو ، چې په ځلور مه کارته کې دمر کزي دواخانو ډیپو ته مخامخ واقع و. لکه چې دمخه وویل شول اناهیتا دکارمل معشوقه وه که څه هم دي دمرده شویانو دکوڅي عبد الباقي په لور ، محبوبي، واده و او اناهیتا په ډاکتر کرام الدین کاکړ واده وه. دلته به خوانان کارمل بلل اونجونې اناهیتان بللي ، ا و دودکا او نڅا مجلسونه به هم کیدل. اناهیتا دپلار له مړیني نه

وروسته له خپلې مورسره اوسيده چې هغې دشاه محمود خان په کورکې خدمت کاوه. اناهيتا له خپل اول ناکام عشق نه وروسته ډاکترکرام الدين کاکړنه چې دشاه محمودخان کورنې ډاکتروو((سوغات)) په شان وړاندې شوې وه. اناهيتا چې وروسته يې دښځو دموکراتيک سازمان جوړ کړ، دښځو په تيره دتعليم کړو پېغلو په تنظيمولو کې دافغانستان لومړې اوتراوسه بېجوړې ښځه ده.خو دمير غلام محمد غبار له قول نه ويل شوي چې (( اگر انا هيتا باعزيز سراج ازدواج ميکرد هر گز امروز پشت سازمان وسازمان بازي نميگشت و... مبارزه انا هيتا گرفتن انتقام از فرار پدر ويک مشت عقده ها واهانت هاي بود که خانواده سلطنتي برو روا داشته بودند واز ين حالت ابراز تاسف ميکرد .)) ۱۲

د قانوني پاچا يې په دوره کې سياسي حلقې او په هغو کې چپي حلقې ډيري فعالي شوي ، په تيره وروسته له هغه چې په کال ۱۹۶۵ کې دخلق دموکراتيک گوند او ښځو دموکراتيک سازمان په منظم دول ميدان ته ووتل. په دغه دوره کې کارمل دوه خلي او اناهيتا يوځل دکابل له انتخاباتي حوضونه په ولسي جرگه کې انتخاب شو ل ، خودکارمل او دهغه دملگرو د پر مختګ غټ دليل له دوي سره دشوروي اتحاد مالي مرسته وه . دهمدغه گوند داعتبار وړ يوه کس ماته دنيکو لاي دوريانکوف له قول نه چې په مسکو کې دپښتو ادبيالو متخصص و ، او په دري هم پوهيده وويل چې ((دپرچم دسرهرکس په مسکو کې دوسيه لري.)) داچې دغه لويان څوک وو، څر گند ه نه ده ، خود احقيقت دي چې کې جې بي دمياشتي ۰۰۰، ۳۵ روسي روبله کارمل ته ورکول چې دگوند په چار ويي ولگوي . پوهاند متوکل هم وايي چې شوروپانو هغه ته معاش ورکوه. ثريا بها چې دپرچم غړې وه،اودغذايي فقردنياروغي په وجه مسکوته دتداوي دپاره په شخصي لگښت تللي وه ليکي چې دوو ريا نکوف ((ازعلت مريضي من پرسيد.برايش گفتم که من فقرغذايي داشتم.حالا کاملاً وزن گرفته صحتمند شده ام.)) ثريا بها اضافه کوي چې((دوريانکوف خيلي متأ ثر شد و نا خود اگاه گفت : ((ما هانه مبلغ سي وپنج هزار روبل را کار مل چه ميکند ؟ ...مابراي چه [باو] پول ميفريستم؟)) ۱۳ ثريا بها په کابل کې دهمد غي موضوع او نورو موضوعاتو په باب دانتقاداتو له امله دببرک کارمل،مير اکبرخيبر،سلطان علي کشتمند ، داکتر اناهيتا راتب زاد ، سليمان لايق او نوراحمد نور په مخ کې تر تحقيق لاندې ونيوله شوه دهغې په خپلوالفاظو((ببرک کارمل باعصبانيت

گفت.)) (( بگو جانم ! لورا( سي ای ای) چند میده هد که این چنین پر و پاکند وتبلیغات راعلیه من راه.اندا خته ای ؟ ))
((گفتم سي و پنج هزار روبل روسي .))
((گفت اگر روي پرده سینماي فلم بیاندازي کسي باورنخواهد کرد.))
(( گفتم روزي همه باور خواهند کرد.))
(( گفت تاریخ راما خواهیم ساخت.))
((گفتم بلي تاریخ راشما ننگین خواهید ساخت.)) ۱۴
دمعاش له موضوع نه پرته دغه نوري خبري هغه هم په دغسي قالبي عباراتو کې مبالغه بنکاري ، خو سره له دي ثریا بها به زره وره وه ، چې د هغه په باب یې هم ، کارمل دګوندي لوبانو په مخ کې په دغسي الفاظو مخاطب کړي وي خو میر اکبر دهغې په خوا و او هغه کارمل ته دهغه ددغه تور په ځواب کې چې (( رفیق خیبر! تواین دختر راتشویق وبر علیه من تحریک مینمایي.)) وویل چې او(( دختر بي تر س ، بي الایش وحساس است، هرچه را زود درک میکند واین گنا ه خودمااست که نتواستیم اعتماداو راجلب کنیم.))
۱۵بل مهم تکي دلته دادي چې لر تر لره دغه پرچمي لوبان په دي خبر ووچې ددوي ګوند دشوروي اتحاد معاش خوردي او دهغه په برابر به ارومرو ورته خدمت کوي .دوي شاید په دي نپوهیدل چې دوي په افغانستان غوندي هیوادکې کمو نزم ته خدمت نه شي کولي،اوپه دي به پو هیدل چې دشوروي دولت ته خد مت کولي شي اوهغه دا چې هغه ته دافغانستان په باب اطلاعات ورکړي . دوي همدغسي کول.کرنیل الیکزاندرمورو زوف (Alexander-Morozov) چې په کابل کې د۱۹۷۵ نه تر ۱۹۷۹ پوري په شوروي سفارت کې دکې جي بي دمدیر مرستیال و،لیکي چې(( [حفیظ الله] امین په دي خبر نه و چې دشوروي استخبارات دمحمد داود په حکومت کې دیر چمیانو له اشتراک نه خبر وو او دغه اشتراک دشوروي استخباراتو په اجازه عمل شوي و .)) دي وراندي لیکي چې (( نزدي ټولو هغو پرچمیانو دشوروي پټو اجنسي ګانو ته اطلاعات ورکول کوم چې دمحمد داود په جمهوریت کې په مرکزي کمیټي کې شامل وو ، او دهغو نومونه دامین په لست کې ذکر شوي دي .)) ۱٦ حفیظ الله امین دلورترکودتا وروسته دګوند ي موضوعاتو په هکله مسکو ته یوه لیکنه استولي وه ، چې په هغې کې دغه پورته موضوعات هم شامل وو. دببرک کارمل طرفداران هم دکې جي بي مخبران وو ، لکه چې دکې جي بي یو بل مامور وایي چې حفیظ الله امین ((... بیا دکارمل دپلو یانو په وژلو پیل وکړ چې دهغو نه ډیر و مونږ ته مخبري کوله .)) ۱۷ ببرک کارمل په دغسي خدمتونو سره په کې جي بي باندي ځان دومره ګران کړي و چې دغوايي تر کودتا نه وروسته کې جي بي کوښښ وکړ چې دشوروي حکومت هغه دافغانستان ددولت سروال کړي ، که څه هم چې هغه په کودتا کې هیڅ برخه

نه ده اخیستي ، ولا دمیر کوزیچکین ( Vladmir Kuzichkin ) دکي.جي.بي.دګرجنرال چې پنځه کاله په تهران کې دشوروي په سفارت کې دپټوفعالیتونو داداري، د S مدیریت آمرو،اوپه ۱۹۸۱کې یې انګلستان ته پناه یووړه لیکي چې(( زمونږاکي جي بي خیرنوخرګنده کړې وه چې[نورمحمد] تره کي به مصیبت ناک انتخاب اوسي : هغه سخت دریزه و، زمونږ په ګته په سیاسي پیچلو موضوعاتو باندې یې خپل سر نه خلاصاوه او تل دخپلو نږدې ملګرو تراثر لاندې و، نه زمونږتراثرلاندې . له بلې خواکارمل، مونږ نظر ورکړ، چې دنازکو سیاستونو په ضرورت پو هیده. برسیره پردې هغه کالونه دکي جې بي اجنټ و په هغه باندې مونږ ددې اعتماد کولی شو چې زمونږ مشوره به مني.)) ۱۸ سره له دې هم ، کوز یچکین وایي، چې د شوروي لوړې واکمنې جرګه کې.یا (( پو لټوبو رو فیصله وکړه چې دتره کې ملا وتړي خکه چې پخپله[ لیو ینډ ] بر یژنیف هغه پیژنده .)) کو زیچکین ځکه په کارمل باندې داده و چې هغه دکمو نیزم په هغه شکل باندې معتقد شوي و چې سوویتزم [ شورویت ] یې دټول جهان دپاره دسر مشق په حیث منلې و ، لکه چې دکارمل له خولې نه ویل شوي : (( نو [اریا ] میداني [ که ] ما طرح انتر ناسیو نالیزم پرو لتیري داریم . پرولتاریا وطن ندارد ، همه جهان وطن ماست .)) ۱۹کارمل په سوویتزم باندې دومره ټینګ و چې غوښتل یې افغانستان هم دهغه برخه وګرزوي .)) ده پخواله هغه چې په قدرت ورسول شي حتی غیرګوندي کسانو ته ویل چې (( دې غواړي افغانستان دشوروي اتحاد شپارسم جمهوریت کړي .))۲۰

دکارمل او کارملیانو اعمال دهغوي ددغې عقیدې انعکاس و، چې افغانانو ته څرګند دي او هغه محترم حبیب الله رفیع په دغو الفاظو بیان کړي : (( دوي نه دکمونزم لومړي درس داو چې په انتر نیشنلزم کې وطن نه خایږي ، او دملي ګټې ساتل له انتر نشنلزم سره خیانت دي . دوي ملي ګټې نه پیژندلې ، ددوي په نظر دکمونیزم دوینا یو عادي سړي تر یو یا شرف افغان نه [ ډیر ] ارزښت لاره.)) ۲۱ دپرو لتاریا بین المللي هویت او داچې هغه وطن نه لري په اصل کې دکارل مارکس فکردي ، او کارمل اونور په افتخارسره پرې باندې معتقد شوي وو، بې له دې چې فکر وکړي چې هغه یو پوچ سیا سي شعاردې اوروسانو سوویتستي دولت ددې دپاره جوړ کړي وو چې په هغه سره دخواري کښوکارګرواوکمونزم په نو مونو په اول سر کې خپل ګاونډي هیوادونه لاندې کړي . څنګه چې ددغې عقیدې خاوند کارمل خپل ځان او خپله پرچمي ډله دشوروي اتحاد دخد مت دپاره چې دوی د((شوراګانو هیواد)) په نامه یادوه تیاره کړې وه شورویانو په پای کې دکابل دکو څو دغه سوویتست

انقلابي دافغانستان ددولت سروال کړ په داسي حال کي چي هغه په جامعي کي بې بنياده اود دغسي عمدتاً بناري دلي مشر و چي خلقيانو دخپل حکومت په دوره کي دوه خلي خپلي وه او بخپله کارمل يې له يو شمير نورو پر چمي لويانو سره له وطن نه شړلي او دافغانستان له تابعيت نه محروم کړي و.
اوس به دغه موضوع وڅيړ م چي شوروي لويانو وروسته له هغه چي کارمل يې دافغانستان دانقلابي شورا دمشر ، دوزيرانو دشورا دسروال، او دخلق دموکراتيک گوند دعمومي منشي په حيث هسک کړ ، په خپل واک پرېښود يايي خپل دستورونه پري عملي کول ؟ ددغي اساسي موضوع سپړل به دسوويتزم ماهيت هم څرګند کړي. افغانانو وليدل چي ببرک کارمل، ګونديان او رجيم يې په عمل کي بيواکه وو خو دابه ډيرونه معلومه نه وي چي دوی په اصل کي په عمدي ډول بيواکه کړل شوي وو ، اودوي دغه بيواکي يا سياسي مريي توب دخپلي ايډيا لوجي په حکم منلي و ، په دي خام فکر چي په افغانانو باندي واک وچلوي. دغه حقايق دشوروي اتحاد له هغو ليکلي شويو رسمي اسنادو او منابعو څخه څرګند دي، چي له ړنګيدو وروسته يې برالا شوي دي. دهغو تر څيړلو دمخه به ووايم چي په افغانستان باندي دشوروي اتحاد له يرغل نه وروسته دببرک کارمل په سر والي سره نوي عمدتاً پر چمي حکومت دخواونيو په موده کي په بناري دولت باندي بدل شو ، په داسي حال کي چي دشوروي اتحاد څه باندي سل زره عسکريه چوڼيو او ښارونو کي ځاي په ځاي شوي او مشاوران يې په ملکي او نظامي ساحو کي داجرايي آمرانو په حيث ننو تل. دهېواد اطرافي سيمي داسلامي تنظيمو نو په لاس کي ولوېدلي چي لويانو يې په پېښور کي مقرو نه نيولي وو ، او له دغه ښار نه يې ددوستو هېوادونو وسلي او نورې مرستي دپاکستان له نظامي استخباراتو نه ترلاسه کولي او جنګياليو ته په افغانستان کي رسولي . په اصل کي دننه په وطن کي جنګياليو مجاهدينو دافغاني او اسلامي جذباتو په پيروی ، دخپلي وسپنيزي ارادي په قوت او دولس دغو څ اکثريت په ملاتړ دير غلګر پوځ او دهغه تابع حکومت پر ضد دغسي ملي جهاد پيل کړی و ، چي حتی شکاک نړيوال يې خپلي ملاتړي ته هڅولي وو. مقصد داچي دکارمل حکومت دخپل تأ سيس له پيل نه دولس دغوڅ اکثريت سره په ضديت کي واقع شو ،اود خپلي بقا دپاره يې په شوروي اتحاد باندي په کلي ډول اتکا وکړه. دشوروي اتحاد حکومت هم دهمدغو مقابلو په سبب اوهم داچي دافغانستان موضوع بين المللي شوه ، په دي وېره کي شو چي دکارمل حکومت به ناکام شي ، اود هغه په ناکامي سره ممکن دهغه لاس نه يوازي له افغانستان څخه لندشي، بلکه امپراتوري به يې هم په منځنۍ اسياکي ضرر وويني. دهمد غې وېرې له امله اوهم داچي نه چي دساره جنګ په دغه نوی پړاو کي دپرچمي حکومت هم دامين دحکومت په شان ددوی

له کنترول نه ووځي هغه يې له هماغه اول سر نه دخپل کنترول لاندې ونيو . دامين په وخت کې دشوروي اتحاد لوبان ((په زياتيدونکي اندازې وبرېدل چې شوروي اتحاد به افغانستان له لاسه ورکړي او امريکا ليان به چې ايران يې له لاسه ورکړي و، هلته ځاي ونيسي.)) ۳۲ ليونيد شبرشين (Leonid Shebarshin)، دکې جي بي مرستيال، لاپه دې فکر و، چې امين قصدکړي و چې (( په موږ باندې د((مصردجمهوررئس انور)) سادات کانه وکړي.))
۲۳ ددې دپاره چې دغسې څه پېښ نه شي دشوروي حکومت، که څه هم کارمل او پرچميان يې له تره کيانو سره چې اوس يې خانوته ((اصولي خلقيان.)) بلل په قدرت رسولي وو، اوسره له دې چې دغو ټولو دشوروي دولت سره دوفاداري تعهد ونه کړي وُ، غوښتل يې چې تر هغو چې دافغانستان خلکو ، دمنطقې او جهان حکومتونو دافغانستان دغه نوی حکومت نه وی منلي لښکری به يې په افغانستان کې وي ، او په حکومت باندې به يې کنترول ولري . په دغه حال کې دببرک کارمل دپاره دخپلواک رول لوبولو مجال نه و پاتې. دشوروي حکومت حتی دشخص کارمل دساتلو دنده هم په غاړه واخيسته.
دشوروي اتحاد دنظامي پر غل په سبا ببرک کارمل له دوشنبې، دتاجکستان دشوروي جمهوريت له مرکزنه ، دبګرام هوايي ميدان ته په الوتکه کې او بيا له بګرام نه دکابل ښارته په ټانک کې راوستل شو. کارمل په ښارکې په ارګ کې هستوګنه غوره کړه . هلته دشوروي اشپزانو، پېشخدمتانو، مشاورانو، اودرايورشپه اوورځ دده خدمت کاوه. دکارمل نږدې ساتونکي افغانان وو، خو د هغو وسلو کارتوسونه نه لرل. دهغه ساتنه دکې جي بي افسرانو او ددولتي اوحکومتي مانيو، دګوند دمرکزي کومټې او ارګ ساتنه دشوروی کوماندوګانو کوله .))۲۴ کارمل نور نو هغه کارمل نه وُچې په کابل کې به ازاد ګرزيده، او په خپله خوښه به يې له يوه اوبل سره کتل، خو شورويانو دهغه ډېر قدر کاوه. دومره ډېر شورويان دهغه په خدمت کې ووچې هغه دېته اړه نه لرله چې دخپلې کورنۍ له غړيو سره ووينې، ياپې دهغوی له حضورنه پرته ووينې. مېرمن يې، محبوبه کارمل، چې مهذبه ښځه وه اويو وخت په پوهنتون کې زما شاګرده وه زياتره وخت په شوروي اتحاد کې وه. کارمل خپلې معشوقې،اناهيتا له هم ضرورت نه لاره،ځکه چې دکې جي بي عاملانوکارمل اودګوند دپولټبورو خينو غړو ته روسې پېغلې استولې. په واقع کې دشوري حکومت چې خومره يې په وسه کې وه دکارمل دخوښ ساتلو دپاره وسايل برابر کړی وه ببرک کارمل دشوريانو په لورينې سره ځان په دغسې چاپيريال کې ،وموند چې په ټول عمرکې يې نه و ميندلی ددغوټولو په بدل کې کارمل له يوه شي نه شېرشو چې هغه واک

دي ۲۵مولف گل زرک خد راڼ لیکي چې « دروسانو له واک اوصلاحیت نه پرته له هیڅ یوه وطن فروش[پرچمي] سره دخپلي ارادې واک اواختیارنه شته. یوه نمونه یې همداده چې دببرک وطن فروش په دفترکې دده دمیزترشا پرده لېږې [ لګېږي].دپردې شاته یوروسي اویوترجمان تل ناست وي.په دي برسیره دببرک او مراجعینو ټولې خبرې اترې ثبتېږې .» ٢٦ خو ببرک کارمل دلایل لرل چې هغه دمحترم محمد آصف اهنګ چې دکارمل دمکتب ددورې دوست و، له قصې نه څرګندېدي. دهغه له قوله حکایت دی چې «هنوز دوسال اززمامداري کارمل نه گذشته بود که روزی شخصاً بخانه ام تیلفون کرد وازمن خواهش نمود تا فردا روز ساعت ده بجه صبح بملاقات اوحاضر باشم.» په ارګکې د کارمل کوټې ته دښاغلي آهنګ دننوتلو په قصه کې راغلي چې [ وقتي] باعصای چوب خواستم داخل اطاق کارمل شوم محافظ شوروي باداشتن چوب ممانعت[نمود ] ومنهم مقاومت کردم صداهای هردوی مارا کارمل صاحب شنید: خودش بیرون آمد واز محافظ شوروی خواهش کرد مرا با چوب دست اجازه دهد.[محافظ ] مثلیکه امراورا نشنیده باشد چوب را از دستم بیرون کشید. کارمل باطاق خود بازگشت من که چاره دیگر نداشتم چوب... را داده لنګیده داخل اطاق شدم. [ کارمل ] به اغوش باز وصمیمانه اول مرابوسید وګفت: «مرارفقای شوروی بې نهایت دوست دارند وبرای حفظ جانم حتی اوامرم رانادیده میګرنند.» منکه قدرت حکمرانی وصلاحیت پیش خدمت روس رابه چشم سردیده بودم موضوع را به تائید حرف اوخاتمه دارم.» ۲۷ ګمان نه کوم چې پخپله کارمل په خپل دلیل باندې دزړه باور لاره . ضیا مجید پخوانې نظامې منصبدار او دکارمل دوست چې نوی له باندې نه هېواد ته ستون شوی و، هم دببرک کارمل دبلواکې قصه لرې : « روزې طبق هداست او [ کارمل ] نزد ش رفتم. او باپیشانې واغوش باز مرا پذیرفتند وبالطف فراوان گفتند : « خیلې ارزو داشتم که با افغانستان باز ګردې تاپیرامون مسایل ګذشته...باتوصحبت نمایم.» و امروز براې این کار وقت کافې دارم ،[ولې] هنوز دقیقه ی چندی از صحبت ما نګذشته بودکه دروازه اطاق بازمیشود وپاسبان شوروي کا رمل به انګلیسي شکسته به بی اعتنالی ... اشاره به ساعت بند خودکردوګفت وقت تمام شد.کارمل صاحب دوستانه ازوی به انګلیسی خواهش کرد:« لطفاً اجازه بدهید یکد قیقه بیش تر.» کارمل صاحب مرادوست داشت ومیخواست بیش تر

صحبت نمایند ... اما سلطان بیچاره دست وپازبان بسته تسلیم شده حتی حق صحبت بدوستان شخصي خود رانداشتند.)) ۲۸

په ببرک کارمل باندي ددغسي قیو دو دعملي کولو یوه معني داده چې هغه باید چارې دشورویانو په دستور اجراکړي. پخواله دې چې ببرک کارمل په قدرت ورسول شي شورویانو دافغانستان په باب یوه عالي جرګه کې جوړه کړې وه چې له یوري اندرو پو ف ، دکې جي بي رئیس، اندري ګرومیکو ، دباندنیو چارو وزیر، دمتري اوستینوف (Dmitri Ustinov)، دملي دفاع وزیر، او بوریس پانوماریف (Boris-Ponomarev)، دمرکزي کمیټې دبین المللي منشي ، نه جوړه وه . دغه جرګه کې موظفه وه چې دافغانستان په باب معلومات غونډ کړي او دګوند پولټبوروته سپارښتني وکړي. پولټبورو بیا دهغو له مخې پرېکړې کولې او دعملي کولو دپاره یې حکومتي اوګوندي څانګو ته سپارلې. دغه څه دشوروي اتحاد له هغو ارشیفي اسنادو څخه څرګندېدی چې په دې وختو کې په واشنګټن کې دودرو ولسن بین المللي مرکز په مجله کې دشوروي اتحاد اوافغانستان ۱۹۷۸ – ۱۹۹۸ تر نامه لاندې په ٥۱ مخونو کې چاپ شوي دي. ۲۹ددغو اسنادو عام کېدل دشوروي اتحاد رنګېدلو ممکن کړي دي. زه دلته یوازې دموضوع په اړوند له هغو نه استفاده کوم، اووایم چې دشوروي اتحاد دګوند پولټبو رو دپورته یادې شوې جرګه کې دراپور له مخې د۱۹۸۰ کال دجنورې په ۲۸ دافغانستان په باب په دیارلسو فقروکې عمومي دستور العمل وایست چې زیاتره یې دموضوع دباندنی اړخ په هکله و. دداخلي موضوعاتو په هکله ددغه لاربنود دستورونه دادي : (( دګوند دالتحاد په باب دګوند ژوند او جوړښت دهغه خط په اساس چې دشوروي اتحاد دسوشلستي جمهوریتونو مرکزي کمیټې دافغانستان دخلق دموکراتیک ګوند له لویانو نه په یوې سپارښتني کې غو ښتنه کړې وه .)) (دڅور کودتا وروسته دشوروي اتحاد مرکزي کمیټې دخلقیانو او پر چمیانو دیوموټي کېدو په هکله په یو ې سپارښتني کې څرګنده کړي ده چې (( ولادمیر لینن په دې ټکي باندي ټینګا رکړي و چې یوانقلاب هغه وخت مفهوم لرلي شي چې په دې یوه شي څنګه خپل ځان وساتي.)) ۳۰ ((دافغانستان دخلق دموکراتیک ګوند په سروالي سره له دموکراتیکو اوچپي سازمانونو ته دیوې واقعاً ممثلي پراخي جبهې دجوړولو په برخه کې دیو شمیر سو شلستي هیوادو نو ( چکو سلواکیه ، بلغاریه اونور) له تجاربونه استفاده.)) (( دافغان په خوانانو په تیره دمحصلانو په هیاتو باندي دګوند دنفوذ ټینګتیا [او] دکمسمول په کومک سره دیو لړ سپورتي، کولتوري اونوروسازمانو نو تشکیل.)) ((دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دسیاسي او اجتماعي مترقي موسساتو اعظمي انکشاف اوټینګتیا، دیوه نوی اساسي قانون دایستلو اوملنو دکارکړ ندېتوب، اود قومونو او اقلیتونو داستاځو دپاره ددغسې مواقعو ایجاد چې هغوي په ټولو حقوقو سره په جرګو اومحلي شوراګانو کې ګډون وکړي.)) ((دافغانستان په دموکراتیک جمهوریت کې

دزیاترو قومونو له لویانو سره دتماس ایجاد اودمذاکرو شروع او دهغو طریقو پلټنه چې په ډېره لږه موده کې له جنګ غوښتو نکو سره په دغه شرط مصالحه وشي چې له ضد- حکومتي فعالیتونو نه لاس واخلي. )) (( له مسلمانو روحانیونو سره داوږدي مودې دپاره ددغسې پلان دپاره کار چې هدف یې داعتدالي مسلمانو مشرانو جذب وي، چې له [حکومتي] مقاماتو سره همکاري وکړي دمر تجعو روحاني حلقو د نمایندګانو انزوا، له شیعي روحانیونو سره دتماس ایجاد، او دشیعه ګانو په مقابل کې دهر نوع تبعیض (په شمول داقتصادي تبعیض) رد.)) ((په هېواد کې دعادي اقتصادي ژوند تأسیس او په خاص ډول په ښارونو اوکلیو کې دکار ګرو دمادي ژوند سمون. ددولتي اوخصوصي سکتورونو تر منځ دمتوازني او متقابلي سودمنې همکاري تهیه.)) ۳۱ دا اوځیني نور موضوعات لکه د((خلقي پوخ سمبالول.)) او (( ددولتي مصونیت.)) او (( داخلي چارو دارګانونو له لارې مرستي کول.))دیوه عمومي پروګرام خاکه وه .

مهمه داده چې دغه پروګرام ددستورالعمل په توګه دشوروي اتحاد دحکومت جوړکړ او دکارمل حکومت، یې دهغه دتطبیق دپاره موظف کړ. داهغه موضوعات وچې وروسته دکارمل حکومت دهغه دعملي کولو دپاره فعالیت کاوه، خو په عملي کولو کې یې هم ازاد لاس نه لاره که څه هم چې په همدغه پروګرام کې ویل شوي وچې ((زمونږ خوا )) به دپرچمي حکومت له عمالو سره دهغو په عملي کولوکې ((کارکوي.))هوا! دوي په ګډه سره کار کاوه، خو دشوروي مشاوران حاکمان وو، او دکارمل دحکومت عاملان بیواکان ، لکه چې مولف انتوني ارنلدلکي: (( ۱۹۷۹په ختمید و سره په افغانستان باندې نور نو دافغانستان دموکراتیک ګوند حاکمیت نه کاوه، دشوروي اتحاد کمونست ګوند حاکمیت کاوه.))۳۲ واقعیت دادی چې شوروی اتحاد په افغانستان باندې نه، بلکه دکارمل په حکومت باندې حاکمیت چلوه . ددغه حکم رېښتین توب له دغه حقیقت نه هم ځرګند دي چې ببرک کارمل او نورو دماموراننو په شان له شوروي لویانو څخه استهداکوله. شاه محمد دوست، ددموکراتیک افغانستان دباندنیو چارو وزیر، دجنوري په ۴ مه په مسکو کې اندری ګرومیکوته ځرګنده کړه چې (( ببرک کارمل تل په دې ټینګار کوي چې هغې مشوري اوهیلو ته دې په خپرسره پاملرنه وشي چې شوروي رهبران یې راکوي. )) ۳۳ ګرومیکو خپلې پولتېو رو ته داد ورکړ چې (( دوی [دکارمل دحکومت لویان ] زیاتره له موږنه مشوره غواړي. مونږ یې ورکوو. دوی اعلامیې خپروي.)) ۳۴ په مشخص ډول ګرومیکو دجنوري په ۱۷ مه خپلې پو لټبورو ته وویل چې (( ببرک کارمل له مونږ نه مشوره

وغوښتله چې که داسلام اباد په اسلامي.)) کنفرانس کې ګډون وکړي. مونږ ورته مشوره ورکړه چې ښه داده چې دهېواد له پولو نه اخوا نه شي.)) ٣٥ دشاه محمد دوست استهداګاني هغسي وي چې لکه ماشومان يې له لوبانو نه کوي. ده په همغې يادي شوي کتني کې له ګروميکونه په دغو الفاظو استهداوکړه: ((ايادچين په باب زه څه ووايم، او که يې ووايم په کوم ظرفيت سره؟)) يا داچه ((دهغو پرو پاګندي مبارزوپه هکله چې امريکا اونورلويديځ هيوادونه يې [دبشري حقوقو] په باب کوي، اجازه په دي باره کې چې دودسمبرله ٢٧ مې نه وروسته دافغانستان دموکراتيک جمهوريت مشرانو تول سياسي بنديان دطبقې،دين،ژبې، قوم، ياعرق ياسياسي نظرياتوله توپير نه غيرازادکړی دي،څه ونه وايم؟)) ګروميکو ورته شاباسي ورکړ چې(( داافغانستان دموکراتيک جمهوريت له خوا يو معقول او مهم اقدام دی . ته بايد ارومرو دهغه په باب په تفصيل وغږيږي.)) ٣٦ شاه محمد دوست، که څه هم دافغانستان دموکراتيک جمهوريت دبهاندنيو چارو وزير و، دوزارت چاري دشوروي سر مشاور، واسيلي سفرو نچوک (Vassiliy Safronchuk ) داتو مرستيالانو په مرسته په مخ بيولې تردي حده چې (( له دغه وزارت نه هيڅ ټېلګرام استول کيدلې نه شو مګر داچې ددغې ولې دکوم کس له نظره تېر شي.)) ٣٧ دنورو وزيرانو حال هم همدغسې و، (( شورويانو دټولو کليدي وزارتو نو لکه دمخابراتو کنترول په خپل لاس کې نيولی وو، هروزير لږ ترلږه دوه مشاوران لرل او... هيڅ وزيرهڅ ډول پريکړه که څه هم وړه به وه، بې له دي چې له خپل هر چيري حاضر سيوری نه مشوره واخلي، نه شوای کولي.)) ٣٨ داسي هم نه وه چې لکه ځنګه چې دګروميکو له وينا نه معلوميږی هغو ی داعلاميو په خپرولو کی ازاد و. کومي هغه وينا وی چې ګوندی او حکومتې لوبانو په رسمي محافلو کې ورکولې دهغو ليکنو دري ترجمي وې چې شوروي مشاورانو په روسي يا تاجکي ليکلي. پخپله کارمل هم له دي حال نه مستثني نه و: (باوبيانيه مينوشتند ويا زمينه ترتيب بيانيه نوشتن وبيانيه دادن تحت کنترول را باو واګذاشته بودند زيرا اداره امور کشور مستقيم وغير مستقيم خصوصاً بسال اخير زعامت او برياست خاد وابسته شده وتحت نظر بلا انفکاک مشاورين شوروي وچند سر سپرده بی اراده افغاني شان کنترول ميګرديد.))٣٩ حکومتي اوګوندي لوبانو سره له دې هم خپل وظايف تر سره کول، او د ((ازاد،خپلواک، سرلوري او غوړيد ونکي افغانستان)) قلقلي يې رواني

سـاتلي وې . شـايد وويـل شـي چې څنګه چـې دوی دافغانـانو غـوڅ اکـثريت خپـل دښمـن ګرزولي وو، دوی تـه بلـه لاره نـه ده پـاتي مـګر داچـې دشـورويانو واکمنـې تـه غـاړه کـېږدي. ددغـې اسـتدلال پـه برابـر کـې بـه وويـل شـي چې دازادو انسـانانو پـه حيث هغـې چـې دوی سـو ويتيـزم غـوره کـړی وو، هغـې يې لـرک کـولي هـم شـو، خـو چـې اراده يـې کـړې وای. خـو لـه يـو څو پرچميـانو نـه پرتـه نـو ر تول پـه سـوو يتيـزم بـاندې تينـګ ودرېدل. ببـرک کـارمل لا نـه يـوازې (( امـدن بـا عسـاکر شـوروي را اشـتباه نمیپنداشـتند[ بلکه بـر فقـاي شکاک خـود] بـه صراحـت وا فتخـار ګفتـه بـود[ کـه] شـوروي هـا در پيـاده کـردن سـو شـلزم وعدالـت اجتمـاعي تجـارب... کـافي داشـته، وهـر ګز در اجـراءات خـود غلطـي نخواهنـد کـرد. حوصلـه داشـته بګذاريـد شـوروی هـا امده انـد تاکشـور مـا را بحيـث نمونـه در منطقـه انکشـاف بخشـند.)) ۴۰ کـارمل او نـورو سوويتيسـتانو داجتمـاعي عدالـت او سـوويتزم پـه نومونـو ښواکـې منلـې وه پـه دې اميد چـې پـه افغانـانو بـاندې واکمنـې وکـړي. پـه دې دول دوی هـر يـو خان پـه خپلـواک اوبلـواک بـاندې ويشـلي و، خـو دافغانـانو غـوڅ اکـثريت هـم ددې خپلـو اکـې - بلواکـې اوهـم شـوروي - واکـې نـه منلـه. برسيره پـر دې، ببـرک کـارمل، هغـه هـم دجنـګ او اضطـرار پـه حـال کـې، دغسـې شـخص نـه و ، چـې دافغانـانو سـروالي وکـولي شـي . دغـه حقيقـت حتـی دهغـه شـوروي (( ملـګرو)) تـه هـم څرګنـد شـوی و، بوريـس ګرومـوف (Boris Gromov)، پـه افغانسـتان کـې دشـوروي دپـوځ اخـري سـر قومانـدان ليکـي چـې کـارمل(( يـاوه سـراي. بيمـانند وفراکسـيون بـازيي همتـا بـود کـه اسـتادانه ميتوانسـت در لابـلای ګفتارهـاي انقلابـي پنـهان ګردد. ايـن [استعداد] بـا اوکمـک ميکـرد تـاپيرامون خـود هالـه ی ازيـک رهـبر بيافريند. هـر بـاری پـس از ارتکـاب يـک اشـتباه ديـګراو همـګان را متقـاعد ميکـرد انيـد کـه حـال ديګرهمـه چـيز بمـن روشـن شـده، ديـګر اشـتباه نخواهـم کـرد.)) ۴۱ خوګرومـو ف دا پـه نظـر کـې نـه نيسي چـې يـو سـروال هغـه وخـت نـيروخې چـې چـارې پـه خپـل فکـر اوواک اجـراء کـړي، پـه داسـې حـال کـې چـې شـوروي عمـالو دکـارمل لاس اوپښې تړلـې وې. دشـوروي اتحـاد يـو نظـامي مـورخ، نيکـولای ايوانـوف هـم پـه همدغـه فکـردي لکـه چـې وايـي ((هغـه [ببـرک کـارمل] دهيچـازوي نـه و.)) (He was nobody). ۴۲ دغـه د(( هـيڅـا زوی )) پـه اصـل کـې لـه بلواکـې نـه عـلاوه، دعمـل سـړی نـه و. پـه ملـګرو ملتونـو کـې دشـوروي اتحـاد يـوه عـالي رتبـه مـامور حتـی پـه ۱۹۸۴ او ۱۹۸۵

((معرفي کاوه. يولي ورانتسوف ( yuli vorontsov )، دشوروي اتحاد دباندنيو چارو دوزارت مرستيال، ځرګنده کړه، چې کارمل په ۱۹۸۵ کې ((کار پرېښود، په شراب څښلو يې پيل وکړ.)) دی لکه چې په دې خبرنه و، چې کارمل ډېر دمخه په شراب څښلو پيل کړی و. دورانتسوف مهمه خبره داده چې کارمل ((ډېر وخت خان ګوښه کړی و، لږ وډېر کنکس و، او ورو ورو مخ په خوړی روان و.)) ۴۳ داسې ښکاري چې کارمل بلواکې په دغسې حال کړی‌و. دهغه او دصحې جنجالونو په شمول دالتهابونو، دوينې لوړفشار، او ځيګر دناروغۍ په نومونو کارمل د۱۹۸٦ کال دمارچ په ۳۰ مه دعلاج دپاره مسکوته بوتلل شو. هلته معالج ډاکتر دانتظار په خلاف ځرګنده کړه چې کوم جدي رنځ دکارمل ژوند نه لړ ني: خو (( دغه ناروغ بايد يوازې دقوي الکولي شرابو له څښلو نه ډډه وکړي.)) ۴۴ کارمل په همدغه حال کې هم کولی شول دژنيو خبرې وخنډوي، چې دملګرو ملتونو دسر منشي دخاص استازي، ډيګوکور دروېز، تر ځارنې لاندې دافغانستان او پاکستان دنمايندګانو له خوا له ۱۹۸۲ څخه وروسته په غير مستقيم ډول په وقفو کې کېدې. او س اتحاد شوروي دميخاييل ګو رباچوف په واکمن کېد و سره غوښتل خپلې لښکرې ديونو په وساطت له افغانستان څخه وباسي، خو کارمل په دې نظر و، چې شوروي اتحاد دې پنځه لکه نور عسکر هم افغانستان ته واستوي، دافغانستان سر حدات دې مصون کړي، دمقاومت تنظيمونه دې وځپي، پاکستان دې دده حکومت په رسميت وپېژني او وروسته له هغه دې شوروي خپل پوځ وباسي ۴۵ کارمل دخپل نماينده، شاه محمد دوست، په ذريعه دژنيو خبروته خنډکېدلې شو.ګورباچوف وروسته ( دنومبر ۱۳ مه) خپلې پولټبوروله ځرګنده کړه چې ((کارمل خانله اجندالري، اوله موږ سره رښتيا نه کو.)) خوګورباچوف چې له کارمل نه واوښت اساساً له دې امله وچې دهغه په فکر (( داچې لر اوسه ملي پيوستون نه شته دهغه ستر علت دادي چې کارمل هيله کوي چې په کابل کې زموږ په مرستې سره [ دقدرت په ګدي ] ناست اوسي.)) ۳٦ کارمل نور دشوروي لپاره ګټور نه وه. خو برطرف کول يې درامه وګرزېده.

په شوروي اتحاد کې دکارمل دسفر په دوران کې دکې جي بي عمالو اول هغه ته په اشارو او وروسته په واضح ډول وويل چې دګوند دعمومي منشي وظيفه دخاد سروال، نجيب الله ته په وقار سره پرېږدي اوبخپله يوازې دانقلابي شورا رئس اوسي. ليوېند شبرشين وايي چې (( موږ په

ځرګند دول ورته وویل چې په نړۍ او افغانستان کې وضع او پېښونکې ده ، اوددې وخت راغلې چې دی دعمومې منشي مقام خپل یوه ځوان ملګري ته پرېږدي.)) دي ورانـدې لیکي چې (( دغه افغان تکمارو، غوښتل یې له وخت نه استفاده وکړي، او تر هرڅه دمخه کابل ته ځان ورسوي. په پرنسیپ کې یې موافقه وښودله، خو ځرګنده یې کړه چې باید له ملګرو سره مشوره وکړي چې په داسې حال کې چې بدلون راولې په ګوند کې څنګه ثبات وساتي.))۴۷ کارمل په مسکو کې دیوې میاشتې له لم کېدونه وروسته دمې دمیاشتې په لومړي ورځ کابل ته ستون شو.په سبایې دکې جې بې دباندنیواستخبارالوآمرولادمیر کریچکوف (Vladmir-krychkov )، هم ځان کابل ته ورسوه . هغه ځکه کابل ته زر ځان ورسوه چې کارمل له موقع ورته کړي خپل ګوند دخپلې موقوفې پر ضد ولمسوي. کر یچکوف په خپل سملاسې کتنې کې په کارمل باندې غږ وکړ چې په خپلې موافقې باندې ودرېږي. دشبرشین په قول ددغې خبري په اورېدو سره (( دکارمل مخ تور واوښت. له دینه یې انکاورونه کړ چې په مسکو کې خینې توفقات شوي و، خو اخطار یې ورکړ چې بر طرفې به یې دقاراوغضب ځپه خوره کړي ، اودشوروي اتحاد نوم اونښان به په نه جبران کېد ونکې دول سره خساره من شي.سمله لاسه یې چې خبري یې په بې سره دول له خولې نه وتلې چیغې کړي چې ومې وژنې، قربانۍ مې کړلې، زه دمرګ دپاره، دبندي توب دپاره او کړول کېدو دپاره تیاریم، دکریچکوف خبري یې نه اورېدلې، نه یې غوښتل چې خبري ې قطع شي اوخپلې له عصبانیت نه دکې یو اړخېزي خبري یې اورېدي کړې. اواز یې لوړکړ، دخپل له نظرنه لوېدلو دلایل یې یو په بل پسې قطار کړل چې دئولو نتیجه هماغه یوه وه چې دشور اتحاد محرک دافغانان دوضع له سرحداتو نه دباندي واقع دي، اوهغه دشوروي اتحاد دجهاني منافعوله خوادکته کېږي.)) ،((کریچکوف په نرم اودېرنرم اواز،اوپه منظم دول، لکه چې له یوه ګران ناروغ اومایوس ملګري سره ګرېږي، کارمل متیقین کاوه، عزت النفس یې ورستایه اودهغه درناوي اودرنښت خوښوونکي تصویررسم یې ورکاوه چې ملګري به یې په تول عمرکې په شوروي اتحاداوافغانستان کې چا ریېر کړي وي.دشوروي اتحاد دشهرت په هکله کریچکوف ځرګنده کړه چې په افغانستان کې هیڅ څوک له هغو مذاکرونه خبر نه دي چې په شوروي اتحاد کې شوي دي.(( ته فکر کوی چې افغانان خره دي، دهغه درد خواب و.)) (( کارمل

دنزاکت له دايري نه ووت، په هغه حقيقت يې خواشيني ښکاره کړه چې هغه ټول هغه څه کړي چې شوروي اتحاد يې په دې قادرکړ چې د افغانستان په چارو کې مداخله وکړي. کريچکوف په ټينګه ورته وويل چې دشوروي عساکر په افغانستان کې وژل کېږي او دا دشوروي خوانه ځيني حقوق ورکوي. کريچکوف په ټينګه ټرينه وغوښتل چې (خپل خان دافغانستان انقلاب دپاره وساتي.) کارمل په چيغه ځواب ورکړ (چې د افغان انقلاب په سوله کې پريږدئ.وځئ، خپلې لښکرې وباسي. افغانان پريږدئ چې له خپل انقلاب نه په خپله دفاع وکړي .) دمسکو استاذي دغسې وښودله چې دلښکرو دايستلو په هکله يې څه نه دي اوريدلي.))

(( دواړه خواوې ستړي شوي وې. کريچکوف دميني موسکاوکړه او په بله ورځ يې دبيا ليدلو غوښتنه وکړه چې دواړه خواوو به په دغو خبرو ښه سوچ کړي وي. کارمل په غلي دول رضايت ښکاره کړ، خو دسبا په ماسپښين يو تاثير ښووونکي هيات دملي دفاع، کورنيو چارو او دولتي مصونيت دوزيرانو په شمول ورباندي غږوکړ چې استعفی وکړي. کارمل بيا دنا هيلي توب په ځرګند ولو سره انفلاق وکړ خو په پای کې تسليم شو او [دی په ۲ مه يې] دمرکزی کميټي پلينوم ته استعفی وراندې کړه.)) ۴۸

دکارمل استعفی له نجيب الله سره چې دده په ځاي دګوند عمومي منشي شو دموافقت په معنې نه وه. په ګوند کې تر نجيب الله نه، سره له دي چې په خپل نظام کې تر ټولو لوړ مقام ته هسک شوي و، دکارمل پلويان زيات وو او کارمل دهغو په ملاتړ له نجيب الله سره دمخالفت لار ونيوله او په دغه لړکې يې دهغه د(( ملي پخلا ينې)) له سياست سره چې دشوروي حکومت په دستوريې د۱۹۸۷ کال دجنوري په ۱۵ مه اعلان کړ، مخالفت شروع کړ. کارمليانو شايد دکارمل په دستور دسازمان نجات ملي افغانستان په نامه چې زرد سنما په سپک نوم ياد شو اوبيا ترک شو، نوي سازمان وايست او په مظاهره يې شروع وکړه چې په هغې کې يې دشوروي پر ضد شعارونه هم ورکړل. مظاهره وځپل شوه، او کار ملي لويان يا له حکومتي مقامالو نه وايستل شول، اويا درتبو تنزيل ورته ورکړ شو. ۴۹ نجيب الله حس کړه چې په داسې حال کې چې کارمل دانقلابي شورا رئيس وي، که څه هم دايو تشريفاتي مقام و، وبه نه شي کولي چاري دنوي سياست په رڼا کې پنه مخ بوځي. نو په دې پسې شو چې له دغه مقام نه يې هم کوزکړي. کارمل دې کارته هم حاضر نه و، ترڅو نجيب الله ورڅرګندده کړه چې که استعفی ونه کړي هغه شنل

دوسيې به يې په دوران واچولای شي چې په هرې يوې کې د هغه په خيال تورن کېږي. کارمل مجبور شو د ۱۹۸٦ کال دنومبر په ۲۰ دانقلابي شورا له سروالي نه هم استعفی وکړي. نجیب الله له هغه نه وروسته چې دببرک کارمل وجودیې هم دخپل موفقیت دپاره خنډ باله، هغه یې دشورویانو په مصلحت دمسکو په لور روان کړ. عجیبه داده چې دغه کارمل په داسې حال کې چې دخپل پرولتاریايي فکر له مخې افغانستان یې خپل وطن نه ګڼه، دافغانستان اشغال یې دشوروي لښکرو په ذریعه منلي و، او دوطن یوه برخه، واخان، یې چې وېل کېږي دیوی موافقي له مخې شورویانو ته پرې ایښي و، ۵۰ دکابل په هوايي میدان کې پخوا له دې چې الوتکې ته وخېژي په مخکه پاندې پراخ پرېوت، اوهغه یې ښکل کړ. دیوې لیکلي منبع له مخې: (( روزیکه میخواستند کارمل را بروسیه ببرند [کارمل] به نزدیک طیاره بخاک افتیده ومیکوشیدند تا در دل خاک وطنش فرو رود اما باجبرو ناخواسته ار [او] رابطیاره انداخته بردند.)) ۵۱
کارمل په مسکو کې د۱۹۹۱ کال دجون تر میاشتې پورې اوسېده، پخواله دې چې دهمدغه کال داګست په میاشت کې دمیخاییل ګورباچوف پرضد نا کامه کودتا پاندې پېښ وشي. کابل ته ستون شو، کارملیانو دشوروي اتحاد تر ړنګید و وروسته ( دسمبر ۱۹۹۱ ) چې په افغانستان کې نو ر نو کمونستانو توختنه نه شوه کولي، په ظاهر کې کمونستي عقاید هم ترک کړل: دطبقاتي جنګ پرځاي یې قومي جنګ غوره کړ اوشاید په دې منظور چې دمخالفو دلو تر مینځ دقومي جنګونو دپاره پکې ووهي اوخپل خانونه له سمله لاسي خطر خخه بسچ کړي. د۱۹۹۲ کال په مارچ کې یې په مزار کې له قوماندان احمد شا مسعود، عبد الرشید دوستم او داسلامي وحدت ګوند اونورو سره دپښتنو پر ضد ائتلاف وکړ او په اپریل کې یې دجمهور رئس، نجیب الله پر ضد کامیابه کودتا وکړه. ۵۲ خو کارملیان چې دپخواني خلق دموکراتیک ګوند دخوډلګیو له ډلې نه یوازې یو ډلګۍ و، یوازې دمرستندوی قوت په شان وو، او لویان یې ورو ورو له وطن نه ووتل، لکه هسې چې دنورو ورته ډلګیو لویان له وطن نه ووتل. افغانستان اوس دکارملي لویانو له وجود نه پاک دي، لکه هسې چې دنورو ورته ډلګیو دلویانو له وجود نه پاک دی. پیروان یې اوس دګوتو په شمار په افغانستان کې پاتې دي، اوهلته دمسلمانو افغانانو په شان ژوند کوي. پخپله کارمل په ټول دغه وخت کې کله په مزار، کله په حیرتانو او کله په تاجکستان کې دریه دره ګرزېده، ترڅو د۱۹۹٦ کال دوسمبر په ۲ مه په مسکو کې دکوما په حال کې مړشو چې شاید دځیګر دناروغې له امله به و، مړی یې دهغه دوصیت له مخې په حیرتانو کې دعبدالرشید دوستم په اجازه ښخ شو. خو طالبانو بیا دهغه جسد دامو په سیند کې واچوه، او داهغه وخت وچې دوی د۱۹۹۷ کال په سپتمبر کې په حیرتانو باندې مسلط شوي وو. ببرک کارمل اوس دنړۍ په هېڅ برخه کې

کورنه لري. دحفيظ الله امين، او نجيب الله کوورنـه هـم ورک دي. لـره کـې د۱۹۷۹ کـال داکتوبر په ۱۰مه دکابل په قول اوچکان کې خښ شوي و، خو د هغـه کور هـم دروسانو د يرغل نه وروسته د خپل خای نه بيخايه او ورک کړی شو. دمحمد داوُد خان کورهم نامعلوم دی، خودی چې لمنګ افغان اومسلمان و،ددوي په ډله کې نه راځي ،که څه هم الوکـرات اودوطن درواني بې ثباتي موسس دي.

دابـه سمه نـه وي چـې پـه ببرک کـارمل او دهغـه پـه فکـر ونـو او کـړو بـاندې لـه يـوه سره دبطـلان کـرښه وکاږلـه شـي. کـارمل دافغانسـتان پـه سياسـت اوټولنـې بـاندې خپـل اثـر پـرې ايښي دي، کـه څه هـم هغـه منفـی دي. پـيروان يـې اوس هـم پـرې اعتقـاد لـري، اونبـی عظيمـي پـرچمـي لادي دهيـواد پـه اولـه درجـه رجـالو کـې حـسابوي او پـه خپـل کتـاب کـې وايـي چـې((درايـن کتـاب باامـانت داري کـامل از زبـان همکـاران، رفقـا ودوسـتانيم، اززبـان بعضـي از رجـال درجـه اول کشـور مـانند سـردار محمـد داوُد، دوکتـور نجيـب الله وببرک کـارمل وغـيره صحبـت شـده.)) ۵۳ دايـو حقيقـت دی چـې دغـه ښاري شـوي، زړورنـکي، اوږدپـړي، منـدلي اولنـد کـې بکـوف. ۵۴ پـه خپلـو عقـايدو، کـړو، او شـخصيت سـره دوطـن پـه زرګونـو خوانـان او خوانـانې نـه پـه زور، بلکـه دهغـوی پـه خپلـه خـوښه دخپلـې لاري پـيروان وګرزول او پـه خپـل کمونسټي ګونـد کـې تنظيـم کـړل، او بيـا يـې خپـل خان اوخپـل ګونـد تـر دي حـده پـوري دشـوروي اتحـاد غونـډې دنـري دوهـم سـتر نظـامي قـدرت تـه داعتبـار وړ وګرزول چـې همڅغـه شـوروي اتحـاد بيـادوي پـه افغانسـتان غونډې هـواد کې پـه واک راوسـتل. دغـې کارونـه هـر څوک نـه شـي کولـې، يـا يـې هـر څوک نـه کـوي. يـو څوک بـايد دده کاملـه بيوګرافـي وليکـي. دلتـه بـه زه دده پـه هکلـه پـه يـو څو ټکـو بـاندې تبصـره وکـړم .

ببرک کـارمل دپراخـې مطـالعې، منطقـي اسـتدلال، اسـتقامت، او پرلـه پسـې هـا نـد اوزيـار سـره خان ددغـې قـوت خـاوند کـړ چـې پـه ((روښانفکـرو)) بـاندې يې پـه ژور دول نفـوذ وکـړ، خـودی لـه هيـڅ ځـا او هـيڅ پرنسـيب سـره ربنتينـی نـه وه هـر هغـه څوک يـې خنثـي کـوه يـا لـه مينـځه وړه چـې دمقصـد پـه لارکـې يـې خنـد کېـده او لـه هـر هغـه څيزاوهرهغـه چانـه يـې اسـتفاده کولـه،چـې پـه دغـه لارکـې يـې ورسـره مرسـته کولـه. پـه دغـه لارکـې يـې دخپـل خان واک او اراده هـم شـورويانو تـه وسـپارله، اوکارمليـان يـې هـم پـه همـدي لاري بـاندي روان کـړل،او لـه خان نـه يـې پـه پـاي کـې دغـې يـو ذليـل سـروال جوړکـړ چـې دافغانستان پـه تـاريخ کـې څه چـې حتـی ددنيـا پـه تـاريخ کـې هـم سـاري نـه لـري، خووروسته لـه هغـه چـې شـوروي اتحـاد سـقوط وکـړ، اوکمونـيزم يـا پـه

دقیق ډول سوسیالیزم په عمل کې باطل وخوت هغه خپل فکربدل کړ، او دخپلو پخوانیو وېناوو پرضد یې وېناوې وکړې. داهغه وخت و چې ده دخپرتانو په بندري بنارکې دجنرال عبدالمومن تر سیوري لاندې دکانتینرونو نه په جوړې کوډلې کې ملت، وطن ،اوملي واکمني ته دخاینو او خاین په شان ژوندکاوه.هلته دنړۍ دبهواکو سروالانو په دله کې دغه تر تولو بهواکه پخوانی سروال بناغلي حامد علمي په دغو الفاظو مخاطب کړ: (( هما نطوریکه شما مخالف تجاوز شوروي به افغانستان بودید بهمان اندازه منهم مخالف بودم. من ازروزاول مخالف امدن شوروي ها به کشور بودم، ولي ما قرباني جنګ سر دشدیم. مبارزه من نسبت به مبارزه شما دشوارتر و خطرناکتر بود زیرا شما در خارج ومن در داخل قلعه مبارزه میکردم و بالاخره توانستیم نیروهاي شوروي را از وطن محبوب خویش بیرون کنیم وافتخار تیاریخي را براي فردفردکشور خویش کمایي نمایيم )) دکارمل دغو او لاندې خبروزه حیران کړم، حیران یې په دې کړم چې ده څنګه خپل ځان په دې قانع کړې و چې دغسې وغړېږي. افغانانو نه څوګنده ده چې ده دخپل حاکمیت په دوره کې هر څه چې په رسمي ډول ویلي و، ددغو خبرو پرضدو. څوګنده ده چې کارمل حتی له خپل ځان سره هم ربنتني نه و، او یو څوک چې له خپل ځان سره ربنتیني نه وي، له نورو سره ربنتیني کېدلې نه شي. دحیرانې ور بل ټکې دادی چې یو شمیر انسانان څنګه ددغسې نارښتیني انسان پیروي کوي، او نبي عظیمي لادې دافغانستان (( په اوله درجه رجالوکي)) هم حسابوي. دکارمل خبرې یو عام شوي نظر تائید وي، او هغه داچې یو کمونست دخپل هدف په لارکې دروغ ویل، منا فقت کول، له وطن نه تېرېدل، او اخلاقي اصول تر پښو لاندې کول رواګڼي، او په دې ډول دهغه پېژندل اسان کار نه دی.

ببرک کارمل په دغو خبرو هم بسیا نه ده کړې. بناغلي علمي یې دنورو ژورنلستانو په څېر په دې ملامت کړې چې له هغه سره یې جفا کړې. دهغه په الفاظو: (( نه تنها تو بلکه تمام خبر نګاران و ژورنلستان دربرابر من جفاي بزرګ را مرتکب شده اید،طوریکه من اضافه از چارسال در شوروي وچکوسلواکیه زنداني بودم ولي هیچ خبر نګار درباره من ګزارشي به نشر نرسانید وهیچکس دنیا را از زنداني بودن من اطلاع نداد، خصوصا ژورنلستاني مانند شما که خود را افغان میګولید باید از روس ها میپرسید که رئیس جمهور ما کجا است وچرا به شوروي برده

شده است.)) يوازې داهم نه ده . دغه کارمل په دې اوښکې توبولې چې دافغانانو اصيل خويونه له مينځ نه تللي دي: (( ... مسئله اي که زيادتر مرا متاثر ميسازد از بين رفتن اوصاف وخصايل افغاني است، طوريکه ما افغانها در وعده ووفا به ان، شجاعت، مردانگي، ثبات واستقامت شهرت خوبي داشتيم: به حرفي که ميزديم وفا ميکرديم وقولي که ميداديم تاپاى جان استاده ميبوديم ... من ازاين ازبين رفتن ها سخت مايوس هستم ونميدانم چطور دوباره اين خلا را ترميم کنيم.)) تر هر څه ډېردې په دې غمګين وچې (( ... من از شرايط کنوني سخت متاثر هستم وروزها براي وطنم ميگريم.)) ۵۵

له دغو وينااوو څخه ښکاري چې کارمل په پاى کې د((افغان)) او (( وطن)) په زور قايل شوي و، په داسې حال کې چې دمخه يې هم وطن او هم افغانان تر پښو لاندې کړي وو، په دې ډول چې ده دشوروي پوځ په کمک سره په خپل سروال کېد وسره دافغانانو دملي حاکميت حق نقض کړي و، او کله چې همدغه پوځ افغانستان ورانوه، او افغانان يې وژل ده دکارمليانو هغه د (( قواى دوست)) په نامه يادوه. برسيره پردې ده همدغه پوځ دشبر شين په قول افغانستان ته بللي، او بيا چې همدغه پوځ دده حاکميت تثبيت کولي نه شو، ده له شورويانو څخه وغوښتل چې پنځه لکه نور پوځ واستوي، او په هغه سره افغانان دده دپاره ايل کړي. په دې ډول کارمل خپله ګته په دې کې لټوله چې شورويان افغانان ايل کړي، لکه چې نيکه يې، ميرزا محمد هاشم خان غوښتل انګريزان افغانان ايل کړي په دې حساب کارمل په دښمن لمانځنې کې دخپل نيکه په لارروان و، په دې تفاوت چې نيکه يې جنرال فريد رک رابرتس، دافغان -انګليس په دوهم جنګ کې دانګريزي پوځ سر قوماندان دپاره اوکارمل دجنرال سرګى سوکولوف دافغان شوروي جنګ کې دشوروي پوځ سر قوماندان اودنورو دبري دپاره خدمت کاوه، په داسې حال کې چې دافغانانو غوڅ اکثريت دمرګ په قبول سره له دواړو سره جنګيده . په هر حال دحيرتانو کارمل له شوروي کارمل او له هغه کارمل سره چې پخواو، په خرګند ډول په تضاد کې دي. اوس سوال دادې چې اصلي کارمل کوم دي؟ کارمل څله له خان نه څو کارمله جوړ کړل؟ څله په زرګونو روښانفکران ددغسې يوه کس مريدان شول، اوڅله تر اوسه هم دستر جنرال نبي عظيمي په شان کارمليان دده پيروي کوي؟ ددغو پوښتنو ځواب شايد په دې کې وي چې ((انقلابي

روښانفکران)) دکارمل دموفقیتونو په سبب هم دهغه تر نفوذ لاندي تللي وو. داچي کارمل، کارملیان، خلقیان، اوشوروي. کمونستان په خپل اصلي هدف کي ناکام شول، یو څرګند حقیقت دي. خو کارمل ددغي ستري ناکامي نه دمخه په خپلو ګوندي رقیبانو باندي غالب شوی او په خپل فکر دافغانستان واکمن ګرزیدلي و. په لنډ ډول کارمل دګوند دتنظیمولو په اوله کي میر غلام محمد غبار په دسیسي سره لیري کړ، لکه هسي چي علي محمد زهمایي چي دسپنتا په قول (( ددموکراتیک خلق په ګوند کي یي سیاسي فعالیت درلود)) لیري کړ، څکه چي بیا هم دهغه په قول((دګونددکنګري په وخت کي دداسي خلکو حضور... ببرک اولتره کي نه خطر متوجه کوه، چي په انتخاباتو کي به یي دبري چانس کم وي.)) ده حتي میراکبرخیبر هم اول له خپل مخي نه لیري کړ، او په پاي کي یي له مینځه یوور. دسپنتا په قول.(( دکنګري په وخت کي تره کي او ببرک میر اکبر نه ووبل چي نه فعلا دپولیسو منصبداریي، که له په کنګره کي ګډون وکړي، نوخلک به بیا دي ګوند له پولیسي ګوند ووایي، په دي بهانه یي میراکبر او دهغه ملګرونه قناعت ورکړ، هغه په کنګره کي اشتراک ونه کړ، که هغه په کنګره کي اشتراک کړي وای، حتما هغه [له] تره کي او ببرک نه دېري رایي اخیستلي، چي ممکن اول یادوهم شخص وای ... په هر صورت ببرک نه چانس نه و چي دوهم غړي دګوند شوي وای.)) دببرک زور په تره کي اوامین نه رسیده، نو یي انشعاب وکړ، او دخیبر په مرسته یي خپل ګوندکي قوي کړ، خو کله چي دواړه ګوندکي بیرته یوګوند شول، او کله چي دهغه او خیبر تر مینځ اختلافات پراخ او جدي شول کارمل دخپلو جلادانو له لاري، چي په غالب احتمال دکي جي بي په ابتکار به و، خیبر له مینځه یوور. دغي موضوع نه ما په خپل کتاب کي تفصیل ورکړی ، او یکي مي ویلی چي خیبر دکودتا پر ضد و او ویل لی چي کودتا به بریالی شی خو هیواد مونږ نه منی او په دغه کار سره به یي موږ په خطر کي واچوو.کودتا وشوه ، او هغه دخلقیانو په ابتکار بریالی شوه، او یاخلقیانو پر چمي لویان دکارمل په شمول له ملک نه وایستل. په پاي کي کارمل په دي موفق شو چي امین دشوروي په پوځ سره له مینځه یوسي، او دهغه په زور دافغانستان واکمن شي، خو دده دغه بریالي لسوبه ده درښتیني ناکامي پیل شو، څکه چي هغه په خپل دغه بري سره نه یوازي خپل بالفعل او بالقوه مخالفان، بلکه دکابل خپل پخواني ملاتړان اویه مجموع کي دافغانانو غوڅ اکثریت دخپلو

عقایدو، دخپل کوند، دخپل رجیم، اودخپل شوروي اتحاد نه پخلا کېدونکي دښمنان وګرزول. ده په واقع کې په خپل دغه بربالي توب سره دهغوی نو رمونو او ارزښتونو پر ضد عمل وکړ، چې افغانان دهغو په رڼا کې افغانان، مسلمانان، اوخپلواکان شوي وو، او دهغو په الر یې خپل وطن خپل کور، ګور، ناموس او دخپلو نیکونو دغې میراث ګانه چې دښامر هنې په ژبه «ستاره کې پرتې دي تولې تللې افساني زما.»

## پایلیکونه


۱- محمدعلم فیض زاد، جرګه های بزرګملي افغانستان وجرګه های نا منهاد وتحت تسلط کمونست ها وروس ها (پښاور)، ۱۳۶۸ / ۱۹۸۹ . په دغه الر کې دافغانستان داساسي قوانینو متنونه، او دلویو جرګو پرېکړې قېدي دي، اوزه له محترم حبیب الله رفیع نه منته کوم چې ددغه مهم الر یوه نسخته یې مانه ښیلی ده.

محمد حسن کاکړ، «دافغانستان داساسي قانون تاریخ»، ایرانیکا دایره المعارف، توک۶ ، خپرونکي مازده، کلفورنیا، کوستامیسا، ۱۹۹۲ ، ۱۵۸ -۱۶۲

۲- محمد حسن کاکړ، افغان، افغانستان وافغان ها وتشکیل دولت در هندوستان، فارس وافغانستان، دازادافغانستان دلیکوالو اتحادیه (وفا)، پېښور، ۱۳۶۷ / ۱۹۸۸ ، ۱۶ -۲۱

ـــ حکومت او جامعه په افغانستان کې، دامیر عبدالرحمن خان سلطنت، دټکساس دپوهنتون خپرونه، ټکساس لندن، ۱۹۷۹ ، XVII

هیرودوت، تاریخ، مترجم دګرین، دشیکاګو دپوهنتون خپرونه، شیکاګو، ۱۹۸۸ دریم فصل، ۱۰۲ م لمبر (۲۵۹ مخ)، اووم فصل ۶۷ م لمبر (مخ ۴۹۳)

۳ - حبیب الله تږي، (افغانستان)، ازاد افغانستان (اخبار)، دافغانستان دمطالعالو دمرکز خپرونه، پېښور، لومړۍ کال، لومړۍ ګڼه، مارچ، اپریل ۱۹۹۸ /۱۳۷۷ ، ۲۷ دغه اخبار پخوا دوفا په نامه خپریده .


۴- اریانا او خراسان داوسني افغانستان په شان سیاسي واحد وته اوهیوادونه نه وو. سر حدونه یې نالګالي او تل په تغییر کې و. په ارغونو مهالونو کې دنن پر خلاف دهیوادونو دلومونو ذکر کول معمول نه و او هغومره چې دهغو واکمني کورنۍ ګانې مشهورې وې، هغوی مشهورنه وو. په خراسان کې ددغه حقیقت غښتی مثالونه دطاهري، صفاري، سلجوقي ، غزنوي، غوري اوتیموري واکمني کورنۍ ګانې وې. اریانا خو لاهسې هیواد وچې اوسیده و لکنۍ لنی اریائي نژاد وو نه ترک نژاد، سامي نژاد ، تنژاد، ازبکان. هزاره ګان او ازبکان خوبیې اوسیدونکې نه وو. دوی دخراسان په اوله دوره کې هم دخراسان اوسید ونکي نه وو. خراسان په اصل کې دپارس دخلکو له خوا دلمر خاته هیواد په نامه یادیده . دوی اوس هم دخپل وطن لمر خاته ولایت دخراسان په نامه یادوي لکه افغانانو دمشرقي، جنوبي او شمالي نو مونه دخپل هیواد دهغو سیمو دپاره بکارول چې په غو سمتو کې

واقع و. داسې هم دمنځنۍ ختیځ، او لیرې ختیځ اصطلاحات دراوخلې چې اروپاییان یې په ترتیب سره دلوېدیځې اسیا او ختیځې اسیا دپاره استعمالوي.


۵ – مایکل گل ون، جنگ اوهست لوب، یوه فلسفي څېړنه ، څېړونکې: دپنسلوانیا دولتي پوهنتون، یونیورسټي پارک، ۱۹۹۴ ، ۱۵۸ ، ۱۶۲

٦ –محمد حسن کاکړ، افغانستان، دداخلي سیاسي انکشافاتو مطالعه، ۱۸۸۰ – ۱۸۹٦ ، دپنجاب دپوهنې مطبعه، لاهور، ۱۹۷۱ ، ۱۴۰

۷ – محمد حسن شرق ، کرباس پوش های برهنه پا، خاطرات ، دوکتور محمد حسن شرق، ۱۳۱۰ – ۱۳۷۰ ، ارمې کمپیوټر پوست، دهلي جدید، ۱۹۹۱ ، ۲۳۴

۸ – محمد حسن کاکړ، افغانستان ، دشوروي یرغل او دافغانانو غبرګون ، ۱۹۷۹ – ۱۹۸۲ ، څېړونکې: دکلیفورنیا پو هنتون، برکلي، لندن ، ۱۹۹۵ ، ۵۳

۹ – محمد حسن شرق، یا دشوي اثر ، ۲۳۴

۱۰ – عبدالحق واله ، ((اعلحضرت بو طنست بو گرد وقیا (اخبار)، فبروري۱۹۹۸ ، ۲

۱۱ – خاطرات سیاسي سید قاسم رښتیا، ۱۹۳۲ – ۱۹۹۲ مطبعه امریکن سپیډي ، ورجینیا، ۲۳۴ – ۳۲۱ دمولف نوم چې سید قاسم رښتیا دی، ذکر شوي نه دی.

۱۲ – ثریابها، ((ازدژخیمان بیدادگرتاقرارازجهنم کمونیزم)) قلم (مجلـه) مـارچ ۱۹۹۰، کلیفورنیا، ۷۲

۱۳ – ایضاً ۷۹ ،

۱۴ -. ایضاً ۸۱ ،

۱۵ -. ایضاً

۱٦ – الیکزاندر مورو زوف، (( په کابل کې زموږسرې)) نیوټایمز(مجله)، مسکو، ۳۸ ، ۱۹۹۱ ، لومړی برخه ، مخ ۳۹

۱۷ – ((کودتا کانې او وژنې په کابل کې )) ټایم (مجله)، ۱۹۸۲ ،مخ ۳۳

۱۸ – پورتنی منبع

۱۹ – ثریا بها ، یاده شوي لیکنه، مخ ۷٦

۲۰ – کاکړ، یادشوي اثر افغانستان ( ۱۹۹۵ ) مخ ٦۴

۲۱ – حبیب الله رفیع، ((دافغاني روښنفکرانو مسئولیت اورسالت)) تعاون مجله دافغانستان تعاون مرکز څېړونه پېښور، اکتوبر – نومبر : ۱۹۹۷ ، مخ ۱۰

۲۲ – جې – م، کورنیکو ، ((دافغان هالند، دنظامي مداخلې او بیرته وتلو اړیانتیاوي )) دجنوبي اسیا او دمنځني ختیځ مطالعاتو جورنال ، ژمی ۱۹۹۴ ، پنسلوانیه ، مخ ۷

۲۳ – اود ، ر. وستناد (( په افغانستان کې دشوروي دمداخلې په باب نوې روښنې غواسناد)) بو لیتن، ودرو ولسن بین المللي مرکز، ژمی۱۹۹٦ / ۱۹۹۷ مخ ۱۳۰

۲۴ – بوریس گروموف، ارتش سرخ در افغانستان ، دعزیز اریا نفر ژباړه ، (د ایران) دبساندېنو چارو دموسسې چاپ اوخپرونې، تهران، ۱۳۷۵ / ۱۹۹٦ ، مخ ۲۴

۲۵ – کاکړ افغانستان یا دشوي کتاب ( ۱۹۹۵ ) مخ ٦۹

۲۶ - گل زرک خدران، دتــاریخ لــه خاطرونــه ، درســونه ، عبرتونــه ، لومــړي ټوکه پــښور(؟) ۱۳٦۷ / ۱۹۸۸ ،مــخ۸-۸

۲۷ -دقول نقل حسن شرق، یادشــوي اثــر ، مــخ ۲۳۹

۲۸ - پورتنــي اثــر ، مــخ ۲۴۰

۲۹ - ( اتحــاد شــوروي او افغانســتان ، ۱۹۷۸ - ۱۹۸۹ : دروســي او ختیــځ جرمنــي لــه ارشیفونو څخــه اسناد)، دســاره جنــگ بــین المللــي تــاریخ بــو لیستن، دود روولســن بــین المللــي مرکــز، ژمــی ۱۹۹٦ / ۱۹۹۷ ، ۹ -۸ گنی

۳۰ - مــوروزوف، یــا ده شــوي لیکنــه، ۱ مــخ ۳۹

۳۱ - اتحــاد شــوروي او افغانســتان ، یــاده شــوي لیکنــه مخونــه ۱٦۳ -۱٦۴

۳۲ - انتونــي ار نولــډ، دافغانســتان دوه گوندیزکمونــیزم،دســتفورډ پوهنتــون، خپرونــه ، کلیفورنیــا ، ۱۹۸۳ مــخ ۹۹

۳۳ - اتحــاد شــوروي او افغانستان - یــاده شــوي لیکنــه ، مــخ ۱٦۲

۳۴ - ایضــا

۳۵ - ایضــا

۳٦ - ایضــا

۳۷ - ارنولډ، دوه گوندیــز کمونــزم ، یــاد شــوي کتــاب ، مــخ ۹۹

۳۸ - جــیراردیت، افغانســتان ،د شــوروي جنــگ ،کــروم هلــم خپرونــه ، ۱۹۸۵ ، مــخ

۳۹ - محمدحســن شــرق، یادشــوي کتــاب، مــخ ۲۳۸

۴۰- پورتنــي اثــر، مخونــه ۲۳٦ ، ۲۳۷

۴۱ - کریمــوف، یادشــوي اثــر، مــخ ۱۵۳

۴۲ - کــاکړ، افغانســتان، یادشــوي اثــر (۱۹۹۵ ) مــخ ۷۴

۴۳ - دیېګــو کوردوویــز او ســیلیګ س. هــري ســن، لــه افغانستان نــه دبــاندي، دشــوروي دوتلــو داخلــي قصــه،داکســفوردپوهنتــون خپرونــه ۱۹۹۵، نیویــارک، اکســفورډ،مــخ ۲۰۴

۴۴ - ایضــا

۴۵ - کــاکړ یادشــوي کتــاب ( ۱۹۹۵ ) مــخ ۲۵۹ ، ســلیګ هــري ســن، افغانســتان نــه دبــاندي یــاد شــوي کتــاب، ، مــخ ۲۰۳

۴٦ - دقول نقل، دسیلیګ هري ســن لــه خــوا، افغانســتان نــه دبــاندي یــا دشــوي کتــاب ،مــخ ۲۰۸ ، کــاکړ، افغانستان ( ۱۹۹۵ ) مــخ ۷۴

۴۷ - سیلیګ هري ســن ، افغانستان نــه دبــاندي، یادشــوي اثــر، مــخ ۲۰۴

۴۸ - پورتنــي اثــر، مخونــه ۲۰۴ - ۲۰۵

۴۹ - کــاکړ، یادشــوي اثــر (۱۹۹۵ ) مــخ ۲٦۱

۵۰ - ســید طیــب جــواد، ( الحــاق واســترداد واخــان) مجلــه قلــم، جــون جــولاي ۱۹۹۲ ، مــخ ۳۹ ، محمــد نذیــر کبیــر ســراج .رویدادهــاي نیمــه اخــیر ســده بیســت در افغانســتان ، جلــداول ، چــاپ اریانــا پلورنــځي، فرانکفــورت، ۱۹۹۲ مــخ ۱۷۷۰ بناغلــي جــواد دموافقــت لیــک نیــته جــون ۱۹۸۱ اوبناغلــي ســراج یــي د۱۹۸۰ کــال دمــارچ ۱۲ مــه نیــي . دغــه اختــلاف ، او داچــي دمعاهدت لیــک متــن تــر اوســه چــا نــه دي خپــور

کړي . په دي کې شک پیداکوی چې واخان به دکومې لیکلي شوي موافقت نامې له مخې شورویانو ته تسلیم شوي وي. البته په دي کې شک نشته چې واخان شورویانو په واقع کې تر خپل کنترول لاندې نیولی و.

۵۱ - محمد حسن شرق، یادشوي کتاب، ۲۴۰
۵۲ - محمد حسن کاکړ((افغانستان، سیاست، دسیسه،کوتاه فکري ونفرت)) جرگه، ارگان نشراتي حرکت تأسیس حکومت انتخابي در افغانستان، لاس انجلس. شماره ۵ ، اپریل ۱۹۹۳ ، ۱۰ -۱۹
۵۳ - محمد نبي عظیمي، اردو وسیاست ، درسه دهه اخیر افغانستان، ناشر سباکتابخانه، پشاور، ۱۳۷۶ / ۱۹۹۷ ش
۵۴ - بکوف، ببرک کارمل وطنفروش ، په کابل کې خلکو کارمل دبکوف په نامه یادوه .
۵۵ - حامد علمي ، سفر ها وخاطره ها ، کتابخانه دانش، پشاور، ۱۳۷۵ ، ۱۹۹۶، ۲۰۹،۲۱۰



# په قومي او ژبنيو ليکو باندې دافغانستان دويشلو په مقصد دمسکو احتمالي پلان

بـروس رچردســن

دبناغلي بروس رچردسن دغه ليکنه دهغه دنوی خپور شوي کتاب يو فصل دي په نامه د: افغانستان، دشوروي دترورسلطنت ختمونکي، دغه فصل پخوا په افغانستان( اپريل ۱۹۹۸) کې خپور شوي، او تر هغو دمخه ماته په همدغه اثر کې دنيولو دپاره استولي شوي و.

په دغې ليکنې کې دافغانستان په باب دنويو منابعو له مخې عمده مطالب خاي شوي دي. يو عمده مطلب يې دادی چې دشوروي حکومت لويانو ديوري اندروپوف او ميخائيل ګورباچوف په ګډون دافغانستان دلاندې کولو اوويشلو په مقصد دغې سياستونه وايستل چې دهغه له مخې تنظيمونه اوقوماندانان، دنظامي عملياتو تر څنګه په نورو طريقو سره پخپلو کې په جنګ واچوي او په دې ډول ددوي دپوخو نو اولاس لاندې پر چمې رجيم پر ضد دمقاومت جبهه ضعيفه کړي. په دغه کارکې دوی له خينو سره ترڅه حده بريالي شول. وروسته يې په لاپراخه پيمانه دقومي مليشياوو او قوماندان واکمنې پلانونه وايستل. شورويانو تر انګريزانو نه زيات دافغان اوانګليس په جنګونو کې دافغانانو تر مينځ دنفاق اچولو کارته زوره ورکړه که شوروي اتحاد ړنګ شوي نه واي ممکن دافغانانو مشکل لا هم زيات واي. په دغې ليکنې کې دا اودغسې نور عمده مطالب تر بحث لاندې نيول شوي دي ، او ددې دپاره چې هغه په دقيق ډول لوستونکو ته وړاندې شوي وي ما دغه ليکنه پخپله په پښتو وا ړوله خوخينې ورې رابردونکي برخې مې دملي مصلحت له مخې پرې ښوولې.

محمـــد حســن کـــاکړ

ترکستان،افغانستان، دکسپين سيمې، پارس دسطرنج هغه ګوټونه دي چې
په هغو سره دنړۍ دلاندې کولو دپاره لو به کيږي.

لارډکرزن

لکـه هسې چې دشوروي دولت داويـا کـالونو پـه تـاريخ کـې زيـاتره پـيښ شـوي دعمـل پـه ډګر کې ددغـه ضد اسـتخباراتي دولـت دوج زور سـلوکونو پـه وروسـته دورونـو پـه خـاص ډول انـګازې راپـور تـه کـړي دي.

دبدكري پاخونونو پر ضد دشوروي سوزونكو عملياتو له هغو تجاربو خخه منشاء اخيستي ده چي شوروي اتحاد دشلمي پيړۍ په سركي په قفقازكي دمخنو (Makhno) او تامبو ( Tambov ) پاخو نونو پر ضد او په منځني اسيا كي دبزمه چي (Basmachi) پاخون په مقابل كي كړي وو. دنړۍ له دوهمي جګړي نه وروسته دوره كي سرو لښكرو او دولتي امنيتي خاصو واحدونو دبالتيک او اوكرايين پاخونونه په ګده وخپل ددغو واحد ونو تكتيكونه دله يېز اعدا مونه، تبعيد ونه، او دپراخو زراعتي مځكو شاړ كول وو، په دي هدف چي دپاخون كوونكو بشري او مادي بنسټ په فزيكي دول له مينځه وايستل شي. ۱ ددغي سابقي په نظر كي نيولو سره په افغانستان كي له ۱۹۷۹ خخه وروسته دمسكو اعمال بايد نه بي مثاله او نه حيران كوونكي وګڼل شي. دكي. جي. بي . ام. وي. دي (M.V.D) او جي ار( G.R ) خاصو موظفو واحدونو دمجاهدينو په مقابل كي له خاصو تخنيكونو نه كار اخيسته، چي هغه استخبارات، سازشونه، خرابكاري، پارونه، او مځكنيو، او هواي قواوو دلوړو وسلو له سوزونكو قسابليتونو سره دورو واحدونو ګډ ول وو، په دي مقصد چي عنعنوي زراعتي جامعه بيرته ابتدايي حال ته واروي . ۲ له يوه نظره شورويانو افغان پاخوونكو ته دبزمچي په ويلو سره بي له دي چي پام يي شوي وي، د ((لوبي)) په له لاسه وركولو باندي اقرار وكړ دادهغوي له نظره دتاريخي سابقي په لرلو سره يو سپک نوم و، او په اصل كي ددي دپاره وضع شوي و، چي په هغه سره ديوه عنعني اسلامي كولتور دوړو مځكه والو بذكرو نوم داغي كړي. دغه اعمال او همدا راز شوروي اتحاد ته دتلقين او روزني په منظور دزركونو ماشومانو انتقال په ګده دمسكو دنياتو پيش ګويي كوي، چي مقصد يي په نهلستي طريقي سره دافغان دتولني له سره تنظيمول دي. دغه طريقه سري ته هغه سترا تيجي په زړه كوي چي ((روسي)) او شوروي اتحاد په نونسمي او شلمي پيړۍ كي په قفقاز او منځني اسيا كي دمسلمانو ولسونو په مقابل كي په مخ بيولي وه.

## دكاسكاد (kaskad) عمليات

د۱۹۸۱ كال په دسمبر كي په مسكو كي ليونيد برېژنيف ببرک كارمل ته دستور وركړ، چي په افغانستان كي دشوروي دحضور دتينګښت او په شوروي اتحاد پوري دهغه دتړلو دپاره دګر هواركړي. دجنرال غلام صديق ميره كي په قول چي هغه دشوروي پلان په باب له اصل منبع نه معلومات ترلاسه كړي و، او وروسته له هيوادنه ووت، دبريژنيف پلان دهغه شديد مخالفت له امله عملي نه شو، چي دخلق اوپر چم دكمونستي دلو

ترسينځ موجود و. ۳ بريژنيف دخپلو استخباراتي شبکودسروالانو په شوروه دافغانستان دتوته کولو پلان ياد کابسکا دعمليات وايست. ۴ دکاسکاد عمليات موظف و په پته هغسي کارونه وکړي چې دهند وکش په شمال کې دنهو ولايتونو دکوبنه کولو دپاره ضروري وو، چې هغه دشوروي په هغو جمهوريتونو کې مدغم کړي چې هلته هم عين قومونه اوسي. دشمال په دغو ولايتونو کې غير پښتانه [په مجموع کې] په اکثريت کې دي. دهندوکش جنوب افغانستان به په دغسي نامه خپلواک عمدتا پښتني حکومت وي چې هغلته به دلوی پښتونستان او بلوچستان دبيلتون غوښتني حرکتونه دعامل په حيث فعال وي. دغه حرکتونه به په دغي چاودونکي سيمه کې دشوروي پلان ايستونکو دپاره دبې ثباتي دپيداکولو او له نارامي نه داستفادي کولو دپاره شايد خورا ارزښتناک ثابت شي.۵ ميره کې څرګنده کړه چې ((بريژنيف کارمل ته وويل چې... افغانستان به تجزيه شي، په دي ډول چې دکابل په شمول به دشمال نهه ولايتونه دشوروي اتحاد تر پوره کنترول لاندي وي، او نور مملکت به په خپل سرنوشت پاتي وي.)) ٦ شورويانو په خاص ډول دکندوز، سمنګان، بدخشان، بغلان، تخار، بلخ، جوزجان، بادغيس، او فارياب له ولايتونو سره علاقه لرله. دغه پلان به شوروي اتحاد په دي قادر کړي چې دغه سيمه لاندي کړي، بې له دي چې په دېرو لګښتي نظامي عملياتو باندي تکيه وکړي، او دمخابراتواودموادواستولودوه ارخيزي لويني لاري خوندي وساتي. دشمالي سيمواوسيدونکي زياتره تاجک او ازبک دي چې په قومي لحاظ دشوروي اتحاد دجمهوريتونو [له اسيدونکو سره] ورته وي. ۷ کې. جي. بي. ددغه پلان ملاتړ وکړ چې دهغه له خپل نظرسره چې دافغانستان کشاله ځنګه هواره شي. نسبتا نږدي و. ميره کې وويل چې ((دکې. جي. بي. لوړو ماموراتو داسي حس کړه چې افغانستان په محدودو قواوو سره کنترول کېدلې شي.)) دکې.جي. بي. نظر داو چې په خاد باندي په ټينګه زوره واچوي، چې قومي، مذهبي، او نيشنلستي. عواملوته پام واړوي او له هغو نه کټه وچته کړي. ۸ دکاسکاد ترخارني لاندي دکې. جي. بي. دسر حدي محافظ مديريت پوځونو دافغانستان دشمالي ولايتونو ساتنه په دغسي ډول سره په خپلو لاسونو کې ونيوله چې هغه لکه دشوروي اتحاد دمنځي اسيا دجمهوريتونو توسعه اوسي. دکاسکاد ترکنترول لاندي به شمال له جنوب او جنوب غرب نه په څرګند ډول بيل وګنل شي، او پاليسي به ددغه نظر له مخې عملي شي. دماسکو هدف داو چې دغسي شرايط خلق کړي چې

په هغو سره به محلي خلق خپله ګټه په دي کي ووينی چی موجوده وضع په خپل حال وساتي.

په دي ډول انکشافي پرمختيا اوګټه اخيستنه نوردي په کلي ډول په شمال کې متمرکزه شوه. شورويانو دامو سين. انکشاف ته چې شوروي اتحاد له افغانستان څخه بيلوي زوره ورکړه. دغازاو بريښنا پروجې تر لاس لاندې ونيولی شوې. دکندوز او هرات په سيمو کې داوبو کولو دوه بند ونه ودان شول، اونوريې داوږدې مودې او ستراتيجيکي پلان جوړولو په مرحله کې و. ۹ شورويانو او متحدينو يې په شمالي سيمو کې دښارونو، کليو، اواطرافي سيمو له ورانولو څخه ډډه وکړه، په داسي حال کې چې مسکو په جنوب کې په فعال ډول په دي پسي شو چې نه يوازې دخپل حاکميت په مقابل کې مخالفت له مينځه يوسي، بلکه ټول هغه څه هم له مينځه يوسي چې دپښتنو ژوند پرې باندي ولاړ و، او دهغوي دژوندانه وسايل يې برابرول. ۱۰ دشمال له سيمې نه دباندي داوبو کولو شبکي، فصلونه او کلي وران شول، سيمي بې نفوسه شوې، او جنوب پسته رښتيا نی شاړې باندې بدل شو. ۱۱ دنظامي عملياتو طرح دغسي منظم کوښښ بنوده چې په هغه سره دقومي اساس له مخې انتخابي سيمي يعنې هغه سيمې چې نږدې ټولي پښتني وې بې نفوسه کړي. دشوروي نظاميانو له خوا دجنو سايد (يادقوميت په اساس قتل عام) له طريقې نه استفاده وشوه چې مقصد يې دپښتنو شړل وو. هوايي بمبارې ګانو په شمول دهوايي انفلاقونو او دنيپام بمونو کلي په پوره ډول په کنډوالو بدل کړل. توپ لرونکو هلي کو پترونو دپرار په حال کې خلک ووژل. دبمونو، راکټونو اوتوپونو په شديدو ويشتنو باندي کلي هوارشول، دشوروي او پرچمي رجيم ګډ و مخکنيو قواوو قتل عامونو اونورو له وحشت نه دکو اعمالو سيمي په کلي ډول په فرارمجبوري کړي. بنه ځند وروسته چې برغل به سست شوي و، افغانان به په ضد انسان (انتي پرسونل) ماينونو سره چې دپه شاتلو نکو لښکرو له خوا به په کليو، فصلونو او دخوړو دزيرمي کولو په ځايونو کي ايښودل شوي وو، عيبي کېدل او وژل کېدل. دفصل تولولو په وخت کي درمندونو ته اورواچول شو، تاکونه به وايستل شول، او باغونه به وران شول. اورمې اوګلې به له مينځه يوړلي شوي. دپېريو پېريو داوبو طرزونه چې دافغان کرنه پرې باندي متکي وه ويجاړ شول او نيرازه مخکي په بيديا وو واړولي شوې.

په دي ډول دقوميت په اساس دشديدې سوزوني سياست دغسي سنجول شوی کوښښ بنيي چې (( ترورحکومت وکړي)) او هغه په

دې ډول دپښتني کليو په مقابل کې دشوروي او پرچمي رجيم دعملياتو دجنګ په نظم باندې بدل شو. ۱۲ دکا سکاد بل ارخ دمحل له غير پښتني قومونو څخه دخاصو قواوو غوره کول، جلبول او تنظيمول وچې په شمالي سيمو کې دمسکو له خوا قدرت ونيسي اوتينګ يې کړي. دغه قوه به دشوروي اتحاد دعين قومونو دمنسوبينو له خوا پياوړي کيږي. ددغو همکارانو له دلي څخه ديادوني وړاودشوروي داستخباراتو دابتکار دتوجه وړ محراق داحمد شاه مسعود دپنجشير وسله وال مخالفان او دعبدالرشيد دوستم جوزجاني مليشاشوي. ۱۳ شورويانو په سيمې کې دقوميت،مذهب، ژبې اوتاريخ بيلوونکي مميزات تر موجودو ملي سرحداتو څخه مهم وګڼل. په دې ډول دشوروي په ملاتړ او فعالي مرستې سره دتاجک او ازبکو مليشايي قواوو څخه دغې شوروي پالې ائتلاف راووت چې په خپل پښتنون ضد تمايل سره په خپلو کې سره يو موټي شوي وو. ۱۴ [مترجم دلوستونکو پام دغه مهم ټکي ته اړوي چې سره له دې چې شورويانو او دپرچمي رجيم لوبيانو دافغان دقومونو ترمينځ دنفاق اچولو او دښمني پيداکولو سياست عملي کاوه دافغان قومونو نه له هغه سره مخالف وو، او خپل مخالفت يې په عمل کې په بېلو بېلو بڼو وښود. البته احمدشاه مسعود او عبدالرشيد دوستم داقتدار دګټلو دپاره له دغه چلند سره ممد شول، خودوي په دغه برخه کې دخپلو قومونو نمايندګي نه شي کولي.] دکاسکاد دتطبيقولو په پړاو کې دمقاومت له وتليو لوبيانو سره دهمکارۍ تړونونه مهم وګڼل شول، څکه چې دغو تړونونو لږ ترلږه دشوروي لښکرو قطارونو ته اجازه ورکوله چې په لويو ستراتيجيکي لارو په تيره دسالنګ په حساسي لارې باندې، چې په کابل کې يې دموادو دتهيه کولو او ارتباط ساتلو دپاره په خاص ډول اهميت لاره، په محفوظ ډول تګ وکړي. ۱۵ شورويانو په دې ډول د۱۹۸۰ لسيزې په زياته مسوده کې دافغانستان دتوته کولو پلان ته زوره ورکړه. دوي د۱۹۸۴ کال په آخر کې له ترمز نه مزار شريف ته دريل دغزولو خط، او همداراز هلته ديوه اداري مرکز په جوړولو باندې بيړه کوله. په نتيجه کې ددېرو راپورونو له مخې د۱۹۸۴ کيال دوسمبر او د۱۹۸۵ کال دمارچ تر مينځ شورويان مزارته دمرکز دليږدولو پلانونو دطرح کولو په کاربانډي لګيا وو.

دافغانستان ددموکراتيک جمهوريت دوسله والو قواوو دتوته کولو دپاره هم تياري نيول شوي و، او هغه داچې شورويانو وسنجوله چې دجوزجاني قومي مليشيا ددوي داوړدې مودې دستراتيجي اوهدفونو دپاره پښه څرګند ډول ښه مناسبه ده. ۱٦ شورويانو دليل راوړ چې

((دلښکرو دلامتحول تنظيم په مقصد دشمال نظامي علاقي چې مرکز به يې مزاروې، تاسيسيږي.)) دمحل دتاجکو او ازبکو څخه ددغې علاقې قواوې د کې جې. يې دخاصواو عسين قومونو تنه دمنسوبينوله خوا جلبيد لي. په دغې طريقې سره دغښي يوه تينګه نظامي قوه رامنځ ته شوه چې په داسي حال کې چيني دشوروي دځلويښتم لمبر پوځ قوماندانۍ ته يې وفاداري ساتله په خپلو محلي کتو باندې په تينګه ولاړه وه. ۱۷ دکابل [پرچمي حکومت] دهيواد توته کول نه ردول اونه يې له نظره غورځول. دغه سياسي عمليه په نسبتا په زړه پورې چاپيريال کې روانه وه اوځنګه چې د۱۹۸۲ کال له پيل نه داحمد شاه مسعود دپنجشير له مخالفو قواو وسره دنه يرغل يو لړ ترونونه وشول دشمالي افغانستان په زياترو برخو کې په واقع کې هيڅ جنګ ونه شو. کوم هغه جنګونه چې په دغه مهال کې وشول هغه داحمد شاه مسعود دپنجشيردمخالفو قواوو او دشوروي هغه ګډ عمليات وو چې دمقاومت دهغو ډلو په مقابل کې يې کول، چې له مسعود سره په مخالفت کې وو، او کومو چې د سالنګ په لارکې دشوروي قواوو دانتقال مخه نيوله. ۱۸ نو راعمال لکسه دمهمو قوماندانانو وژنه، داطرافي او ملکي خلکو په مرکز ونو باندې بر غلونه، دوسلو دکاروانو نو مخنيوي، او دليرولارو ديو څو برخو دکنترول دپاره مسابقه په هغو سيمو کې په شدت روانه وه چې پښتانه پکې په غالب اکثريت کې وو. ۱۹

دکاسکاد دنطبيق په جريان کې شورويانو دافغان دمقاومت دشمالي غرو دموافقينو په جلبولو کې خپل ستراتيجيکي لېري هدف درک کړ. شورويانو په خپله برخه کې له احمد شاه مسعود نه ليکلي شوي دادګير نې ترلاسه کړي چې هغه به ژمنه کوي چې دشوروي او پرچمي حکومت دموقفونو په مقابل کې، او همدا راز په جنوبي سالنګ اونورو سيمو کې چې دده تر مطلق کنترول لاندې و، دنظامي فعا ليتونو مخه ونيسي. ۲۰ د۱۹۸۰ کال دلسيزې له نيمايي نه وروسته دغير پښتني قومو نو او په خاص ډول دپنجشير دمخالفو قواوو او دجوزجاني مليشيا په مينځ کې دخاصو مليشايي قواوو تنظيمونه دمرکز دساتنې دپاره وسيله وګرزيده. همدا راز هغه له شوروي نه کابل ته دمهمو موادو دانتقال دپاره دلارې دمصئون ساتلو وسيله هم وګرزيده. ۲۱ داهم د۱۹۸۰ لسيزې په مينځ کې وچې دشوروي او ايران حکومتونو په ګډه دافغانستان توته کول دپټې خولې داتفاق په کولو سره چټک کړ، داسي اتفاق چې په ظاهرکې دبوه ګډ دښمن يعنې دامريکې دباندنيو سياستونو دشنډولو دپاره تجويز شوي و.

په نتيجه کې تهران ته سفر او له هغه سره تماس نيول نه يوازې داچې اغماض شو، بلکه دمسکو او کابل له خوا تشويق شو او ځنګه چې دافغانستان شيعه ګانو ايران خپل مذهبي او کولتوري مرکز ګاڼه د۱۹۸۰ لسيزې اخري نرم والي دايران دنفوذ خپريدو او دهغه دبشري کومکونو دپاره په پراخه پيمانه اسانتيا وې برابرې کړې بې له دې چې کابل يې مخه ونيسي ، ۲۲ دايران دنفوذ په خوريدو سره دمقاومت محلي تنظيمونو په تيره داحمد شاه مسعود نظار شورا خپل تنظيمونه دايراني پرنسيپونو په اساس عيار کړل. په دې ډول په غير پښتني تنظيمونو په تيره په شيعه تنظيمونو کې مذهبي او سياسي لغات هغه شو ل چې دايران خميني پاله حکومت په کارول.۲۳ ددغسې اوږدې مودې لوخ والي اغيزه داشوه چې دايران حکومت دمشروع او حمايه کوونکې قدرت په حيث په پراخه پيمانه ومنل شي او دنظرياتو او سياست پيروي يې وشي، (۲۴) دايران - شوروي اتفاق دمسکو دقومي ژبې تقسيموونکې ستراتيجي ددليل وجود وګرزيد چې دکاسکاد برې يقيني کړي. ۲۵ په نهايت کې په ۱۹۸۰ لسيزې کې په افغانستان کې ډير مهم انکشافات له مرکزي شويو موسساتو څخه چې په کابل يا پښتنو کې و، دقومي وفادارې په اساس محلي شويو واحدونو ته دقدرت او مشروعيت تدريجي انتقال و. هغه څه چې په خاي پاتې شول او په لويديځې نړۍ کې يې پام جلب نه کړ، ددغسې قدرت ميکانيزم و چې دمسکو پلان به په دوام لرونکې ډول سره تطبيقوي په عين حال کې چې هغه به زرتقويه کيږي.(۲۶) د۱۹۸۹ کال له بيرته وتلو نه وروسته دقوميت په اساس دهيواد دټوټه کولو پلان هيڅکله ترک نه شو .

## پايليک


۱ – جان جي، ژپاک، چکستي، دکې. جي.بي . تاريخ ، ليکز نتن، خبرونکي دليکزستن کتابونه، ۱۹۸۸ ، ۵۸

۲ – پاسني، ا لر، ۱۱۲

۳ – يوسف بودانسکي، (( دکابل سقوط دسيمه يېز ستراليجکي بدلون تګ نه دي وروکړي)) دباندنيو چارو او دفاع ستراليجي پاليسي ، واشنګتن، ۱۹۹۲ ،۱۱

۴ – پاسني ليکنه ، ۱۱

۵ – پاسني ليکنه ،۱۱

٦ – پاسني ليکنه، ۱۱

۷ – پاسني ليکنه ،۱۲

۸ – پاسني ليکنه ، ۱۲

۹ - ايلي كرو كاو سكي، ( افغانستان او دشوروي جهاني منافع ) دروزان كلاس په تدوين شوي اثر كي ، افغانستان : په ستري لوبي بيانظر، خپرونكي، فريدم هو س، نيويارك، ۱۹۸۷، ۱۷۷

۱۰ _ پاسني ليكنه۱۷۸

۱۱ - پاسني ليكنه،۱۷۸

۱۲ - دروزان كلاس، (( جنوسايد په افغانستان كي، دايزراليل چارني په تدوين شوي اثركي په نامه د، دجنو سايد په پراخېدونكي كړي كي، دوهم توك، نيوبرنزوك، ترانس اكشن پبلشرز، ۱۹۹۴ ، ۱۲۹ -۱٦۴

۱۳ - بودانسكي، ياده شوي ليكنه، ۱۲

۱۴ - پاسني ليكنه ، ۲۲

۱۵ - بوريس ګروموف، محدودقطعات، ۱۸۸ - ۱۹۷

۱٦ بودا نسكي، ياده شوي ليكنه، ۱۲

۱۷ - پاسني ليكنه ، ۱۲

۱۸ - شهنواز تني، مركه له ليكونكي سره، راولپنډي، نومبر ۱۹۹۷ ، تني، دافغانستان ددفاع پخواني وزير ، په پنجشير كي دجمعيت دتنظيم او شورويانو دهغو ګډ و عملياتو تفصيلات څرګند كړل، چي دهغو مجاهدو دلو په مقابل كي ي كول كومو چي دډموكراتيك جمهوريت، پاشوروي قواو دپرضد ير غلو نه كول

۱۹ - بودانسكي، ياده شوي ليكنه ۱۲

۲۰ - شبر شين دمسكو لاس ، ۱۷۷ - ۲۱۴

۲۱ - بودانسكي، ياده شوي ليكنه ، ۲۲

۲۲ - پاسني ليكنه ، ۲۳

۲۳ - موسي خان جلال زي، په افغانستان كي فرلوي او اتنيكي تشدد، پيښور، والسكارد، ۱۹۹٦ ، ۱۳۷

۲۴ - بودانسكي، ياده شوي ليكنه ، ۲۳

۲۵ - شهنواز تني په يادي شوي مركي كي چي محترم سيد نور الحق حسيني ترجمه كوله له شوروي اتحاد سره داحمد شاه مسعود دهمكاري په هكله زما دپوښتني چي په مقابل كي څرګنده كړه چي (( په هغه حال كي چي نجيب الله به نورنو خپل وظايف تر سره كولاي ونه شول، احمد شاه مسعود دشورويانو له خوا دهغه دخلف په حيث ونومول شو ، هغسي چي ببرك او نجيب دشورويانو دګټو دتمثيل كولو دپاره غوره شوي وو، دي هم غوره شو، زه شخصاً بوريس ګروموف پېژنم ، او هغه څه چي هغه ، په خپل كتاب، محدود قطعات، كي دمسعودپه باب ليكلي واقعي دي.))

۲٦ - د۱۹۹۷ كال داكتوبر په ٦ مه دكندهار دسرپوزي په بندي خانه كي له څلورو ايراني عسكرو او همدا راز له جنرال اسماعيل خان سره زما دپاره دمركو كولو چانس پيداشو. دغه عسكر دطالبانو له خوا دهرات په جګره كي نيول شوي وو. له هغو څخه يوه يي په افغانستان كي دجنګ په كولو سره اعتراف وكړ او وي ويل چي دهغه مطلب دغنيمت ګټل وو، نورو ايراني بنديانو په افغانستان كي دخپل حضور اونقش په هكله له څرګندونو سره ميلان ښكاره نه كړ.

جنرال اسماعیل خان څرګنده کړه چې په ایران کې روزل شوي هزاره ګان په الوتکو کې بامیان ته واستول شول ، اوبیا دایران له خوا ، مامورشول چې دافغانستان په شمال کې دطالبانو پر ضد التلاف کې وجنګیږي. جنرال اسماعیل خان یانه غوښتل او یاې نه شو کولې دهغو عسکرو دشمیر په باب وغږیږي کوم چې ایران یې تهیه کړي. دغومره یې وویل چې((شاید پنځه یالس زره.)) دده کورنی په تهران کې ده، اوهلته دغې اوسي چې لکه په کورکې بندی وی. په دغومرکوکی سید نورالحق حسیني تر جماني کوله.

## په پنجشیرکې اوربند

درښتین توب ستر دښمن زیاتره یوازې عمدي، تجویز شوي او دمنافقت دروغ نه بلکه پاتې کېدونکې ، هڅونکې او غیر واقعبینانه افسانه ده.

جان اف ، کنیدي

د۱۹۸۰ کال په پسرلي کې دکابل. رجیم دشوروي دیر غلیزو پوځې واحدونو په پله احمدشاه مسعود، دپنجشیر دجبهې قوماندان ته یو هیات واستوه چې ددغې درې له مجاهدینو سره دمذاکرو په کولوسره مقاومت ختم شي. دغه هیات له پنځو کسانو څخه جوړوو چې په هغو کې داحمدشاه مسعود تره، محمد عیسي، هم شامل و. ۱ دپنجشیر ددرې مشر تابه پوهیده چې دغې تعیین کوونکې وخت راغلې چې یو لړ ضروري تشکیلاتي، سیاسي، اونظامي اقدامات وشي. ۲ په جبهه کې په دې اتفاق وشو چې په دریو مهمو ضرورتونو باندې سوچ وشي او هغه تسوید او عملي شي.

۱ - دغې یو پلان چې احمد جان پهلوان شند کړل شي.

۲ - دغې یو سیاست چې دشوروي له قوماندان سره خبري وشي.

۳- دغې یو سیاست چې درقیبو مجاهدو تنظیمونو په مقابل کې دپنجشیر دجبهې ګټې خوندي وګرزولې شي. هیات په دره کې لا په خبرو بوخت و، چې روسي پوځونو داپریل په لسمه ۱۹۸۰ دلومړي خل دپاره په پنجشیر باندې یر غل وکړ. وروسته، چې دلایل یې څرګند نه دي، معلومه شوه چې دیرغل روسي قوماندانانو له هغو خبرو څخه خبرکړل شوي نه وو، چې له احمد شاه مسعود سره رواني وي. ۳ یو دلیل به یې دکابل، شوروي ګډه پریکړه وي چې دپنجشیر له جبهې سره دزور له دریغ نه خبرې وشي.

روسانوپه پنجشیر باندې ددوي دلومړي یرغل په دوران کې داپریل په ۱۷ مه دکابل دقوماندانې دمرکز دحکم له مخې سمله لاسه امروشو چې دپنجشیر دجبهې په مقابل کې له عملیاتونه لاس واخلي. په همدغه وخت کې و چې احمد شاه مسعود یوازې دځلوښتم پوځ له

قوماندانی سره دخبرویه کولو باندې تینګار وکړ. ۴ عبدالحفیظ منصور، داحمد شاه مسعود سیاسي امر او بیو ګرافي لیکونکي په خپل کتاب کې د۱۹۸۲ کال دهغه اوربند په هکله موافقه په تفصیل سره بیانوي چې مسعود او دشوروي دخلوېښتم لمبر اردو دقوماندانان تر مینځ شوې وه. دمنصور کتاب، پنجشیر دجهاد په دوران کې، نومیږي، چې په کال ۱۹۹۱ کې په پېښور کې خپور شوي دي. منصور په خپل دغه کتاب کې دشورویانو دغوښتنو په هکله هیڅ نه وایي خو ګریګور یيف (Grigorev) وایي چې دمنصور او شوروي لیکوالو دمشاهداتو تر مینځ جدي تفاوتونه او حذفونه موجود دي. ۵ ددې ټکي یادونه مهمه ده چې دنباغلي منصور کتاب په ۱۹۹۱ کې له چاپ نه وروسته چې په پېښوراوکابل کې دخرڅلاو دپاره وړاندې شوي و، دمسعود دکسانو له خوا بې له دې چې دوي کوم دلیل وړاندې کړي، راټول شو. داکتاب بیا په بل کال یعني ۱۹۹۲ کې چاپ او دخرڅلاو دپاره عرضه شو. ویل کیږي چې څنګه چې دغه کتاب داحمدشاه مسعود دپاره په سیاسي لحاظ ګران تمامیده هغه له دکانونو نه دهغه دټولولو حکم وکړ. ۶ په کال ۱۹۹۲ کې دکتاب دوهم چاپ هغه څرګند ونې سمې کړې او مسعود اود پنجشیر جبهه یې تر ېخوا نه زیاته په مثبت ډول وښودله، چې په دې ډول یې د(پنجشیرزمري) افساني دایمي توب یقیني کړي وي. ۷ روسي نومیالي ختیځ پوه اس. ای. ګریګوریيف (S.E.Grigoriev) دښاغلي منصور کتاب د۱۹۹۱ او ۱۹۹۲ کالو نسو دواړه نسخې روسي کړې او په کال ۱۹۹۷ کې یې دسان پیټر سبرګ دولتي پوهنتون له خوا خپورکړې په نامه د: پنجشیر دیوه افغان مورخ له نظره ۱۹۷۵ - ۱۹۹۰. ګریګوریيف چې د۱۹۹۲ کال داپریل په ۷ مه کابل ته دیوه بل مقصد دپاره په سفر تللی و، له منصور سره دلیدلو غوښتنه وکړه، چې په ظاهر کې دهغو اختلافاتو اوتنا قضالو په باب معلومات تر لاسه کړي چې دعین پېښو په باب دهغه اودروسي دنظامي ارشیفونوترحو ترمینځ موجود دي. پروفیسر ګریګوریف لیکي: (۸) (( دهغو نیمګړو معلوماتو له مخې چې ددغه مولف په باب دمنصور په کتاب کې ورکړ شوي دي، دي په پنجشیرکې پیداشوي، او په دغه دره کې یې تر یوه وخته پورې ژوند کړي دي، او په پېښور کې دافغاني مهاجرینو په کمپونو کې زیات ګرزیدلي دي، عبد الحفیظ منصور دافغانستان داسلامي جمعیت په مشر تابه کې مقام لاره، اوددغه تنظیم په سیاسي څانګه کې دمسئولي عهدې خاوندو. دجمعیت دتنظیم له استازو سره دخبرو په بهیر کې زموږ کوښښونو چې دهغه په هکله نور معلومات ترلاسه کړو نتیجه ورنکړه. له

منصور سره دشخصي ليدنې دپاره دجمعيت دتنظيم له مشر تابه نه زموږ غوښتنې، چې ديادو شويو نيمګړتياوو په باب سره وغږيږو هم ناکامې شوې. منصور دډيرو مهمو پېښو په باب چې په هيواد کې ياپه خپله په پنجشير کې شوې سترګې پټوي او تفصيل نه ورکوي، لکه چې هغه دده په نظر مهمې نه وې. په مولف باندې دکتاب دګډې ودې طرح په هکله کلک انتقادونه کېدلې شي ـ دې هغو پېښو ته ډېره توجه کوي چې په اصل کې بې اهميته دي او مهم حقايق له ياده باسي . دغه کار او په خاص ډول داوربند د موافقې په باب جزيات کوم چې موږ يې له خپلو [روسي] اسنادو سره متناقض مومو دهغه له تاريخي ارزښت نه کموي.))

«دغه کتاب تر زياتې اندازې لنډ شوی دی، لکه هسې چې ضمايم يې خلاصه شوي دي، چې هغه دډيرو پراخو موضوعاتو په باب اوديو شمېر اسنادو متون دي. په عمومي ډول داهغه ليکونه دي چې دکابل رجيم دپنجشير دمشر تابه او دپنجشير دخلکو په نومونو عنوان کړي دي.داساسي پېښو نيته ليک د(جمعيت دتنظيم دپلويانو له نظره) د۱۹۷۵ څخه تر ۱۹۹۰ پورې پکښې ذکر شويدي. په جهاد کې ددو همې درجې ګډون کوونکو لکه دمجاهدينو دفرعي څانګو قوماندانانو او صفوفو نه شته والې ددې مانع کيږي چې موږ له خپلو منابعو نه دهغو سوانحات تکميل کړو.))

((دمنصور نتايج اودريخونه دپنجشير دخلکو دقومي او روحي تصوير په باب دپنجشير دستمي توب علايم څرګندوي.)) ۹

هغسې چې ګريګوريف وايي دمنصور تفکر او اصطلاحات ستمي توب ښيي. دغه په بيان کې يوه ببولاله او ربدله کېږي - پنجشير لومړي اوتر ټولو دمخه. دهغه له پانونه شايد يو نااشنا لوستونکي په دې فکر شي چې شوروي اتحاد په دوو هيوادونو باندې دانګلي دي - پنجشير او افغانستان.

## پايليک

۱ – اس.اى.ګريګوريف، پنجشيرله ۱۹۷۵ نه تر ۱۹۹۰ پوري ديوه افغان مورخ له نظرنه،

۲ – پاسنى الر، ۴۰

۳ –پاسنى الر، ۴۰

۴ – پاسنى الر، ۴۱

۵ – پاسنى الر، ۵

٦ – له پوهاند عبدالشکور رشاد سره دليکونکي مرکه، کابل، اکتوبر ۳۰، ۱۹۹۷

۷ – پاسني مرکه

۸ - ګریګوریف، یادشوی اثر، ۵
۹ - ګریګوریف، یادشوي اثر، ۵-۶

# د۱۹۸۲ کال داوربند توافق لیک

> که نړۍ زموږ په انګیزو خبره شوه موږ به زیاتره په خپلو دېرو ښو کړو باندې هم خجالت شو.
>
> فرانسوادوک دی لا روچې فوکا

دکې. جي. بي. دپخواني سروال، یوري اندروپوف، دبریژنیف دمشر تابه دتاج میراث په پای کې دافغانستان دپنجشیر په دره کې انعکاسات وکړل. اندروپوف په کال ۱۹۸۲ کې دکې. جي. بي. کرنیل اناتولي کازنا چیویف (Anatoly Kaznacheyev) له دوو تاجکي ترجمانانو سره دپنجشیر درې ته واستوه. ددغه هیات هدف داو چې داحمدشاه مسعود او دشوروي دځلوینتم لمبر اردو تر مینځ دنه تعرض یو لیکلې شوې تړون وشي. ۱ ددوو شپږو میاشتو سختو دورونو له خبرونه وروسته احمدشاه مسعود، داکتر عبدالحي، اوبسم الله خان دپنجشیر دجبهې په استازې توب سره داوربند یو توافق لیک په رسمي ډول لاسلیک کړ. ۲دشوروي سروال، اندروپوف، په دې منظور چې له احمدشاه مسعودسره دکار اړیکې ټینګ کړي، دښه نیت یولیک تسویدکړ، چې هغه ته دبسم الله خان په لاس ورواستول شو. بسم الله خان دغه لیک دجنګلک جګړن محمد داودخان په ذریعه احمدشاه مسعودته ورسوه. داندروپوف په دغه پیغام کې دپنجشیر دجبهې دکشالې دهوارولو په مقصد له مسعود سره دمخامخ لیدلو دپاره تیاري وښودل شو. مسعود موافقه ونښو دله،خو په دې شرط چې دپرچم اوخلق له ډلو نه دې هیڅوک په دغو خبرو کې ګډون ونه لري. ۳ لومړنی غونډې په بازارک کې وشوې، او دهغو نتیجه دمسعود او دهغه دشوروي مقابل لوري ترمینځ شفاهي موافقه وه. دهغې په موجب باید ټول نظامي عملیات دشپږو میاشتو دپاره وځنډول شي. له هغه وروسته بیادداړو خواوو تر مینځ دشپږو میاشتو تمدید ومنل شو. ۴ دهمدغه کال په پای کې داوربند لیکلې شوی توافق لیک لاسلیک شو چې باید د۱۹۸۳ کال دجنورې په لومړې ورځ نافذ شي. ۵

اندروپوف څه باندې یو کال وروسته له هغه چې په واک راغلې و، مړشو. وروسته له هغه چې دکانستانټن چرنینکو (Konstantin Chernenko ) انتقالي بې الره دورې نه داندروپوف ولیعهد، میخاییل ګورباچوف، د۱۹۸۵ کال دمې په ۵ مه په واک راغې، په پنجشیر کې یې داندروپوف ابتکاري عمل له سره ونیو. دغه عمل دپخوا په شان له احمد شاه مسعود سره ددوه اړخیزو خبرو اوهمکاري له مخې دوام وکړ، چې نتیجه یې دمسعود ترحکمرانې لاندې دیوې خودمختاره شمالي سیمې تاسیسول شول. ۶ د۱۹۸۲ کال دتوافق لیک له لاسلیک کولو نه وروسته دپنجشیر جبهې دخپل خان په ګټه اعلامیه کې په ټینګار سره څرګنده کړه

چې ګلبدين حکمتيار په مشري له اسلامي حزب نه پرته دمجاهدينو ټولو تنظيمونو په يوه اتفاق سره ددوی دفيصلې ملاتړ وکړ. حکمتيار شوروپانو ته دهر راز امتياز ورکولو جدي مخالف و. ۷ عبدالحفيظ منصور په خپل کتاب کې دلسو موادو داوربند توافق ليک په دې ډول بيانوي . ۸

## هغه څه چې موړترسره کړل

۱ – دغه توافق ليک دټو ل افغانستان دازادي په لور لومړی ګام دی.

۲- بايدشوروي -کابل رجيم ټول قطعات له اناېې نه پرته له پنجشيرنه وو خي.

۳ – دپنجشير جبهه داحق دخان دپاره ساتي چې دشوروي ټول هغه مواد وګوري چې اناېې ته ورل کېږي .

۴- هيڅ هغه نظامي ملاتړ به پرې نه ښودل شي چې اناېې ته ننوځي.

۵ - کوم هغه غير نظامي مواد چې اناېې ته ورل کېږي، بايد دهغو په باب اول ليکلي شوې اجازه حاصله شوې وې.

٦- له اناېې نه پرته له ټول پجشير نه بايد دشوروي - کابل رجيم ماينونه وايستل شي.

۷ - دشوروي خوا او دکابل حکومت بايد ټول هغه مناسب اعمال اجراکړي چې دپنجشير دجبهې دلوپانو پر ضد تر ورستي عمليات له مينځه يوسي.

۸ - دمتعاهد و ډلو له خوانه به اشخاص په خپله خوښه ديوه او بل خواته تسليم شي. هغوي چې په زور سره نيول شوي دي، بايد خپلو خواوو ته تسليم کړل شي.

۹ - هغه علاقې چې په دغې موافقې کې شاملې دي.

الف: پنجشير ب: شوتل ج: داندراب يوه برخه، د: سنجان ذ: بولغين او ګل بهار

۱۰ - دپنجشير دولسوالي مشر به دجبهې له خوا غوره شي.

په پورتنې بيان کې د۱۹۸۲کال توافق ليک مهم تفصيلات ذکر شوي نه دي.داهغه تفصيلات دي چې [نه شته والي‌يي]دکتاب افاقي توب اوپه دې ډول دهغه تاريخې ارزښت په جدي ډول کموي.دپادونې ورتکې دسالنګ لوېې لارې ته داشارې نه شته والي، يادهغه په اهميت ياندې سترګه پټول دي.داسې هم دشوروي موافقه کوونکوله خوادهغه په باب دتقاضاګانو دااهميت نه پېژندل دي.دګريکوريف په نظرښاغلي منصوردجانبدارې په خاطر دغه واقعيتونه په عمدي ډول تحريف کړي دي.۹دسالنګ دلارې مامون تيا دشوروي مذاکره کوونکودپاهر ستراهميت لاره. ددوی له نظره هغه(( دتوافق ليک روح اوزره وه.)) ۱۰ پنجشير که په ګوښه ډول وکتل شي، دشوروپانو دپاره ياهيڅ ستراتيجيکي اهميت نه لاره، ياپې ډېرلږستراتيجيکي اهميت لاره.پنجشير يوازې او يوازې سالنګ ته دنږدې والي په وجه اودپنجشير دجبهې دمشرتابه له خوا دهغه دمامون

ساتلو په امادګۍ کې اهمیت لاره. ۱۱دشوروي اعلي واکمنۍ ته دچرنینکو په هسکیدوسره دبروهڅومحافظه کارانوچې داندروپوف له چلند سره مخالفت کړي و،دپنجشیر داوربندد‌موافقې په باب دقوې مخالفت اوازونه پورته کړل.وروسته میخائیل ګورباچوف دمسکو- پنجشیرارتباط دافغانستان دتجزیه کولوله پلان سره داحمد شاه مسعود، محمدحسن شرق اوسلطان علي کشتمند په مرسته رابرسیره کړه .۱۲

دغه څه معلوم دي:دعبد لکمال دکابل هوټل دیوه مامورا‌وکتونکي په قول د۱۹۷۹ کال په اپریل کې احمدشاه مسعود او دشوروي نظامي غړو په دغه هوټل کې سره غونډه وکړه. دغونډې نتایج که څه هم په عمومي ډول معلوم نه دي، وېل کېږي چې هغه دمسعود او شورویانو تر مینځ لومړني تماس او همداراز د۱۹۸۰ کال په سر کې پنجشیر ته دمذاکرې دهیات داستولو دپاره عامل و .

د۱۹۷۸ کال له اخر نه وروسته احمد جان پهلوان، دپنجشیر ددرې یو جنګي قوماندان، دکابل درجیم دګنوپر ضد نظامي عملیات رهبري کول. ۱۳ داحمد جان پهلوان جنګیالي توب احمد شاه مسعود اندېښمن کړی و اودهغه جنګي قابلیت یې دخپلې سروالي دپاره خطر او دغسې فعالیت ګانه چې په ده باندې به دشوروي اعتماد له مینځه یوسي چې په نظامي پراخو عملیاتو باندې کنترول لرلې و شي، او دقرار داد ونو په اساس خپلې ژمنې تر سره کولې وشي. ۱۴ منصور هغه ((دېر مهم توافق لیک او سند)) تر بحث لاندې نیسي چې پنجشیر جبهه مناثره کوي او هغه داحمدشاه مسعود او شورویانو تر مینځ په کال ۱۹۸۵ کې لاسلیک شوي و. دغه موافقه تر هغه وخته پورې تر تولو دېره مهمه موافقه وه. دنویو معلوماتو له مخې دغه ((موافقه)) دمحمد حسن شرق او میخایل ګورباچوف تر مینځ دغونډې نتیجه وه چې په کال ۱۹۸۵ کې شوي وه. ګورباچوف په دغې غونډې کې محمد حسن شرق او سلطان علي کشتمند ته وظیفه ورکړه، چې دد وو خودمختارو سیمو درا مینځ ته کولو په لور زیاروباسي: یوه به دتاجک خود مختاره سیمه وي چې داحمدشاه مسعود اومسکو له خوا به په ګډه اداره کېږي. بله به یې مرکزي غرنۍ سیمه وي چې دشیعه ګانو تر اداري کنترول لاندې به وي. د (( هزارستان )) په نامه دغه مرکزي سیمه به په دغه پلان کې دهم - مذهبي سلطان علي کشتمند او همدا راز دایران داشتراک دجایزي په شان وي . ۱۵د۱۹۸۸ کال په پای کې شورویانو داوږدې مودې دپاره داحمدشاه مسعود دتاکتیکي اوسیاسي قابلیت په هکله داعتماد کمېده څرګند کړه. په لوګر کې یې ګلبدین حکمتیار ته مذاکره کوونکي واستول او دافغانستان په سلو کې پنځه نوی حاکمیت یې هغه ته پیشنهاد کړ. دوي په دي وخت کې په

دې فکر شوي وو، چې حکمتیار تر تولو ډېر اغیز ناک تشکیل لري، او په غالب احتمال به په سیاسي لحاظ استقامت وکولی شي. په عوض کې شورویانو دکابیني په عهد و کې ددموکراتیک خلق کمونیست گوند غړو دپاره دکابیني پنځه په سلو کې تقاضا وکړه، حکمتیار ونه منله . ۱۶

# پایلیک


۱ – گریگوریف، یادشوي اثر ، ۴۱

۲ – عبد الحفیظ منصور، پنجشیر دجهاد په دوره کې، ۱

۳- پاسنی اثر، ۶۷

۴- پاسنی اثر ، ٦٦

۵- پاسنی اثر، ۵۰

٦ محمد حسن شرق، خاطرات دوکتور محمد حسن شرق، ۱۳۱۰ تا ۱۳۷۰ چاپ شخصي ، ارمی کمپیوتر پو اینټ ، دهلي ، دچاپ کال نامعلوم ، ۲۵٦

۷ – منصور، یادشوي اثر، ٦۹

۸ – پاسني اثر، ٦۷

۹- گریگو ریف، یادشوي اثر، ۵-٦

۱۰ – پاسنی اثر ۵۱

۱۱ – پاسنی اثر، ۵۱

۱۲- محمد حسن شرق، یادشوي اثر، ۲۵٦

۱۳ – گریگو ریف، یادشوي اثر، ۳٦

۱۴ – پاسنی اثر ، ۳٦

۱۵ – شرق، یادشوي اثر، ۲۵٦

۱٦ له صدراعظم، دمگ ۲۱ له پېلوټ سره دلیکونکي مرکه، کندهار، اکتوبر ۲۳ ، ۱۹۹۷


# دپنجشیر دسیسه

> هرسړي درې سجیې لري: هغه چې ښکاره ګندوي یې، هغه چې لري یې.او هغه چې فکر کوي لري یې.
>
> الفونسکار

یوه خوخنده شریکې واحد د۱۹۷۹ کال دجون په ۱۱ مه دکفتر خاني پل چې دسالنگ په جنوبي برخه کې واقع دي ، په هغو چاودونکو موادو سره وران کړچې هغه دکابل دحکومت پر ضد په پخوانیو عملیاتو کې خپل کړي وو. ۱ ددغې حملې په اثر دسالنگ له لارې دافغانستان له شمالي سیمو سره دکابل ارتباط دنهو ورځو دپاره

وشلېده. دغه عمليات داحمد جان پهلوان له خوا پلان او رهبري شوي وو، پهلوان يو نامتو جنګيالی و چې له کمونستانو سره يې سخت جنګونه کړي وو . دپنجشير خلکو په اکثريت سره دي دهغه دجنګي قابليت او مشري داوصافو دلرلو له امله دپنجشير ولسوال کړ.۲ د۱۹۷۹ کال ددسمبر په اخره کې احمد جان داحمد شاه مسعود له خوا دنامعلومو دلايلو له مخې کابل ته واستول شو. داحمد جان په غياب کې عبدالحفيظ منصور، داحمد شاه مسعود سياسي مشاور دهغه پر ضد دغلطو تورونواوتونو رسولو مبارزه پيل کړه.وروسته له هغه چې احمدجان پهلوان د۱۹۸۰ کال په خبوري کې پنجشيرته ستون شو دمسعود په حکم سره دخيانت په تو ربندي شو. ۳ احمدجان پهلوان د۱۹۸۰ کال اپريل په ۹ مه اعدام شو.

سيد اصرارالحق حسيني مجاهد، د۱۹۸۰ کال په اخره کې په جرمني کې له احمد سميع او عبدالستار سره دمرکو په ترڅ کې ددغه اعدام رېږدوونکي تفصيلات بيانوي. دوی دواړو له ۱۹۷۸ څخه تر ۱۹۸۰ پورې داحمد جان پهلوان په سروالې سره له کمونستانو سره وهلي وو. حسيني وايي:

((احمدجان پهلوان دکابل له رجيم سره دموافقو کولو په سر چې خبري پرې کېدي په تېنګه مخالف و.دي يو زړور قوماندان او ښه جنګيالی و.مسعودنه غوښتل چې دکمونستانو پر ضد اقدام وکړي او دي دکابل درجيم په مقابل کې داحمد جان پهلوان له عملياتو سره په ټينګه مخالف و. دي له دي سره هم په ټينګه مخالف وچې احمد جان دي حاکم وي. هغه دپنجشير واک دځان دپاره غوښته، نوېې وواژه، خلکو ته چې داحمد جان پهلوان په باب پوښتنې کولې په دروغو ورته ويل کېده چې هغه دروزنې دپاره اندراب ته تللی دي. دوی ځکه دغسې ويل چې پوهېدل خلک دهغه وژنه نه تاليد وي.))

## پــــــايليک

۱ – ګريګوريف، يادشوي اثر، ۳۶
۲ – پاسني اثر، ۳۸
۳ – پاسني اثر، ۳۸

# د مسعودستان پيدايښت

> .... وژنه، غد راو سازش
> په جنګ کې زوراو دوکه دوه اساسي فضيلتونه دي.
> تا ما س ها بس

په ۱۹۸۳ کې په اندراب کې داحمدشاه مسعود دتوښو لارې دجمعه خان دمجاهدينو له خوا وشليدلې. مسعود په ۱۹۸۲ کې دموافقې له لاسليک کولو نه وروسته داندراب له لارې له شورويانو څخه نظامي مواد تر لاسه کول. ۱ جمعه خان ته دمسعود دموادو اصلي منبع معلومه وه. نو هغه داعتراض په ډول دهغو بريالي قطع کولو عامل شو. په دې ډول دمسعود دپاره، دحساسو موادو ضياع مسعود / شوروي وهڅول چې په يوې ګډې قوې سره په اندراب باندې بريد وکړي. ۲ مسعود به دتوضيح دپاره ويل چې جمعه خان دده دموادو درسيدو مانع کيږي. اودې بله چاره نه لري. مګر داچې بريد وکړي، او دخپلو موادو ليکې ساموني وساتي. ۳ خو هغسې چې دپېښو جريان وښوده دمسعود روايت دتحقيق په نتيجه کې سم ونه خوت. دهغه وينا داعتبار وړه نه وه. ټول مواد له پاکستان نه راتلل. اندراب ته له شمال څخه نه ورل کېدل. عبدالحفيظ منصور، داحمدشاه مسعود سوانح ليکونکې، دملامتي وړ دغه مقابله«په اندراب دهندوکش په شمال باندې عمليات ضروري او بې ويني.» وبلل، خو دغه عمليات په وينو باندې ککړو. ۴ دالومړنى يعني بې سابقې پيښه نه وه، دبغلان دپخواني ښاروال، سيد باقي الله حسيني، په قول دمقاومت په رقيبو ډلو باندې داحمدشاه مسعود يرغلونه افسانوي شوي دي. په کال ۱۹۸۱ کې احمدشاه مسعود داسلامي حزب په قوماندان، سيد منصور، باندې په اندراب کې يرغل وکړ. منصور له جنګ کولو نه ډډه وکړه، کيله ګې ته واوښت، او انجينر سليم ته يې پناه يووړه. څه وخت چې جګړه کيله ګې ته ورسيده، او دانجينر سليم مجاهدين هم يکې ښکيل شول، انجينر سليم اومنصور، په داسې حال کې چې احمدشاه مسعود تعقيبول، په خنجان کې وليان ته واوښتل، او هلته دواړه په يوې نښتې کې ټپي شول. دوليان په نښته کې، ديوې وينالـه مخې، داحمدشاه مسعود قواوې دشوروي اتحاد دجنګي واحدونو له خوا په مستقيم ډول حمايه کېدلې. منصور او انجينر سليم، ددې دپاره چې

داحمـد شاه مسعود/ شوروي دګډو عمليـاتو پـه اثـر لـه حتمـي مجازاتو نـه امان ومومي، غوربند تـه پـه شـا لاړ. احمـد شـاه مسـعود ددې دپاره چـې خپـل هدف پټ کـړي، او دخپلـو سيالانو پـه مينـخ کـې يـې لـه خپلـو تېريونـه خان تبرئـه کـړي وي، ادعـا وکـړه چـې منصـور دهغـه دمـوادو لاري شـلولې دي. ۵ ډېر خلک په احمد شاه مسعود بـاندي بدګمـان وو. وېـل بـه يـې چـې دپښنو په اظهارکې پـوره صـادق نـه دې. پـه بـاندې نـړې کـې خينـو تـه دکيلـه ګې دجغرافيـوي موقعيت پـه بـاب او داچـې هغـه پـه پنجشير کـې لـه عمليـاتو سـره څه ارتبـاط لـري، معلومـات نـه وو. خـو دمحـل يـوه ډلـه لويـان پـه اسـانۍ سـره دوکـه کيدلـې نـه شـول. دوی سـره جـرګه شـول چـې داحمدشـاه مسـعود پـه مقـابل کـې دخيـانت دتـور پـه هکلـه مينـځګري تـوب وکـړي. لکـه چـې څرګنـده وه جغرافيـوي شـواهد غـير قـابل رد وو. انجينـر سـليم دکيلـه ګې اوخنجـان دپښنو پـه نتيجـه کـې لـه جـرګې نـه دخپلـو عرايضـو پـه بـاب داد وغوښتـه . دجـرګې لويـانو دشـواهد و پـه کتنـې سـره پـه احمدشـاه مسـعود بـاندې حکم وکـړ چـې انجينـر سـليم تـه يـو ميليـون او اوه لکـه افغانـۍ تـاوان ورکـړي.

په يوې بلې پېښې کې په کال ۱۹۸۶ کې انجينر سليم او عبـد الحـې حقجـو پـه نهرين کې سره ولېدل، او دسولې په روحيه يې په قـران شـريف بـاندې لاسونه کېښودل اولوړه يې وکړه چې خپل منځې دعوا ګانې به يې له دې چې په وسله وال بريد حل کـړي، په سوله سره فيصله کوي. بله ورځ انجينر سليم له عبدالحې حقجو سره له يوې غونـډي نـه وروسته په داسې حال کې چې اودس يې تازه کوه دراکتو نو په حملې سـره چـې لـه تولـو خواوو نه چار پېر شوی و. ووژل شو، عبدالحې داحمدشاه مسعود په حکم سره په دغسې بې رحمۍ سره يو بل دعوه لرونکې رقيب له مينځه يووړ. ٦ يوه بله پېښه چـې داسلامې حزب اودجمعيت مجاهدين پکې ښکيل شوی وو، په کال ۱۹۸۱ کې پـه کيلـه ګۍ کـې دشوريانو نظامې مقرته نږدې وشوه، دعمراخان تر قوماندانې لاندې دجمعيـت قـواوو دامـان الله تـر قوماندې لاندې دحزب په قواوو باندې بريد وکړ. امان الله په دغه وخت کې دانجينر سليم تر قوماندې لاندې و. يوه ورځ يا زيات پخواله دې چې دغه پېښه ختمه شوې وي، دشوروي ذره لرونکو موټر و دجمعيـت جنګيـاليو تـه مهمـات ورسـول، تېيـان يـې ورپـه خای کـړل، اوزخمونه يې ورپانسمان کـړل. ۷ پـه ۱۹۸۰ کـې داسـلامې حـزب يـوه شـپيته کسيزه ډلـه مجاهدين له پاکستان نه دبغلان په نيت روان شوی وو، چې هلته په شوروي نظاميانو باندې بريد وکړي. دوی مجبور وو دپنجشير او اندراب له غرنيو سيمو نه واوړي . په دوی باندې په داسې حال کې چې په وسلواو نظامې مهماتو سره درانده وو دجمعيت دجنګياليو له خوا غړ وشو، ووهل شول اوبې وسلې شول. ۸ په يوه لحـاظ دوی نيکمرغـه وو چـې لـه دوی سـره ددوی قوماندان، عبدالغيور نه و،اوکه وای شايد نيست شوی وای.احمد شـاه مسـعود خپلـو

شيريکيانو نه لادمخه حکم کړی و،چې دغه رقيب قوماندان خای په خای ووژني، ۹دادحزب او جمعيت دخونړيو نښتو دلړی لومړنی معلومه نښته وه.

دجهاد په متصاعد بهير کې دقوم- مرکزي منظمه طرح په ډاګه شو دادخيانت هغه طرح وه چې دنظار شورا ما نيفستويې خپله کړې وه، چې په هغې سره خپل غړې يې لمسول چې په رقيبو مجاهدينو باندې بريدونه وکړي، دزور ليږدول پيل کړي، او دهغو پښتنو مالونه چور کړي چې په شمال کې اوسي.(۱۰) دراپور له مخې دغه پاروونکې مانيفستو پاسند دډاکترعبدالرحمن په لاس دشوروي دسر مشق له مخې ليکل شوي دي دافضل احمد پناه په نامه چې دماوستې دوختونوم يې دي، هم ياديږي. ددغې مانيفستو الفاظو هغو الفاظو ته ورته وي چې نازي پروپاګند چيانو ديهودانو پرضد دخپل قتل عام په پروګرام کې په کارول.

# پايليک

۱ ګريګوريف، يادشوی اثر، ۴۵

۲- پاسنی اثر، ۴۵

۳- منصور، يادشوی اثر، ٦٦

٤- ګريګوريف، يادشوی اثر، ۴۵

٥- له سيد باقي الحق حسيني سره دليکونکې مرکه. ښاغلي حسيني دبغلان پخوانې ښاروال اودهغو لومړنيو ليکوالو په دله کې و، چې دفرقوی او اتنيکي تشدد په باب يې په افغانستان کې خبرداري ورکړي و،پښور، مي ٥ ، ۱۹۹۱

٦- له حسيني سره مرکه،

-۷ = =

-۸ = =

-۹ = =

-۱۰ = =

-۱۱ = =

# دفرخار پېښه

پروپاګند ددروغ ويلو دهنر هغه څانګه ده چې خپل دوستان پرې غولولې شې بې له دې چې خپل دښمنان پرې دوکه کړې.

ف. م. کارنفورد

د۱۹۸۹ کال ددسمبر په ۲۴ مه سيد جمال، دګلبدين حکمتيار يو لوی قوماندان، دهغه ورور، او دوه نوميالي منصبداران ددغسې جرم په تور غرغره شول چې هغوی نه ووکړي. دوی په دي تورن شوی وو چې دفرخار په تنګي کې يې دنظار شورا ۳٦ تنه مجاهدين داوو قوماندانانو په

ګډون په يوه ناڅاپي يرغل کې وژلي وو.۲ په کابل کې دباندنيو چارو دوزارت يوه مامور چې نه غواړي نوم يې واخيستل شي، راته وويل چې دغه يرغل په خپله داحمد شاه مسعود له خوا دسياسي او تاکتيکي ملا حظو له مخې ترتيب شوی ووا و داچې په هغه کې ٦ کسه وژل شوي و نه ۳٦ تنه لکه چې په اولني راپور کې يې ذکر شوي و. ددغه مامور په الفاظو: ((په موږ کې يو متل دي چې په دغه باب ښه تطبيقيږي. مسعود په يوې ګولۍ سره درې هدفه وويشتل: اول داچې مسعود غوښتل چې ګلبدين حکمتيار بې اعتباره کړي چې دباندنيو چارو دوزير په صفت يې تازه داسلامي هيوادونو په کنفرانس کې ګډون کړي و. نو هغه يې په دې تورن کړ چې دير غل حکم يې ورکړي و. بله داچې مسعود غوښتل خان له قاضي اسلام الدين نه خلاص کړي، په دې چې هغه دجمعيت يو قوماندان و، دنظار دشورا مخالف و. دريمه داچې مسعود غوښتل سيد جمال له مينځه يوسي چې هغه له هغه سره په تالقان کې په قدرت کې شريک و. زه دوه نفره پيژنم، چې ددغې پېښې شاهدان وو، خو ددې دپاره چې ضرر ورته ونه رسيږي نومونه يې نه اخلم، نو ګوره چې داحمدشاه مسعود په يوې ګولۍ سره درې هدفه وويشتل.)) ۲

داعدام له پېښې نه وروسته حکمتيار په ټينګه وويل چې دموضوع په هکله دې په ازاد ډول تحقيق وشي، او څرګنده يې کړه چې ((دا ددوو قوماندانانو تر مينځ جنګ دي اومونږ له لازمه نده دهغه په باب له جمعيت سره وجنګيږو.)) ۳هغه داهم وويل چې دهغو ۳٦ تنو نومونه دی وښودل شي چې وايي په يرغل کې وژل شوي دي. مسعود دحکمتيار غوښتنې ته اهميت ورنکړ او يوازې د٦ تنو نومونه يې وښودل چې دهغه په قول وژل شوي وو.

دفرخار دپېښې په باب دخپريدنو عامه وسايلو هيجانات دحکمتيار شخصيت دنړۍ والو په نظر کې ټيټ راوست. ۴ په دې ډول احمدشاه مسعود په دسيسې او دروغو سره دصبغت الله مجددي (دعبوري) حکومت دهغه دباندنيو چارو وزير پر ضد وپارو او په خپله حکومت يې هم فلج کړ. دمسعود له دسيسې نه وروسته مجاهدين تر پخوا زيات ډلې ډلې شول او هر يوه په خاص ډول سره دګډو دی په زياتولو کې برخه واخيسته، او دغه حال دطالبانو تر هسکېدو پورې دوام وکړ.

# پایلیک

۱- محمد یوسف او مارک اوکن، دیږ تلک، دافغانستان نابیان شوی داستان، لندن، خیرونکسي کوپر، ۱۹۹۲، ۱۲۹،

۲- له سید نورالحق حسیني سره په پښور کې په یوې مرکې کې( نومبر۱۰ ، ۱۹۸٦) څرګنده شوه چې قاضي اسلام الدین، دجمعیت دتنظیم یو لکره قوماندان، په یوې غونډې کې داحمدشاه مسعود له خوا دنظار شورا له جوړولو سره مخالفت وکړ او ویې ویل چې ((موږ ولې دوو تنظیمونو ته ضرورت ولرو، دغه یو یې بس دي، اوهغه ددې دپاره چې له مسعود نه غټ سړی جوړکړي .)) دهغه خینو ګډون کوونکو ملګرو دغونډې په پای کې ورته څرګنده کړه چې په خپل دغه مخالفت سره یې خپل ژوند له خطر سره مخامخ کړی دي. دغې پیشګویي په ټول افغانستان کې زر انګازې وکړې. له همدغې غونډې نه دلګ په لارکې وچې دخپل تنظیم ملګرو یې پرې ودانګل او ویې واژه. ښاغلي نورالحق حسیني په پښور کې د۱۹۹٦ کال په پای کې په یوه مطبوعاتي کنفرانس کې ګډون وکړ په دغه کنفرانس کې دجمعیت مامورانو دنظار دشورا دتشکیل اعلان کړ، چې تردي نامه لاندې به ((دافغانستان دټولو مجاهدینو دګټو دپاره یوه پراخ بنسته موسسه رامنځ ته شوې وي.)) دکنفرانس ویناوې او چاپېریال دباندنیو ژورنلستانو په نظر کې نیولو سره ترتیب شوي و،

۱- دډاکټر الیکزاندر فید ولوف، داوکراین دامنیتي سرویس آمر، څرګنده کړه چې دنظار شورا دمسکو نه په الهام سره جوړه شوې ده، په دې مقصد چې داحمدشاه مسعود دسیاسي لوړتوب دمخالفت پرضد، او دجمعیت دنورو غړو له خوا دهغه مخالفت پر ضد عمل وکړي چې هغه شوروپانو له امتیازات ورکړي ده، شخصي مفاهمه، نومبر۲ ، ۱۹۹۲

۱-کله چې موږ د۱۹۹۷ کال دنومبر په ۱۲ مه په اسلام آباد کې له شهنواز تني سره په خپلې مرکې کې له هغه نه دفرخار دپېښې په باب پوښتنه وکړه، هغه له دینه تعجب وکړ، چې موږ له دغې پېښې نه خبرو، هغه وویل چې په دغې پېښې کې پنځه کسه وژل شوي و،) خوده ونه غوښتل چې دمعلوماتو منبع څرګنده کړي.ده وویل چې((حمله دمسعودلخواشوی وه)) ده داهم وویل چې ( له مسعود سره په دغه کارکې دنجیب دصمد اوکور مالي (Koor-I-Mali ) ملیشیا وو مرسته کړی وه، چې دسید جمال موقعیت ور وښیې، او ویې نیسي.)) دمرکې مترجم، سید نورالحق حسیني،

# په بګرام کې خيانت

> ته به خپله سوله يا وګټې يا په بيه واخلې، له بدنه يې په مقاومت وګټه، له بد سره يې په مصالحې سره په بيه واخله.
>
> جان رسکن

دافغان، شوروي دجنګ په شديد حال کې، دافغان درقيبو مجاهدينو ډلو تر مينځ کړ کيچونه هم شديد او زيات شول. دياودونې وړ دښمنې دګلبدين حکمتياراو احمد شاه مسعود ترمينځ وه، چې دمحمد داؤدپه دوره کې پيل شوي وه. په کال ۱۹۸۴ کې. عبيدالله نيازي، دحکمتيار دحزب قوماندان دشورويانو دټوپونو، اوراکټونو په يوې سختې حملې کې ووژل شو. عبيدالله نيازي دجهاد له پيل نه وروسته په بګرام او يادهغه په شاوخوا سيمو کې دشوروي په نظامې قواوو باندې بريالې پر غلونه کړي وو. په همدې ډول مولوي صفي الله، دحرکت انقلاب اسلامې قوماندان، دبګرام دعملياتو په ډګر کې دشوروي اتحاد په قواوو باندې ګداروونه کړي و، اوهغه هم په پورته ډول سره شهيد شو. هغه څه چې دوی پرې باندې خبر نه وو داو چې ددوی خايونه داحمدشاه مسعود له خوا په پټه په خطر کې غور زول شوي و. مسعود ددوي دمو قعيتونو دقيقه جغرافيه دشوروي قواوو قوماندانې ته ښوولې وه، په دواړو حالاتو کې درادېو يې مخابرو پر يکونې داحمد شاه مسعود شوم پلان څرګند کړ. هغه ولې دغسې وکړل؟

دلويو قوماندانانو له مينځه وړل ده ته يوعادې کار ګرزيدلې و، په تيره هغوی چې دشوروي په قواوو باندې يې ددينې جذباتو تر تاثير لاندې بريدونه کول، او ده دشويو معاهد و له مخې ددغو قواوو په ساتلو باندې خان متعهد کړی و.۱

ليونيد شبرشين، دکې. جې. بې مدير، دمسعود دخيانت په باب ليکې((دتروريستې اعمالو په هکله دهغه تجارب هغه په دې قادر کړ چې په سيمه کې يو شمير هغه لويان له مينځه يوسې چې دسلطې ادعاوې يې لرلې.)) داليکزاندر فيدو توف په قول(( داشغال په ټوله دوره کې يوه وړه پاراشوتې قوه VDV چې خينې افراد يې ماپيژندل داحمدشاه مسعود دساتلو دپاره مؤظفه شوي وه. شورويانو فکر کاوه چې که دمسعود دغه فعاليتونه څرګند شول، ياله خطر سره مخامخ شول، ممکن دداخلې انتقام اخيستلو په وجه هغه له مينځه يوړل شي.))

## پايليک

۱ – کله چې مور له شهنواز تني نه وپوښتل چې له شورويانو سره په جنګ کې تر ټولو ښه قوماندانان څوک وو؟ ،هغه وويل ((هيڅ يو)) هغه څرګندوي کړه چې مسعود تر شورويانو نه ډېرافغانان وژلي دي .)) زه ډېر افغانان پېژنم چې دمسعود په لاس وژل شوي دي، هر څوک درقيبو دلو تر مينځ له ښتنو څخه خبر و، دفرخار اوبکرام پېښې چې تادهغو په هکله پو ښتنې وکړي، دمسعود عمليات و، خو نور افغانان هم وو، چې لاسونه يې دافغانانو په وينو ککړ وو.)) له شهنواز سره مرکه، راولپنډي، دنومبر۱۲ ، ۱۹۹۷ . مترجم سيد نورالحق حسيني.

۲ – شېرشين، دمسکو لاس، ۱۷۷ – ۲۱۴

زموږ په مغزو کې دغه فکر تاوېده ژاتاوېده چې په خپله دشهنواز تني لاسونه به دخومره افغانانو په وينو ککړ وي.

# په کابل کې سملاسي اعدام اودجنګ جنايتونه

> يوه پېښه شوې چې دهغې په باب ګرېدل ګران اوچوپ پاتې کېدل ناممکن دي.
>
> ايډ مسو ند بروک.

د۱۹۹۲ کال په اپريل کې په کابل کې داحمدشاه مسعود مجاهدينو دخاد دستګاه ونيوله، او په ځای يې د((ملي مصّونيت)) په نامه دېټ پوليس نوې اداره تأسيس کړه.۱ هغوی په پنجشير کې له بندي خانو نه علاوه، په کابل کې دېټ سرويس دغسې بندي خانه سالله چې هلته به يې دتحقيق په جريان کې بنديان کرول ۲ دغه نوې ځانګه رياست تحقيق نومېده، او داوازې په قرار دهغې پنځه زره اجنتان په ټول هېواد کې خواره وو.۳

يوه ځوان افغان چې دشپېتو ورځو دپاره تر تحقيق لاندې نيول شوی و څرګنده کړه چې شپېته بنديان په دغسې يوې ورې تاخانې کې اچول شوي وو، چې اوبه او صحي اسانتياوې يې نه لرلې. وروسته بيا دې دپنجشير دکار کامپ ته ولېږدول شو، هلته يې په اونيو اونيو سترګې پټې وي، وهل کېده، په مقعد کې يې بوتل تخته کېده، په لغتو وهل کېده ، اوپه مقعد کې يې ګوتې وهل کېدلې ، هغه اوس له دايمي درد او داخلي خون ريزي سره شپې او ورځې تېروي.

نويد فريدون، يو نامتو افغان جورنلست، دمسعود دملي مصونيت دمامورانو له خوا دبنځو اوماشومانو په مقابل کې دوحشت ناک برخورد اوتولنيزو اعدامونو قصه لري. ۴ [خو مترجم نه غواړي دغه لړزوونکې او له وحشت نه ډکه قصه په پښتو واړوي، له دغې قصې نه څرګنده ده چې دانسانانو په برابر کې ددغو مصونيتانو اونظاربانو اوهمداراز دوحدتيانو او ګلم جمانو سلوک حتى داکسايانو، کا ميانو اوخادستانو تر سلوک نه هم زيات بې بندو باره او بې مسئوليته وو.]

## پايليک

۱ - دمحترم محمد حسن سهاک په قول کله چې احمد شاه مسعود په ۱۹۸۸ کې دبانک او حکومت کمونستي مامورانو سره په سازش کې دقندوز بانک ونيو، يو عشاريه څلور مليارده افغانۍ يې دنظار شورا نظامي عمالو ته تخصيص کړې. پنځه سوه اولس ميليونه افغانۍ دخاد دپراختيا دپاره بېلې شوې. دغه پيسې داحمدشاه مسعود دپټ پوليس تشکيل دپاره تومنه شوه چې په هغه سره وروسته دکابل خلک تروربدل، تيلفوني مفاهمه، نومبر ۱۶، ۱۹۹۶

۲-مصطفې دانش، (دافغانستان مست توب له تشدد سره.) ژينو، دسويس دجهاني چارو مجله اکتوبر، ۱۹۹۶، ۳۷.

۳ - پاسني ليکنه اومخ،

۴ - نويد فريدون، (په کابل کې اتنيکي تشدد) دسپيچ۹ ،لندن، سپتمبر۱۹۹۶ ، ۱۲ الف

۵ - پاسني ليکنه

۶ - دانش ، ياده شوي ليکنه، ۳۸.

# دورانکاري اعمال

## ... دنړۍ تر ټولو پخوانی لوبه

دجنګ دحال مستعار نوم د((پنجشير زمري)) چې احمدشاه مسعود پرې باندي ياد شو ددغسې لوړ همت اودغسې مشرحکايه کوې چې ستره هيله به يې وطن اوبيرغ ته دزړه له کومې نه خدمت کول وي. خو حقيقت ديوه بل راز شخص تجسم دي، او سوړ په دغو پاڼو کې په تفصيل سره دغسې شخص وينو چې دشخصي جاه طلبې اوقومي احساس اوريې استهلا کوي. دلته هغه تبصري دياودونې وړدي چې دشوروي دپوځونو لوی قوماندان، بوريس ګروموف دخاطرو په پښتو متن کې ديوه لوړرتبه استخباراتي مامورله قول نه نقل شوې دي. دغه کتاب په کال ۱۹۹۴ کې داپريل په ۱۳مه دمشوفسکي کمسمول(Mashovsky Comsomol) په ورخپانه کې راوتي و، په نامه دمحدود قطعات. تبصره يې دادي:

((خو کـه تـه ربنتـين تـوب غـواړي هغـه دادی چـې احمدشـاه مسعود تر زياتې اندازې پوري پـه مـوږ پـورې تړلـې او زمـوږ دنفـوز عـامل و. نږدي يـو کـال زمـوږ منصبدارانـو لـه هغـه سـره خـبرې کـړې، او دوی سـره پـه کده پريکړيـې کـړې دي. اوهغـه ډېر وخـت هغـه څه کـول چـې مـوږ ورتـه ويـل.)) ۱

((احمدشاه مسعود په خپـل ورځنـې ژوندانـه کـې اسلامي فرضونـه پـه ځای کـول. خو زموږ استخباراتي سرويس تـه معلومـه ده چـې هغـه لـه خپلـو نـږدي ملـګرو سره شـراب څښل.)) ۲

((احمدشـاه مسعود دعـادي خلکـو خدمـت کـاوه، اوهغـوی ورباندي ګران و. دافغانانو په مينځ کـې دغـه قومـاندان تـر نـورو ډېـر منلـی و. همدغـه وجـه وه چـې زمـوږ دقطعـاتو قومـاندان دهغـه دهمکـاري لـه جلبولـو سره علاقه لرله چې په پنجشير کې دخونړيو پـېښو مخـه ونيولـه شـي. پـه پـای کـې دځلوينښتم لمبر پـوخ کوښښونـو مطلوبـه نتيجـه ورکـړه. پـه کـال ۱۹۸۲ کې موږ خپـل هـدف تـه ورسـيدو.((پـه دغـه کـال کـې.)) مـوږ لـه احمـد شـاه مسعود سـره دغـسې ټينـګ علايـق تاسيس کـړل چـې ترهغـو چـې دشـوروي قـواوې په افغانستان کې وي هغه په خپـل حـال پـاتې شـول.))۳

((پـه افغانسـتان کـې دهغوکـالو نـو پـه بـهيرکې [چـې موږهلتـه ووا] لـه احمد شاه مسعود سره زموږ نظـامي شـته والـې انکشـاف وکـړ، سـره لـه دې هـم زمـوږ دمحـدود قطعـاتو قومـانداني دهغـه دډلـې وسله وال فعاليتونـه لـه سـترګونه نـه غـورزول. پـه کـال ۱۹۸۲کـې دشـخص احمدشـاه مسـعود اودځلوينښتم لمـبر اردو داسـتازو تـر مينـځ موافقـه وشـوه چـې دهغـې پـه قـرار مسعود ژمنه وکړه چې په جنوبـي سـالنګ کـې بـه چـې پـوازې دده پـه قبضـه کـې و دهـرراز وسـله وال فعـاليت مخـه نيسـي چـې دشوروي دنظـامي لاريـو پرضد به کـېږي.)) ۴

(( احمـد شـاه مسـعود دوسـلو اوسـهاتو دنـه لرلـو لـه املـه مجبـور و دغـسې موافقې تـه غاړه کېږدي ... ددغـې موافقـې لـه مخـې مسـعود خپـل تنظيـم تـه حکـم وکـړ چـې دکـابل حکومـت پرضـد لـه وسـله والـو ښتنـو نـه دده وکـړي، اوخپـل ټول قـوت د[ګلبديـن حکمتيـار] داسلامی حـزب پـه مقابل کـې پـه کـار کـړي.)) ۵

## دپنجشير يرغلونه

نـو داديپنجشير يـر غلونـه ولـې؟ ايـا هغـه جـزا ورکوونکـې مشـهورې ښتـې وې، لکـه هسـې چـې بـاندينو جورنلسـتانو ترسـيم کـړي، يادعامـه خبرونـو جـوړي کـړي پـېښې دي چـې لويديـځو مطبوعـاتو پـه هغـو سـره احمدشـاه

مسعود دافغانستان دمقاومت يو هيښناک او سدبر شخص ښودل دي؟ جورنلستانو په شعوري يا غير شعوري ډول احمد شاه مسعود ددغسې قيام کوونکي په حيث ښودلې دي چې دشوروي له هيښناک پوځ سره يې په پر له پسې ډول ډغرې وهلې دي. خودا دهغه څه په خلاف دي چې دبوريس ګروموف په خاطراتو کې راغلې، لکه چې هغه ليکي:

(( مونږ [ځلوينتم لمبراردو] هر وخت کولی شو چې احمدشاه مسعود وځپو.))

(دبوريس ګروموف دخاطراتو په دري متن کې داسې راغلي (( رهبري نظامي شوروي در افغانستان هرګونه امکانات رادر اختيار داشت که ... شکست خورد کننده ی را بروی سعود تحميل کند. هرګاه چنين لزومي به پيش مي آمد ما [مسعود] را نابود مي ساختيم ترجمه.)) دکې. جې. بې. مدير، ليونيد شبر شين په خپلو خاطراتو کې راوړي چې انجينر محمد اسحق د١٩٨٨ کال په اخرکې دعربستان په طايف ښار کې لا بې کولې چې مونږ ته دشوروي دراتلونکو نظامي عملياتو په باب اطلاعات له افغاني منابعو څخه نه، بلکه له شوروي منابعو څخه په لاس راتلل. شبر شين ليکي: ((مارشال سوکو لوف [په کابل کې دشوروي اعلی ناظم او قوماندان] دخپلو استخباراتي مامورانو او احمدشاه مسعود ترمينځ ددغسې ښو دسيسوي تماسونو څخه حتماً خبريده او دشرايطو په ملا حظې سره به دهغه معلوماتو دی فکرکولو ته هڅولی وای. پنجشير دافغان دجنګ دغه تر ټولو ډېر عمده اوډېر نامتو شوی عمليات ساختګي وو له يوه بې اهميته سروال احمد شاه مسعود نه يې يو مهم ملي شخصيت جوړکړ، په نړی کې يې نوم ورخپورکړ، او له امريکې او اروپانه يې دمقاومت ټولو مربوطو تنظيمونو ته ډيسو او وسلو سيلاب روان کړ. دپنجشير دعملياتو ثمريا دهغو پوره بې ثمري په ټوله هغه دوره کې چې زموږ پوځ په افغانستان کې و ترپوه خل نه زيات حس شوه.)) ٦ شوروي جورنلست ولادمير سنګې ريف(Vladmir Snegirev) هم دپنجشير پرضد زموږ ډېر مشهورشوی برغلونو ته چې دعامه وسايلو دجورنلستانو له خوا خپاره شوی دی، په شک او ترديد سره ګوري اووايي ((حتی دمځه ماګمان کړی وُچې په پنجشيرکې يعني چيرته چې مارشال سو کولوف، مارشال اکسومييوف (Axomeev ) او جنرال وارنيتکوف(Varennikov ) زموږ قواووي رهبري کړي دي، زموږ بريالي توبونه يو لوی جعل وه. دغه جعل په دي وختو کې دباندنيو استخباراتو دځانګې آمر ليونيد شبر شين، دياددښتونو په خپريدو سره تائيد شوی دي.))

## چچنيا

په کال ١٩٩٥ کې دچچنيا دجنګ دمقاومت مشر ذوکر دودايوف Dzhokar-Dudayev خپل دوه استازي عبدالواحد او شامل بسايوف، کابل ته په منډه واستول. ددغه سفر مقصد داو چې له کابل نه دروسانو په مقابل کې وسله تر لاسه شي. اسماعيل خان، ګلبدين حکمتيار، او عبدالرب رسول سياف بې له کوم ترددنه موافقه وکره چې

دڅیچن له مجاهدینو سره دې دوسلو او روزنې مرسته وشي. اسماعیل خان له مخکې نه هواني توغندي، ستنګر داستولو ژمنه هم وکړه. احمدشاه مسعود او برهان الدین رباني دڅیچن له خلکو سره له مرستې کولو نه ډډه وکړه په دې دلیل چې((موږ له روسانو سره ښه مناسبات لرو او موږ به داسې څه و نه کړو چې دغو مناسباتوته خلل ورسوي.)) ددودایوف پلان داوچې په دغو توغندیو سره دروسي هغه الوتکه وولي چې دمې دورخې په نمایش کې دمسکو دپاسه تېرېږي. دغه توغندي باید له ایران نه ګروزني ته انتقال شوی وای. خو څه وخت چې ایران له دغه پلان نه خبرشو توغندي یې و نیول او دځو میاشتو دپاره وسائل. ایران دمسعود په شان له روسیې سره د روابطو ساتلو هیله کوله. ۸

## سالنګ ۱۹۸۸

دشور وي او مسعود تر مینځ د۱۹۸۸ کال له اوربند نه وروسته نا ارامه کوونکې اوازې خپرې شوې. داسې ښکارې چې روسانو له حیرتان نه دسالنګ په لار دکابل په لوردکابل دحکومت دوسلو لارې ګانې تال کړې. افغان حکومتي منصبداران په زور له لاریونه ښکته کړل شول، بندیان شول، په مسعود باندې خرڅ شول، یا هغه ته ورکړل شول. دري وبونکې افسران وژغورل شول، او ښتو وبونکې ووژل شول.

## دسومالې ارتباط

۱۹۹۲ او ۱۹۹۵ کالو نو تر مینځ احمدشاه مسعود دارپانا افغان په ملکې الوتکو کې له بګرام نه سومالې ته وسلې په قاچاقې ډول رسولې. دغه وسلې دسومالیې دجنګ مشرانو له خوا دامریکې نظامیانو په مقابل کې په کارېدلې، چې په یوه برالا عمل کې داولسو امریکایانو په مرګ اوشاید که دسومالیانو دزرګونو په مرګ نه وي دهغوي دسل ګونو په مرګ تمام شوي وي. ولې سومالې ته دوسلو قاچاق؟ زما په فکر دلته دوه امکانه موجوددي: لومړي امکان به داوي چې وسلې زر په درنو اسعارو بدلېږي. خو تردي نه دغه امکان زیات ښکا ري چې دهغه مسکو مرجع به له هغه نه غوښتې وي چې له دغه افریقا یې هېواد سره مرسته وکړي چې امریکې پکې خان دخیل کړي دي، او هغه دامریکې پرضد عمل کوي.(۱۰)

## ژوند طرز

دغه څه معلوم دي: احمدشاه مسعود له شورویانو سره ډېرې موافقې کړې دي. ولې؟ هرې قرارداد کوونکې خوا څنګه ګټه تر لاسه کړه؟ شو اهد څرګندوي چې احمد شاه مسعود پیسې، نظامي مهمات، او دپنجشیر په

مقابل کې دنه تعرض تضمینونه تر لاسه کړل. داسې هم احمدشاه مسعود دافغانستان دوېشل کېدو په صورت کې به دمسکو له خوا دشمالي سیمې اداري سروال اوسي. (شهنواز تني) شورویانو په خپلې برخې کې دسالنګ دلويې لارې دتجريد کيدو په باب له احمد شاه مسعود نه داډ ګيرنې تر لاسه کړې، چې دنظار شورا په قواوو سره به هغه چې دکابل حیاتي شاهرګ شمېرل کېده دمخالفو ډلو له حملو نه بچ ساتي. دشورویانو دپاره داندېښنې وړ بله مسئاله داموسین نه اخوا داسلامي حزب چپا وو نه وو، چې دنړې له دوهم جنګ نه وروسته به يې دلومړي خل دپاره دشوروي خاوري ته جنګ وړي واي. احمدشاه مسعود دوسلو په زور دنورو دورتګ مخه ونيوله اودشوروي په نظامي مرستې سره يې وکولي شول چې له جنګ نه دشمالي سیمو دزیاتو برخو په بچ کولو سره دروسانو پرضد یرغلونه محدود کړي.

# پایلیکونه

۱ - بوریس ګروموف، سرې لښکرې په افغانستان کې، پښتو کوونکې، پردیس مسافر، مقدمه، پېښور، ۱۹۹۷، ۷۱

۲ - پاسنی اثر، ۲۶۴

۳- پاسنی اثر، ۲٦٦

۴-پاسنی اثر، ۲٦٦

۵ - پاسنی اثر ۲٦٦

٦ - شبرشين، یادشوي اثر، ۲۱۴

۷ - ولادمیر سنګیریف،(زما په اجنتانو کې جنرالان وو،) ترود ورخپانه مسکو، ۳۲ جنوري ۱۹۹۲ ، ۱-۲

۸ - پوهاند ودیر ساپي په پېښور کې دنومبر په لسم کال ۱۹۹۷ کې دیوې مرکې په ترخ کې لاندې پېښې بیان کړي : په ۱۹۹۱ کې، احمدشاه مسعود، ببرک کارمل، اوډاکتر عبدالرحمن چې په فضل احمد پناه باندي هم یادیده ، له یو شمیر پرچمیانو سره پوهاند ساپي ته مراجعه وکړه او دنجیب پر ضد يې کودتاته تشویق کړ، وروسته په ۱۹۹۲کې، مسعود، عبدالرشيد دوستم، ببرک کارمل، فرید مزدک، او نجم الدین کاویانی دګلبدین حکمتیار دوژلو دپاره چې وروسته له هغه چې صدراعظم شوی و، دسیسه وکړه.

۹ - دغه پېښه په پېښور او کابل کې په کال ۱۹۹۷ کې دنومبر په میاشتې کې په مرکو سره تائید شو. سیدافري بانوري، په کابل کې دحمل اونقل په ریاست کې پخوانې کرنیل شاهنواز تني، او محمد نعیم اجمل، په لیبیا کې پخوانې سفیر، منابع وو، مترجم سید نور الحق حسینی،

۱۰ – سيد ابرار، داريانا افغان رڼس. پوهاند وديـر ساپـي تـه پـه ۱۹۹٦ کـې داسـتولو مربوط سندونه وښودل. ساپـي دنجيب پـه وخت کـې دهـوا نـوردي رڼس ؤ، ساپـي دغـه پـټه پـه پيښور کې نومبر ۱۰ – ۱۹۹۷ کې ديوی مرکې پـه ترڅ کـې څرګنـده کـړه، پـه واشنګټن کـې دسـنا دبـانديـنيو اړيکـو کميټي يـوه مشاور، چـې پخـوا داسـتخباراتو غـړې و، او دخپـل دنامـه يـادول يـې نـه غوښتـل، ديادشـوي سـند منبـع يـې ماتـه څرګنـده کـړه، خـود احمدشـاه مسعود دسـوانح لـه راکولـو نـه يـې ډډه وکـړه (برخــه ۲)

## ديړ په سوري کې

کـوم څه چې مـوږ يې ننداره کـوو داسـاسـي حقيقـت رابرسـيره کـېدل دي.
لـه نـوی روسـيي لانـدې زوږ شـوروی پـروت دی .
بـسـي نومــه

وروسـتى پـېښې دسـاتند وی ـ تـابع هغــه رابطــه څرګنــدوی چــې دساږه جنګ پـه بهير او پـه سـيمې بانـد ې دهغـه نـه پـه راپيـدا شـرايطو کـې داحمدشـاه مسعود او ماسکو تـر مينـځ تاسـيس شـوي وو. مثـال يـې هغــه سملاسـې تبصـري وي کومــې چــې اليکزانــدر ليبيــد (Alexander Lebed) دسرو لښکرو يـوه پخوانـي جنرال، پـه دې وختـو کــې پـه واشنګټن کــې پـه يـوه مطبوعــاتي کنفرانــس کــې کــړې وې. هغــه ويلــې وچــې (( نــرى دې دطالبــانو پـه مقابل کـې چــې دروسـيي دوســت افغـاني لويـان (احمدشـاه مسـعود اوعبدالرشيددوسـتم) يـې شـرلې دي لـه روسـيې سـره پـه افغانسـتان کـې دهغـې دنفـود پـه ساتلو کـې مرسـته وکـړي.)) ۱

عبدالرشيد دوسـتم او احمـد شـاه مسـعود هغـه کسـان دي چــې لــه کــال ۱۹۹۳ نــه يــې وروسـته سـره نــه ووليدلــې، يعنــي وروســته چــې ددوی قــواوې دکــابل تنظيمــي حکومــت تــر شــاه يــو مــوتي شــوې وې او بيــا دکــابل دکنتـرول پـه سـر سـره ونښتـل، او دښمنـان شـول او پــه نښتــو کــې يــې پــه زرګونــو خلـک ووژل شـول،اودکابل دښارزياتره برخــې پــه کنـډوالو بدلــې شــوې. ۲

خـو پـه يـوه موافـق وخـت يعنـي د۱۹۹٦ کـال داکتوبـر پـه ۱۰ مـه پـه جنـګ کــې دغــو شـکمنو اتـډيوالانو (احمـد شـاه مسـعود عبدالرشـيد دوسـتم او کـريم خليلــي) داوليــګ نويليــايوف (Oleg-Nevelyaev) تــر څارو ســترګو لانــدې نظـامې اتحـاد سـره وکـړ. نـو يليـايوف پـه مزارکـې دروسـيې قونسـل و. دغـه توافـق ليـک چـې پـه خنجـان کـې لاسـليک شـو، پـه ظـاهرکې شـمال تـه دطالبـانو دنظـامې قـواوو دپرمختـګ دمخنيــوي پــه مقصــد و. هغســې مقصــد چــې دمسـکو دمصٔونيتــي او ســوداګري دګټو پرضــد بــه وي.۳ دنيــو يليــايوف

اوعبدالرشيد دوستم لـه مسکو نـه ترلاسـه کـرې دي. مسکو ددي دپاره چـې دافغانستان په دننيـو چـارو کـې خپلـه نـه سـتري کېدونکـې لاسـوهنه حـق پـه جـانب وښيـي، اساسـی کـارد ولوبـوه چـې هغـه طالبـان(دتولـې سيمې دپـاره دافراطيونـو ) په شان معرفـي کـوي پـه داسـې حـال کـې چـې خپـل مـاموريت يـې د(منمـدن کوونکـي نظـام) پـه شـان پـه تکمـاري سـره اعلامـوه. د۱۹۹۷ کـال پـه اګست کـې عبدالـودود، داحمدشـاه مسـعود پيلـوټ، لـه خپـل سـې، ۱۷ هلـی کـوپـټر سـره طالبـانو تـه واوښت او بيـايې دپـل مـتک دورانولـو داسـتان بيـان کـړ چـې دهمدغـه کـال پـه تـېر جـولای کـې پيښ شـوی و. هغـه پنجشـير تـه دسـرک دويجـاړولو بيـان هـم وکـړ. ۴ پـل مـتک پـه سـتراتيجيکی لحـاظ مـهم و پـه دې چـې هغـه يوازينـی سـرک و چـې د سـالنګ پـه خولـه کـې پـروت و. احمدشـاه مسـعود ددي دپـاره چـې دطالبـانو دپرمختـګ مخـه ونيسـی دغـه دوه سـتراتيجيکی هدفونـه دچوونکـو مـوادو او دروسـيي مشـاورينو پـه مرسـتی ويجـاړ کړل. ده دملـی جـهاد پـه لـس کلنـې دورې کـې دشـوروی اتحـاد ديرغلـګرو پـوخ پـر ضـد لـه دغـه کارنـه ډده کـړې وه. ۵

تم جانستن(Tim-Johnston ) پـه کال۱۹۹۷دسپتمبرپـه ۱۵مـه لـه کـابل نـه يـو راپورخپورکړ،اوېکې يې وويل چې يوري باتورين(baturin-yuri) دروسيي دجمـهور رئـس، بوريس يلتسين، نظامي مشاور پنجشير ته واستول شو. دهغه له دغه سفر نه وروسته په روسيي هلی کوپټر کې دلونا ريو(lunar-l ) توغنديو نوی ډوله محموله، چې په فراګ -۷ باندې هـم ياديږي دروسانو له خوا احمدشاه مسعود ته واستول شوه. دغو توغنديو احمد شاه مسعود په دې قادرکړ چې په کابل باندې له خپلو مخکنيو جبـهو نـه ګذار ونـه وکـړې. او احمدشـاه مسعود له دېنه انکار وکړچې له يوري باتورين سره يې ليدلې دي. دستيلايت په تيلفون کـې يې له پنجشير نه وويل چې (( نه مې له کوم روسي يا باند نيـو نظـامې افسـرانو سـره خبرې کړې، او نه مې ورسره ليدلې دي، او دغه وينا وې ټولې بې بنياده پر وپاګندې دي.)) ٦ يـوه اونی وروسته، دسپتمبر په ۱۵ مه په مسکو کې داحمدشاه مسعود او يوري بـاتورين دپنجشير دغونډې يو ګډ عکس خپو رشو. ۷

مـارک اچ . ملسـتاين(Mark H. milstein دسـو لجـراف فـرچـون Soldier-of fortune دمجلـې لوړرتبـه خبريـال پـه خپلـې مجلـې کـې پـه يـوې مقـالې کـې وليکـل چـې دقرغـز او ازبـک اجـيران لـه ده سـره دترمـز پـه سـفر کـې ملـګرې وو. ترمـز دافغانسـتان سـرحد تـه ورخرمـه پـه ازبکسـتان کـې دپخوانـي شـوروي اتحـاد نظـامي چـوني لرونکـی ښارګوټی دي. ملسـتاين وايـي: ((دغـه اټکـل شـل مـج(مجـاهدين) داجـير کيـدو پـه مقصـد دمياشـتي دپرشـو ډالـرو داجـورې پـه اميـدوو. دوی دروسـی منصبدارانـو پـه ملګرتيـا روان وو چـې ددوسـتم اومسـعود پـه ليکـو کـې دطالبـانو پـر ضـد وجنګيـږي.)) ۸

په دې ډول په نهائي تحليل کې داحمدشاه مسعود، عبدالرشيد دوستم ،کريم خليلي اونورو عملونه نه يوازې ددوی دخپل هيواد او دجهاد دروحيې او عزت په مقابل کې خيانت دی، بلکه دهغو غير متجانسو عناصرو په مينځ کې چې ټول سره په ګډه دافغانستان عنعنوي ټولنه جوړوي، دقومې ګډژوند دنسبتاً برابر جهت تخريب هم دی. په دې برسېره ديوه مغرور زعامت له خوا دقدرت، شخصي لوی والی، او اقتصادي ګټو دپاره دقوميت په اساس دجنګ پرمخ بيول داعتماد په مقابل کې هغه خيانت دی چې ادعا کوی دتاجکو، ازبکو اوهزاره ګانو دمصالحو دپاره يې کوي، خوتاجکان، ازبکان، اوهزارګان افغانان دي ، هغې افغانان چې په ميړانه وجنګېدل او له يوه ملحد برغل نه يې خپل هيواد وژغوره. ددوی قرباني او ددوی خاطره بايد هېڅکله له خاورو سره بيخايه برابره نه شي.

## پايليک

1 – جارج ميلون،(لبيد دچوبايس په مقابل کې دروسيې آينده په خطرکې) وال ستريټ جورنال، ۲۵ نومبر۱۹۹۶ ، دسر مقالې مخامخ ته،
۲- جان برنز (دوه افغانی دلې ژمنه کوی چې دکابل له نويو حکمرانانوسره وجنګيږي) نيويارک ټايمز، اکتوبر ۱۱، ۱۹۹۶، ۴
۳- پاسنی ليکنه
۴-ريوټر، جولای ۵، ۱۹۹۷
۵ – پاسنی منبع
٦ – پاسنی منبع، جولای۱۵ ،۱۹۹۷
۷ – ازويستيا، سپتمبر۲۳ ، ۱۹۹۷
۸ –مارک ملستاين،(هغه هيواد چې سولې له ياده ايستلی) سولجراف فارچون(مجله) فبروري۱۹۹۷، ۷۲

# افغانستان ۱۹۹۷

ولې زه او ته اوډېر نورخلک دجنګ پرضد په ټينګه پاڅيږو؟ ولې موږ هغه دډېرو دردناکو مصيبتونو په ډله کې يو بل مصيبت ګڼو؟ موږ دجنګ پرضد په پورته ډول عکس العمل ښيو ځکه چې هر يو دخپل ځان دژوند حق لري، ځکه چې جنګ ټول انساني ژوند ته خاتمه ورکوي ځکه چې هغه انفرادي انسانان سپکاوي ته راکاږي، ځکه چې هغه دوی مجبوره کوي چې دخپلې ارادې پرخلاف نور انسانان ووژني، او ځکه چې هغه ارزښتناک مادي څيزونه له مينځه وړي کوم چې دانسانانو په زيار سره توليد شوي دي.

زما په نظر هغه قوي دليل چې موږ دجنګ پرضد پاڅېږو دادی چې موږ مجبور يو همدغسې وکړو. موږ ځکه دجنګ پرضد يو چې مجبور يو دعضوي دلايلو دپاره شته اوسو.

زيګموند فرويد

دافغانستان دټوټه کولو پلان هيڅ ترک شوي نه دی، دبريژنيف دکاسکاد پلان په ټل ترټل توب کې اوسي. داهغه پلان دی چې دتهران اومسکو په نيغ دخيل توب سره خپرېږي .۱ په داسې حال کې چې دوينو توئيدل دوام لري دافغانستان خلک له ويره وونکې چلينج سره مخامخ دي . ۲ يو څو هيوادونه دي چې دخلکو دارادې پرضد او داقليت په ملاتړ دخپلو خاصو اغراضو دپاره دجنګ لمبوته پکې وهي. ددوي داعمالو دپه حقه نبودلو او نافذ کولو مجرا يعنې دملګرو ملتونو جهاني موسسه په دغې پروسې کې معکوسه شوې ده په داسې حال کې چې هغه په اصل کې دجنګ دختمولو او بيطرفۍ دپاره جوړه شوې ده.

لکه چې داکافي نه وي دافغانستان خلک درښتين توب دپاره هم ځانونه دجنګ په حال کې ويني. ټولنيز خپروونکې تنګ نظره وسايل دعادت له مخې داسلام په پېداينښت او حيثيت او همداراز دافغان دپيريو پيريو تاريخ لرونکې عنعنې اوټولنې باندې نيوکې کوي. دافغانستان خلک يوازې غوارې دوی ته دموفق کېدو چانس ورکړل شي. هغسې چانس چې خپل ماشومان وروزي او تعليم ورته ورکړي. دوی بس هغه څه غواړي چې نوره دنيا يې دخپل دځان دپاره مسلم حق ګڼي، هغه حق چې ازاد اوسي او خپل ژوند په خپله په مخ بوځي. موږ دغومره ددوی

مديون يو، تر هغه لږ به نه يوازې ناانسان توب وي، بلکه دعدالت سر چپه والى به هم وي.
((تاريخ به هغه څه په يا دولري چې موږ يې نن دلته کوو.))

## پايليک

١ - په افغانستان کې دجنګ پايښت بايد دمسکو، تهران او په شمال کې دهغوى((تابعانو)) دپاره غابس دغابس(Quid-pro-quo) په مقابل کې وګڼل شي. ځرګنده ده چې دملګرو ملتو نو په عمومي اسامبلې کې دافغانستان (رباني) استازې توب دمسکو او تهران دحرصناکو غوښتنو تابع دى، چې هغه په خپل وار کې دهمدغې موسسى په داخل کې دجنګ دتاوان په باب ديالوګ سست کوي. بلکه داچې دجنګ دوام به ددې باعث شي چې له افغانستان څخه پايپ لاين تېر نه شي، او مسکو او تهران دواړه په دغه هکله سخت فعاليت کوي، دمرکزي آسيا نه استثمار شويو منابعو ته دغښتوي تجارت لارو دوام چې تر اوسه دمسکو ترنفوذ لاندې و، هم په خطر کې لويدلى دي. دايران او روسيې د((تابعانو)) په باب به داقتصادي، ديپلوماتيکي او نظامي حمايې دوام په افغانستان کې شايد داقليت په حمکرانى تمام شي، چې داد معادلې بله خوا ځرګند وي،
٢ - دشمال اتحاد د(( نه پخلاکيدونکو)) کتابى مثال راښيي. اجتماعي پوهان نه پخلا کيدونکي هغو ته وايي چې يو خل چې وسله راپورته کړي، بيا ددې توان له لاسه ورکوي، او ياپه خپله نه غواړي چې سولې ته راوګرزي. کله کله دغه نه پخلا کيدونکي هغه کسان دي چې هيښتناک جنګي جرمونه يې کړى وى، او په دې پوهېږي چې که جنګ ختم شي، اويا کله چې ختم شي، دوى به مجازات شي. نور هغه کسان دى چې هغوى هغه ((داعيه)) چې دهغې دپاره جنګيږي، يافکر کوي چې دهغې دپاره جنګيږي، تردې حده پورې بين المللي او خپل ارمان ګرزولي وي، چې بيا له خپل دښمن سره هيڅ راز روغې جوړې ته نه حاضريږي. يوازنى ځيز چې دوي يې مني، هغه پوره بريالى توب دى.

# دخنجان معاهده

دافاجعه ده داتوطيه ده
دادخنجان معا هده ده
دې کې غلام شته دې کې بادار شته
دادتاريخ توره توته ده
دې کې وحشت دی دې کې نفاق دی
داد روسانو يوه دسيسه ده
دې کې ځوغله دي ځو قاتلان دي
دشيطانت يوه نسخه ده
دانه منو مونږ داشندوو مونږ
ددې ملت دافيصله ده

شاهي سعادت



خپلواکۍ ګټونکی تولواک امان الله خان

# د ملي ټولنې جوړول

انوارالحق احدي

ملي ټولنه هغې جامعې ته وايي چې اوسيدونكي يې د قومي ، ژبنيو او مذهبي توپيرونو سره سره خانونه د هغې اودهغې د ټاټوبي غړي و بولي ، هغې ته نهايي وفاداري ولري، او له بلې هرې جامعې نه زيات له هغې سره د كلك اجتماعي ، سياسي او رواني تړون احساس وكړي. ژبني ، قومي ، مذهبي ، ديني او تاريخي يووالي ټول كولی شي چې د ملي ټولنې له جوړيدو سره مرسته وكړي ، خو دملي يووالي احساس په دغو فكتورو نو پورې منحصرنه دي . په نړۍ كې داسې ډېرې ټولنې شته ، چې وګړي يې په هر لحاظ سره متجانس وي ، لكه جاپان او يا په ډيرو اړخونو كې سره توپير ولري لكه سويس . په متجانسو ټولنو كې د ملي ټولنې جوړيدل نسبتاً اسان وي . خو په غير متجانسو ټولنو كې د ملي ټولنې جوړول نسبتاً ګران وي ، او هغه روڼ فكر ، قوي عزم او پرله پسې هڅې غواړي .

د ملي ټولنې دجوړولو مشكلات ديوه هيواد د سياسي انكشاف تر مسيره پورې هم اړه لري . په غربي هيوادونو كې سياسي تكامل له مشخصو مرحلو نه تير شوي دي: اول دولت جوړ او ټينګ شو، بيا ملي ټولنه جوړه شوه او ملي وحدت مينځ ته راغی ، بيا د اقتصاد ودې ته توجه وشوه ، بيا په سياست كې عامو خلكو ته برخه وركړل شوه او دموكراسي تعميل شوه ، اوكله چې اقتصاد ښه وده وكړه بيا د ملي عايداتو عادلانه ويش مطرح شو . ددغو بيلو بيلو سياسي مرحلو تر مينځه په ډيرش - څلويښت كاله وخت تيريده ، او د پاليسي په جوړولو كې به په عمومي ډول پر حكومتونو باندې قيود كم وو.د مثال په ډول په دغو هيوادونو كې ددولت د ټينګيدو نه وروسته ، كله په زور او كله په خوښه حكومتونو په خلكو باندې دملت جوړولو پروګرام تطبيق كړ. څرنګه چې دملت جوړولو پروګرام د ډيموكراسي له دورې نه مخكې عملي شو ، خلكو نه شو كولی چې د ډيموكراتو حقوقو نه په استفادې سره د حكومت له هغو پروګرامو سره مخالفت وكړي،كوم چې په زور عملي كيدل . دغه حال د ملت جوړولو پروسه چټكه كړه. همدارنګه د كارګرو د حقوقو د نه انكشاف له امله په دغو هيوادونو كې د اقتصادي ودې مرحله چټكه اود اقتصاد وده زياته كړه .

خو ددریمې نړۍ په هیوادونو کې د ملتونو دسیاسي تکامل مسیر له پورتني مسیر نه فرق لري. ددریمې نړۍ په هیوادونو کې هم اول دولت جوړیږي ، خو د دولت له جوړیدو سره سم د سیاسي تکامل ټولې او یالا اقل دوه درې مرحلې یوځاي پیل کیږي . په دې اساس په دریمې نړۍ کې د دولت له جوړیدو سره سم حکومتونه مجبور دي چې د ملت جوړولو ، اقتصادي ودې ، ډیموکراسي ، او د ملي عایداتو د عادلانه ویش موضوعاتو په هکله هم په یووخت کې تصامیم ونیسي . کله کله دغه بیلې بیلې پروسې سره تصادم کوي او تصادم بیا سیاسي ناکراري پیدا کوي . د مثال په ډول په هغو ټولنو کې چې بیل بیل قومونه ژوند کوي ،که د ملي ټولنې جوړښت پوخ نه وي کیدی شي چې له ډیموکراسي نه د قومي اختلافاتو د تقویې لپاره استفاده وشي، ملي وحدت نور هم کمزوری شي، اوسیاسي ناکراري را مینځ ته شي . په دې حال کې ضروري ده چې د دولت له جوړیدو نه وروسته د ملي ټولنې د جوړیدو په لار کې هڅې وشي خکه که ملي ټولنه جوړه نه شي نورې سیاسي مرحلې که کامیابي هم وی سیاسي نا کراری پیدا کوی او هغه په خپل وار د اقتصادي ودې ، د ډیموکراسي تکامل او ملي یووالي ته تاوان رسوي .

په غیر متجانسو ټولنو کې د ملي ټولنې د جوړیدو غټ مشکل د ټولنې په هویت باندې موافقه ده. د ملي ټولنو په هویت کې د اکثریت قوم عمده رول لري . په جهان کې اکثر دولتونه قومي هویت لري . په اروپا کې دا حکم بالکل عام دی . فرانسه ، جرمني، پولیند ، هنګري، یونان اویو شمیر نور هیوادونه یې څرګند مثالونه دي .دامریکې ټولنه که څه هم له مختلفو قومونو نه جوړه ده ، او ځینې خلک په خپلو کورونو اوخصوصي معاملاتو کې په خپلو قومي ژبو غږیږي او خپل رسم او رواج مراعاتوي خو په سیاسي ژوند کې دوی ټول امریکا د یوې ټولنې په صفت مني. تقریبا ټول په انګریزي خبري کوي،له بل هرهیواد نه زیات امریکې ته وفادار دي ، او د ټولنې د اکثریت د قوم یعني د انګلو سکسن حاکم نقش د ملي ټولنې په هویت کې مني. زمونږ په منطقه کې هم داکثرو دولتونو هویت په قومي اکثریت پوري تړلی دی: د مثال په ډول په ازبکستان، تاجکستان، ترکمنستان، ایران، ترکیه او عربي هیوادونو کې که څه هم قومي اقلیتونه شته، ددولتونو هویت د قومي اکثریت هویت ته منسوب دی.

د ملي تولنې د جوړیدو د پاره ضروري ده چي د یوه غیر متجانس هیواد ټول قومونه ددولت او ملي ټولني په هویت باندي موافقه وکړي، او دولت ددغه هویت د تعمیم په لاره کي هڅي وکړي. لکه چي دمخه مي وویل ددولت او ملي هویت په تعین کیدلو کي داکثریت قوم هویت مهم رول لري. په دي ارتباط دژبي موضوع خورا مهمه ده. ملي تولنه ملي ژبي ته ضرورت لري، چي په هغي باندي د تولني ټول قومونه سره مفاهمه وکړي. له سویس او کوم بل مملکت نه پرته په نورو ټولو هیوادونو کي ملي ژبه د ملي ټولني په جوړیدو کي لوی نقش لري. هغه تولني چي ملي ژبي نه لري ، هلته ملي وحدت کمزوري وي. خو په قومي لحاظ په غیر متجانس هیواد کي طبعاً ددولت له جوړیدو سره سم ټول خلک په یوه ژبه مفاهمه نه کوي. دا ددولت وظیفه ده چي بي له دي نه چي خلکو ته خاص تکلیف ایجاد کړي، ملي ژبي ته ورو ورو عمومیت ورکړي. زمونږ په منطقه کي دایران دولت په دي برخه کي ډیر موفق دي سره له دي چي په ایران کي د فارسي ژبو شمیر په سلو کي د شپیتو په شاوخوا کي دي . صفویان، قاجاریان، پهلویان او اوس اسلامي رژیم د ملي ژبي په هکله موافق وو او نورو قومونو ته یي حق ورنکړ چي د فارسي ژبي د ملي حیثیت په هکله تغیر راولي. د مرکزي اسیا نوي جوړشوي دولتونه لکه تاجکستان ، ازبکستان او ترکمنستان هم ددغو هیوادونو د قومي اکثریت ژبه د ملي ژبي په صفت پیژني. د تعمیم دپاره یي هڅي کوي او قومي اقلیتونه تشویق کوي چي د خپلو قومي ژبو برسیره نوري ملي ژبي هم زده کړي . د ملي هویت روزنه د ملي ژبي د تعمیم نه برسیره د واحد ملي کلتور ودي ته هم ضرورت لري . هغه وخت چي د ملي ژبي موضوع حل شي په هیواد کي اقتصادي فعالیت د هیواد بیلي بیلي برخي سره ونښلوي معارف وده وکړي او مفاهما تي عامه وسایل عمومیت پیدا کړي د ملي کلتور وده ډیره چټکه کوي .

د ملي تولني د جوړولو دوهم عمده حساس د هیواد د وګړو تر مینځ قانوني مساوات دي .که یوه تولنه په قومي اوملي لحاظ متجانسه هم وي تر څو پوري چي د هغي وګړو ته مساوي حق ورنکړای شي هلته ملي تولنه نه شي جوړیدای . همدغه دلیل دی‌چي د فرانسي له انقلاب نه دمخه په اروپایي هیوادونو کي ملي تولني نه وي جوړي شوي. تر هغه دمخه د اکثر هیوادونو وګړي په قانوني ډول په بیلو بیلو طبقو ویشل

شوي وو او د قانوني مساوات خاوندان نه وو. په بالفعل ډول د خلکو تر منځ قانوني مساوات د ملي ټولنې د جوړېدو دپاره حتمي دی. د ملي ټولنې ټول وګړي باید دا حق ولري چې د جمهوري رياست او صدارت نه نيولې تر ولسوالي پورې هر دولتي مقام د لياقت اويا د خلکو د خوښې له لارې تر لاسه کړي. د ملي ټولنې هيڅ وګړي باید د قومي، جنسي، مذهبي شتمني او طبقاتي توپيرونو له امله د دولتي مقامونو له نيولو نه محروم نه شي. ( په افغانستان کې ددولت اوحکومت رئيسان له دې امر نه په ديني لحاظ مستثنی دي خکه چې ددولت او حکومت مشران باید سنيا ن وي .) همدارازدملي ټولنې غړي باید وکړای شي چې د لياقت په درلودلو سره په هره تعليمي مؤسسه کې غړيتوب تر لاسه کړي او دملي ټولنې هروګړي باید د اقتصاد په دولتي او خصوصي سکتورونو کې بېله کوم تبعيض نه دکارکولوحق ولري.لنده داچې په اجتماعي،سياسي او اقتصادي چاروکې بايددملي ټولنې دغړوترمينځ(( قومي)) سمتي، قبيلوي، ديني او طبقاتي توپيرونو پر اساس تبعيض ونه شي.

قانوني مساوات که څه هم د ملي ټولنې د جوړېدو عمده اساس دی تر څو پورې چې په ملي هويت باندې موافقه نه وي حاصله شوي، قانوني مساوات نه شي کولای چې د ملي ټولنې د جوړېدو پروسه پر مخ بوځي. په څينو غير متجانسو ټولنو کې چې د ملي هويت موضوع نه وي حل شوې، د موکراسي، چې د قانوني مساوات اعلی شکل دی حتی سياسي ناکراري مينځ ته راولي، او د ملي ټولنې مشکل نور هم زياتوي. په دې اساس د ملي ټولنې په هويت باندې موافقه او دملي هويت تعميم د ملي ټولنې د جوړېدو او سياسي انکشاف لپاره لومړی ضروري شرط دی.

په افغانستان کې دملي جوړېدو په لارکې په زره پورې پرمختګ نه دی شوی. دغه امر درې عمده عوامل لري: قومي فرقونه، په عمومي ډول د حکومتونو بې پروايي او کله کله په يوه وخت کې د سياسي انکشاف له بيلو بيلو مرحلو سره مخامخ کېدل، او د ملت جوړولو لپاره د يوې واضح ستراتيجي نشتوالی.

په افغانستان کې بيل بيل قومونه ژوند کوي. که څه هم د قومونو تناسب په هکله يې د علماو د تخمينونو تر مينځ توپير شته خو ډير پوهان په دې نظر دي چې د افغانستان نفوس لا اقل په سلو کې پنځوس پښتانه په سلو کې ۳۶ تاجک په سلو کې ۸ هزاره، ۸ ازبک او په سلو کې

شپږ چـار ايمـاق دي . دنـورو قومونـــو لکــه ترکمنـــانو، بلوڅانـــو ، نورســتانيو، پشه يـانو او براهويـانو تناسـب ډيـر کـم دی. څرنـګه چـې افغانسـتان لـه قومـي لحاظـه يـوه غيره متجانسـه ټولنـه ده ، لـه بيلـو بيلـو قومونـو نـه د ملـي ټولنـې جـوړول اسـان کـار نـه دی . دغـه کـار روڼ فکـر ، معقولـه سـتراتيژۍ ، قـوي عـزم او دوام داري هـڅې غـواړي . پـه افغانسـتان کـې د سياسـي انکشـاف هـڅې هـم د دولـت جوړولـو لـه مرحلـې څخـه نـه دي اوښتـې ، او کلـه کلـه چـې دولـت جوړولـو نـه برسـيره نـورو موضوعـاتو تـه توجـه شـوې ده ، حکومـت د سياسـي انکشـاف لـه بيلـو بيلـو مرحلـو سره پـه يـوه وخـت کـې مخـامخ شـوې او دغـه حـالت د ملـت جوړولـو پروسـه لـه مشـکلاتو سـره مخـامخ کـړې ده. خـو د ملي ټولنـې پـه جوړيـدو کـې تـر ټولـو نـه مـهم د حکومـت د مشـرانو سياسـي پوهـه، سياسـي ثبـات او جرئـت او د واضحـې معقولـې سـتراتيژي درلـودل دي. پـه دې برخـه کـې د افغانسـتان پخوانيـو حکومتونـو غـټې نيمګړتيـاوې درلـودې .

د افغانسـتان د دولـت تيـره د احمـد شـاه بابـا پـه لاس ايـښودل شـوې ده. احمـد شـاهي دولـت کـه څه هـم د ډيـر وخـت لپـاره قومـي دولـت و خـو سـدوزی واکمنـو د ملـت جوړولـو لپـاره کومـه واضحـه سـتراتيژي نـه درلـوده او اداري يـې هـم د امپراتـوري شـکل درلـود. پـه دې ډول د سـدوزيو پـه دوره کـې پـه افغانسـتان کـې دملـي ټولنـې دجوړيـدو پـه لار کـې کـوم موثـر پـر مختـګ ونـه شـو. داحمـد شـاه بابـا دولـت دده د لمسـيانو او د محمـد زی زمـامدارانو پـه لومړيـو کلونـو کـې ډيـر کمـزوري شـو . نـوی نسـبتاً قومـي دولـت د امـير عبدالرحمـن خـان پـه لاس جـوړ شـو . د امـير عبدالرحمـن خـان او امـير حبيـب الله خـان پـه دورو کـې ډيـره توجـه د دولـت جوړيـدو تـه وشـوه . او دملـي ټولنـې جوړولـو او اقتصـادي ودې تـه کومـه خاصـه پاملرنـه ونـه شـوه . د شـاه امـان الله خـان پـه دوره کـې دملـت جوړولـو اقتصـادي ودې او دموکراسـي پروسـې ټولـې چـارې يـوځاي شـروع شـوې خـو د ملـت جوړولـو هـڅې يـې نيمګړې وې او د ملـي هويـت پـه هکلـه يـې قـاطعيت او وضـاحت نـه درلـوده. د ملـي هويـت کـوم هغـه نسـبتاً ضعيـف شکل چـې ورانـدې شـوی وو هغـه هـم پـه جـدي ډول عملـي نـه شـو . شـاه امـان الله دخلکـو د قـانوني مسـاوات پـه هکلـه کلکـې هلـې ځلـې وکـړې خـو څرنګه چـې د مخـه مـې وويـل تـر څو پـوري چـې د ملـي هويـت موضـوع نـه وي حـل شـوې ملي ټولنه يـوازې د قـانوني مسـاوات پـه سـتنه بـاندې نـه شـي جوړيـدلای. د ۱۹۲۹ کـال اغتشـاش نـه يـوازې دا چـې دملـت جوړولـو

اقتصادي ودې او ديموکراسي پروګرامونه ناکام کړل بلکه دولت يې هم دومره کمزوری کړ چې وروسته محمد نادر شاه او صدراعظم محمد هاشم خان د دولت د ټينګيدو لپاره ډيرې هلې ځلې وکړې. د صدراعظم محمد هاشم خان دغه ستراتيژي چې د اکثريت قوم او ژبه ( پښتون او پښتو ) په ملي هويت کې اساسي برخه ولري ، عملي ستراتيژي وه . خو حکومتونو د هغه په تطبيق کې له قومي عزم نه کار وانه خيست او په نتيجه کې د ملي ټولنې د جوړيدو په لاره کې دغه لومړی ستراتيژي ناکامه شوه . د صدراعظم شا محمود خان او صدراعظم محمد داود خان په دورو کې د ملي ټولنې له جوړيد و نه اقتصادي ودې ته زياته توجه وشوه او دمحمد ظاهر شاه د مشروطې پاچاهي په دوره کې يو ځل بيا د ملت جوړولو اقتصادي ودې او ديموکراسي پروسې ټولې يوځای پيل شوې . د ملي هويت په هکله د محمد ظاهر شاه ستراتيژي دا شوه چې پښتو او دري به رسمي ژبې وي او پښتو به برسيره پر هغه په دې چې داکثريت ژبه ده ملي ژبه هم وي . که څه هم دا يوه معقوله ستراتيژي وه خو د تعميل په لاره کې يې هيڅ دول موثر ګامونه وانه خيستلای شو . سره له دې چې محمد ظاهر شاه د خلکو د قانوني مساوات په هکله موثرې هلې ځلې وکړې، خو څرنګه چې ملي هويت پوخ نه وه ددغې دورې له ځينو ليبرالی ازاديو نه د قومي اختلافاتو د تقويې په لاره کې استفاده وشوه او دملي ټولنې د جوړيدو پروژه يو ځل بيا ناکامه شوه . د محمد داود خان په دوهمه دوره کې ديموکراسي له مينځه ولاړه، د ملي وحدت په هکله کوم واضح فورمول طرح نه شو ، او ددولت په استحکام او اقتصادي ودې باندې ټينګار وشو . دکمونستانو په دوره کې خلقيانو د ملي وحدت پر ځاي پر طبقاتي جګړې باندې ټينګار وکړ . او پرچميانو ، خصوصا د کارمل په دوره کې قومي اختلافات تشويق کړل او غوښتل يې چې خپل حکومت د قومي اقليتونو په مرسته ټينګ کړي . کمونستانو له ديموکراسي هيڅ اهميت نه درلوده ، او د جګړې دوام دوی ته ددې موقع ورنکړه چې د اقتصاد په برخه کې کوم موثرکار وکړي. د برهان الدين رباني په دوره کې دملي وحدت ځاي قومي جګړو ونيو، ديموکراسي خو څه چې حتی د افرادو عادي حقوق هم د " حکومت " او ټوپکچيانو له خوا تر پښو لاندې شول . اقتصاد په ټپه ودريد او دولت يوازې په بين المللي سطحه کې يو ضعيف قانوني موجوديت درلود. د طالبانو د دولت او ملت جوړولو ستراتيژي لا تر اوسه پورې معلومه نه ده.

په دې ډول افغانستان کې د ملي تولني د جوړيدو په لاره کې موثر ګامونه نه دي اخيستل شوي. څرنګه چې د مخه مې وويل تر څو پورې چې په غير متجانسو تولنو کې دملي هويت موضوع نه وي حل شوې د ملي تولنې جوړيدل ډير ګران کار وي.

دملي هويت په تعيين کې د ژبې موضوع ډير اهميت لري.

مخکې له دينه چې انګريزانو نيمايي پښتانه له افغانستان نه بيل کړل پښتنو په افغانستان کې دومره غټ اکثريت درلود چې پښتو بايد د افغانستان يوازنې رسمي او ملي ژبه واى. اوس هم، لکه چې دمخه مې وويل، په افغانستان کې د پښتنو شمير په سلو کې له پنځوسو نه ډير دى، او په دې اساس پښتو بايد رسمي او ملي ژبه وي. خو پښتو تر ډيره وخته پورې رسمي اهميت نه درلود او کله چې به په تيوري (قانون) کې هغې ته د ملي هويت په تشخيص کې اهميت ورکړ شو، په عمل کې به نه يوازې دا چې پښتو نسبت دري له اولويت نه درلود. بلکه په واقعيت کې پښتو دوهمه درجه او محکومه ژبه وه. په يوې غير متجانسې تولنې کې واړه قومي اقليتونه له خپلو ژبونه برسيره ملي ژبه زده کوي. په افغانستان کې له هغو ورو قومونو لکه نورستانيانو، پشه يانو، او بلوڅانو نه پرته چې له پښتنو سره په ګډه ژوند کوي نورو قومي اقليتونو پښتو نه ده زده کړي، او رسمي چارې ددوى په منطقو کې په دري اجرا کيږي.

برسيره پر هغه د قانون او واقعيت ترمينځ دومره غټ تفاوت موجود دى چې د دولت لوى مامورين که څه هم پښتانه دي، په پښتو نه شي غږيدى. په دې ډول د ملي هويت په برخه کې د افغانستان سياسي انکشاف له تضادونه ډک دى. قانون او د دولت پاليسي په تيوري کې د پښتو د تعميم حکم کوي خو په عمل کې پښتو يوه محکومه ژبه ده. ددغه تضاد نتيجه داده چې دملي هويت د تعيين او تعميم په هکله هم پښتانه اوهم خينې قومي اقليتونه له حکومتونو نه ناراضه دي. د قومي اقليتونو خينې پښتون دښمنه دلې چې وينې پښتو د پښتنو له منطقې نه دياندې مروجه ژبه نه ده غواړي د پښتو نظري تفوق د ملي هويت په تعيين کې له مينځه لاړ شي. له بلې خوا د پښتو د تعميم طرفداران په دې ناراضي دي چې پښتو يوازې په تيوري کې ملي او رسمي ژبه ګڼله شوې خو په عمل کې هغه نه يوازې رسمي حيثيت نه لري بلکه ډير مامورين وربانديې ملنديې وهي. دواړه دلې د تيوري او عمل توافق غواړي: د پښتو مخالفين غواړي چې پښتو دملي هويت په تعين کې

عمده رول ونه لري . برعکس پښتانه غواړي چې دولت دې د ملي هويت په تعيين کې پښتو ته خاص اهميت ورکړي او بيا دې ددغه ملي هويت د تعميم دپاره کلکې هڅې وکړي او د قانون حکم دي عملي کړي. په دې ډول دواړه خواوې له دولت نه ناراضي دي.

په هغو هيوادونو کې چې د ملي هويت موضوع نه وي حل شوې په نورو سياسي ساحو کې پر مختګ د شکو بند وي . همدغه دليل دی چې په تيرو لسو کلونو کې په افغانستان کې د دولت کمزوري حتی د هيواد جغرافيايي يووالي له خطر سره مخامخ کړ. دافغانستان حکومتونو اوځينې سياسي ډلو يا په ناپوهيي اويا په بې مسؤليتي سره د افغانستان د ملي هويت او د ملي تولنې د جوړيدو له موضوع سره برخورد کړي اوکوي يې. برسيره پردې چې دخلق ، پرچم اوشعلې ډلو په عمل کې له قومي تعصباتو نه خانونه ازاد نه کړل ، دوی د ملي هويت له موضوع سره هيڅ علاقه ونه ښودله . په ۱۹۷۱ کې چې په ولسي جرګې کې دا بحث روان و ، چې ددولت د مامورينو بايد دواړه رسمي ژبې يعنې پښتو او دري زده وي، د پرچم او خلق ډلو دايوه کاذبه موضوع وبلله او دمشکل په رفع کې يې برخه وانه خيستله . کمونستانو به دايم ملي موضوعاتونه په ټيټه سترګه کتل . او ټينګلر به يې کاوه چې طبقاتي فرقونه روا سياسي فرقونه دي. دوی د ملي داعيې پلويانوته تنګ نظره ناسيونالستان ويل . بنسټ پالو اسلامي ډلو هم نه يوازې د ملي هويت د تشخيص او تعميم موضوع مهمه نه بلکه دوی هغه داسلامي اتحاد سره متضاده ګڼله او مخالفت يې ورسره کاوه .خو کله چې د کمونستانو حکومت سقوط وکړ ، دغو ډلو يا ستمي غوړجګ کړ او يا يې له دې چې د ملي وحدت کوم فورمول وړاندې کړي په قومي تعصباتو کې منحط پاتې شول.سره له دې چې په تيرو پنځو کلونو کې د ملي وحدت موضوع د افغانستان په سياست کې ډيره مهمه موضوع شوې وه د غو بنسټ پالو ډلو جمعيت اسلامي او حزب اسلامي تر اوسه هم د ملي وحدت او ملي ټولنې د جوړولو لپاره کومه فارمول نه دي وړاندې کړي . په تيرو دوه درې کلونو کې قومندان احمد شاه مسعود له يوې خوا د ملي ګرايي او ا فغاني ناسيونالزم دعوی کوي. خو له بلې خوا له افغان او پښتو سره حساسيت لري اوهڅه يې کړې چې حتی د خپنو دولتي دموسساتو منل شوي پښتو نومونه ورک کړي او په ځاي يې ايراني اصطلاحات عام کړي. اسلامي حزب که څه هم په تيرو څلورو کلونو کې قومي موضوعاتو

نه لري متوجه شوي دي خو دغه بدلون يو تكتيكي حركت دى او په تيوري كي حزب اسلامي تر اوسه پوري د ملي وحدت موضوع ته په اهميت قايل نه دى. همدارنګه عبدالرشيد دوستم او حزب وحدت د فيدراسيون خبري كوي ،د قومي اقليتونو دپاره نور حقوق غواړي ، خو دوي دا خبره نه كوي چي په ملي سطح كي به د قومونو روابط په كومو اصولو ولاړ وي ، اود ملي هويت فورمول به څه وي.

د ملي تولني د جوړولو دپاره ناپيلو ملي او سياسي اشخاصو هم د كوم پاخه فكر محصول ستراتيژي نه وه وړاندي كړي . خيني كسان بي له دي چي د ملي تولني په جوړولو كي د ژبو او ملي تولني اهميت وخيري د پښتنو دملي حيثيت او تعميم طرفدارانو او مخالفينو ته بد وايي. دوى بي له دي چي د ملي وحدت د ټينګيدو لاره توضيح كړي ، په بي محتوا شعارونو سره خلك ملي وحدت ته بولي . په دي كي شك نه شته چي ملي وحدت يو عالي هدف دى ، خو دملي وحدت ټينګيدل تر هر څه دمخه د ملي هويت تعيين او تعميم ته ضرورت لري . دغه ډول ملت پالان يا دملي هويت دتعيين او تعميم په اهميت نه پوهيږي اويانه غواړي چي ديوي مهمي موضوع په هكله موقف ونيسي . خيني نور تش په نامه ملت پالان د وطن پالني او ملي وحدت تر مينځ فرق نه شي كولي. دوى په دي ټينګار كوي چي يوازي د وطن مينه (patriotism) كفايت كوي چي خلك وربانډي تول شي ، اوملي وحدت تر لاسه شي .

خو دوى په دي نه پوهيږي چي له سويس نه پرته ممكن په بل هيواد كي يوازي د وطن پالني په احساس باندي ملي تولنه نه وي جوړه شوي وطن پالنه د ملت پالني يو اساسي ركن دي. اما يوازي په وطن پالنه باندي ملي تولنه نه جوړيږي . په هغي تولنه كي چي په ملي هويت باندي موافقه نه وي شوي هلته حتى د وطن په حدود باندي نزاع كيږي او اكثر داسي واقع كيږي چي په يوي مخكي باندي بيل بيل قومونه د وطن دعوى كوي . ددي ادعا ښه مثال دا عرابو او اسراييلو دعوى ده چي دواړه فلسطين ته خپل وطن وايي او دهغه دپاره حاضر دي چي له خپل ژوند نه تير شي . څرنګه چي دوى په ملي هويت باندي موافق نه دي له عين خاوري سره ددوي تعلق مشكل نه شي رفع كولي ، او ددي امكان ډير كمزوري دي چي دوى به په يوي ملي تولني كي سره ګډ ژوند وكړي. په بين المللي سطح كي ددغه حكم ، چي يوازي وطن پالنه دملي تولني سره ګډ ژوند وكړي په بين المللي سطح

کې ددغه حکم ، چې يوازې وطن د جوړيدو دپاره کفايت نه کوي ، بل بنه مثال په شمالي ايرلينډ کې د کاتوليکانو او پروتستانانو اختلاف دی . په افغانستان کې ددغه حکم بنه مثال د قوماندان احمد شاه مسعود موقف دي. په تيرو څلورو کلو کې هغه او د هغه ملګرو دملت پالنې او دوطن پالنې دعوی کړې دي . ددوی ډير پښتانه مخالفين هم خاينو نه وطنپالان او ملت پالان بولي ، خو څنګه چې دغه دواړه ډلې د ملي هويت په موضوع باندې سره توافق نه لري ، دوی نه يوازې له يوه او بل سره مشترکه مبارزه نشي کولی بلکه په متقابل سنګر کې ناستې دي، سره له دې چې دواړه ډلې د وطن پالنې او ملت پالنې ادعا کوي. په دې اساس د هغو " روښانفکرانو " نظرچې وايي يوازې د وطن پالنې په شعارو باندې ملي تولنه جوړيدلی شي، پوخ نظر نه دي.

خينې نورتش په نامه ملت پالان دموجودحال( Status-quo ) دوام غواړي.دوې هغه کسان چې د ژبو دسياسي اهميت په هکله غربيې پر فاشزم متهموي ،اوغواړي چې د ملي هويت دتعيين په مساله کې د ژبې اهميت نفی کړي .خو څنګه چې دمخه مو بحث وکړ.موجودحال نه پښتنو او نه د قومي اقليتونو خينودلوته دمنلو وړدي . دغه حال دسيکا لوژي په اصطلاح پيژندګلوی ناموافق توب (cognitive dissonance) منبع ته راوړي او هغه د خلکو نه رضايت زياتوي .

زما په فکردملي وحدت لپاره لار پيدا کول اوس هم بوډير مهم سياسي ضرورت دي .ترڅو پورې چې قومي روابط دسياسي عدل او صداقت په اصولو ونه دريږي ،ملي هويت تعين اوتعميم نه شي ، دافغانستان سياسي انکشاف به په ښوييد ونکې بيخ ولاړوي.له اساسي موضوعانو نه تيښته مشکل نه شي رفع کولي.دافغانستان سياسي دلې او سياسي شخصيتونه بايد په دې برخه کې ژورفکروکړي،اوکلک موقف ونيسي.

د ملي تولنې د هويت په هکله بايد د قومونو د وګړو شمير او خينې تاريخي واقعيتونه په نظر کې ونيول شي. په دې کې شک نه شته چې د افغانستان له تولو قومونو نه د پښتنو شمير ډير د ی. دا هم ښکاره ده چې پښتون او افغان په اول کې مترادفې کلمې وې او وروسته د افغان نوم حاوي شو ، او د هيواد تول وګړي يې په غير کې ونيول او د وطن په اساسي قوانينوکې په همدغه مفهوم ومنل شو.همدغه دليل دی چې د دولت هويت تل افغان و.په نړۍ کې افغانستان يوازنی افغان دولت دی. زمونږ په سيمه کې نور قومونه هم خانګړې دولتونه لري. تاجکستان ،

ازبکستان، ترکمنستان ایران تول قومي دولتونه دي . ددغو تولو دولتونو هویت د هر هیواد د اکثریت په قوم پوري تړلي دی. څرنګه چې په افغانستان کې پښتون له تولو قومونو نه لوي قوم دی ، د ملي تولني هویت باید افغان وي . په دې اساس که له اول نه د افغانستان سیاسي انکشاف د نورو ډېرو هیوادونو د سیاسي انکشاف مسیر تعقیب کړي وای پښتو باید د افغانستا یوازنی رسمي او ملي ژبه وای او هغه باید اوس د افغانستان د تولو اوسیدونکو د تفاهم وسیله وای . خو په افغانستان کې سیاسي انکشاف له نور مال مسیر نه اوښتی دی ، او سره له دې چې د پښتنو نفوس په سلو کې تر پنځوسو نه زیات دی ګن شمیر اقلیتونو د پښتو پرخاي دري زده کړې ، او مونږ باید دغه واقعیت د ملي تولنې په جوړولو کې په نظر کې ونیسو . په دې اساس ښه به داوي چې پښتو او دري دواړه رسمي ژبې وې. خوسیاسي عدالت ، تاریخي واقعیت او په هیواد کې د پښتنو اکثریت دا حکم کوي چې پښتو دی د افغانستان ملي ژبه هم وي . په دې ارتباط زما موقف د ۱۹۶۴ کال د اساسي قانون چې د مشروطي پاچایي په لسیزې کې حاکم وو ورته دي . د ۱۹۶۴ کال اساسي قانون پښتو او دري د رسمي ژبو او پښتو د هیواد د ملي ژبې په صفت پیژندلی وه . خو د اساسي قانون دغه حکم ښه تطبیق نه شو ، او په رسمي چارو کې حتی د پښتنو په منطقو کې هم یوازې دري مروجه وه . دغه حالت برسیره پردې چې دملي هویت له تعمیم سره مرسته نه کوله په پښتو باندې ظلم و . او پښتنو ته د منلو وړ نه و.

څرنګه چې مې دمخه بحث وکړ ، ژبه د ملي هویت په تعین کې لوی نقش لري. که د افغانستان تاریخ او د پښتنو شمیر په نظر کې ونیسو ، له پښتو نه پرته بله ژبه نه شي کولی چې په افغانستان کې ملي حیثیت پیدا کړي . د پښتو د ملي حیثیت مخالفین تر اوسه په دې نه دي قادر شوي چې د پښتو په مقابل کې بد یل وړاندې کړي . که هدف متحد افغانستان او د ملي تولنې جوړیدل وي باید پښتو د ملي ژبې په صفت ومنله شي او دتعمیم ملاتړ یې وشي ، خو دافغانستان خینی " روښانفکران" اوسیاسي ډلې له دغه فکر سره حساسیت لري ، که څه هم ژبه د ملي هویت په تعیین او دملي تولنې په جوړیدو کې په عمل او تیوري کې لوی رول لري .په دوی کې خینې لا یادې علمي په وجه یا د پاروني په مقصد په هغو کسانو او ډلو باندې د فاشستي تور لګوي چې هغوی پښتو ته په ملي حیثیت قایل دی او په تعمیم باندې یې

تېنګار کوي. کـه د ملـي ژبې تاکنـه او د هغې تعميـم فاشـتي حرکـت وي نـو لـه سويس او کومـه بـل ملک نـه پرتـه بـه پـه ټولـه دنيـا بـاندې فاشـزم مسلط وي ، خکـه چـې د نـړۍ د هيوادونـو لـوی اکثريت رسـمي او ملـي ژبـې لـري .

د هيـواد ملـي او رسـمي ژبـه زيـاتره يـوه وي . خـو پـه څينـو هيوادونـو کې لـه يـوې ژبـې نـه زيـاتې رسـمي ژبـې وي . زه نـه غـواړم دلتـه د فاشزم پـه هکلـه څه وليکـم . بـس دومـره ويـل غـواړم چـې فاشيزم درې عمـده مشخصات لـر ي: فاشـيزم قـايد پرسـته وي ، فاشـيزم د ډيموکراسـي پـر ضـد وي او افـراد وتـه د دولـت پـه مقـابل کـې حقـوق نـه ورکـوي ، اوپـه غـير متجانسـو ټولنـو کې فاشـزم ديـوه خـاص نـژاد ، قـوم ، ديـن ، يـا طبقـې خلکـو تـه نسبت نوروتـه قـانوني او عملـي امتيـازات ورکـوي . پـه افغانسـتان کـې د فاشـزم ټاپـه د کمونسـتانو لـه خـوا پـه ملـي شـخصيتونواو ډلـو بـاندې پـه نـاروا ډول ولـکول شـوه . اوس غـير کمونسـتي اشـخاص او ډلـې هـم د کمونسـتانو پـه پـيروۍ دغـه اصطـلاح اسـتعمالوي . د مثـال پـه ډول د افغـان ملـت ګونـد پـه دې ټينـګار کـوي چـې د پښتـو تعميـم د ملـي هويـت د روزنـې او دملـي ټولنـې د جوړيـدو لپاره ډير مـهم ضـرورت دي . د پښتـو د تعميـم مخـالفين کلـه کلـه افغـان ملـت د فاشـزم پـه تـور متـهموي خـو د افغـان ملـت د مخـالفينو دغـه ادعـا يـا د سياسـي فلسـفې نـه د مطلقـې بيخـبرۍ او يـا د شـيطان صفتـې محصـول دی .
د افغـان ملـت ګونـد د خپـل تاسيس لـه وخـت نـه د ډيموکراسـي مـلا تـړ کـړي ، د خـدای (ج ) لـه حـاکميت نـه وروسـته يـې د ملـت د حـاکميت پـر نسـيب منلي اوحکومـت يـې دايم ولـس تـه مسـول ګڼلـي ، او ټينـګار يـې کـړې چـې انتخابـات دي هـر څو کالـه بعـد اجراشـي او حکومـت دې د پارلمـاني اکـثريت لـه خـوا جـوړ شي . څوک چـې پـه سياسـي فلسفه کـې لـږ څه معلومـات ولـري ، پوهيـږي چـې ديموکراسـي او فاشـزم سـره متضـاد مکتبونـه دي او هغـه ډلـې چـې ډيموکراسي منـي هغـو ی‌هيڅکلـه فاشـزم نـه شـي تحمـل کولی. دافغـان ملـت ګونـد کرنـلاره د فاشـزم سـره پـه ښکـاره مخـالفت وايـي چې هر فرد څينې حقوق لري چې دولـت نـه شـي کـولی هغـه ورنـه سـلب کـړي. .همدارنـګه پـه اقتصـادي چـارو کـې د افغـان ملـت ګونـد د اجتمـاعي عدالـت ملاتـړ کـوي، پداسـې حـال کـې چـې فاشيسـتي ګوندونـه اکـثره د جګـو طبقـو امتيازاتو د خوندی کيـدو لپـاره هلـې ځلـې کـوي . يواځنـي تکـی چـې پخـوا يـې کمونسـتان هـڅول ، او اوس ستميان هـڅوي چـې افغـان ملـت پـه فاشـزم متـهم کـړي دادی چـې دافغـان ملـت ګونـد د پښتـو دملـي حيثيـت او تعميم پـه هکلـه کلـک دريـځ غـوره کـړي، او دا دبـې علمـو اويـاد شـيطان صفتـو

اشخاصو او دلو لپاره د فاشزم معنی لري . خو څرنګه چې دمخه مې بحث وکړ ، دملي ژبې تعيين او تعميم په ډيرو هيوادونو کې مروج دي . زمونږ په منطقه کې هم ټول دولتونه ملي ژبه لري. د مثال په ډول په ايران کې يوازې فارسي ملي او رسمي ژبه ده ، په ترکيه کې يوازې ترکي ملي او رسمي ژبه ده ، په ټولو عربي هيوادونو کې يوازې عربي ملي او رسمي ژبه ده ، په تاجکستان کې يوازې تاجکي ملي او رسمي ژبه ده . په ازبکستان کې يوازې ازبکي ملي او رسمي ژبه ده ، په پاکستان کې يوازې اردو ملي او رسمي ژبه ده او په هند کې لا اقل په تيوري کې هندي ژبه ملي ژبه ده. که د پښتو له تعميم نه د افغان ملت ملاتړ ددغه ګوند د فاشستي دليل وي ، په دې اساس دغه پورته ذکر شوي دولتونه هم بايد فاشستي خاصيت ولري. اما داعلمي حکم نه ، بلکه د پښتو د مخالفينو پرتې دي.

د ملي هويت تعيين او تعميم يوه داسې اساسي موضوع ده چې له دغه کارنه پرته د ملي ټولنې جوړول ګران وي. همدارنګه تر هغو چې ملي هويت تعميم نه شي ، د هيواد د بيلو بيلو قومونو د ملتپا لانو تر مينځ اتحاد هم ګران کيږي . هر کله چې دملي هويت مشکل رفع شو ، بيا د افغانستان د ټولو قومونو مليت پا لان په يوه سياسي سنګر کې د اسلام ، استقلال ، ديموکراسي ، د افرادو حقوق ، پرمختګ ، مرفه ژونداوديوې مدني ټولنې لپاره په ګډه مبارزه کولی شي. په افغانستان کې همدا اوس د ملتپا لانو د بې اتفاقي يولوی عامل د ملي هويت او ملي ژبې د نه تعميم مسئاله ده .

څرنګه چې دمخه مې بحث وکړ په ملي ټولنه کې دا هم ضرور وي چې د ټولنې ټول وګړي د مساوي حقوقو او وجائبو خاوندان وي . که د کوم قوم ، کومې ژبې او يا کومې منطقې خلکو ته قانوني او يا بالفعله امتيازات ورکړل شي او دنورو قومونو له خلکو سره د تبعيض سلوک وشي، دغه حالت دملي ټولنې له جوړيدو سره مرسته نه کوي. دافغانستان ټول هغه اوسيدونکي چې د دولت او ټولنې افغاني هويت ومني او دهيواد په رسمي اوملي ژبو باندې وغږيږي کولی شي چې د ولسوالي نه نيولې ان تر جمهوري رياست پورې مقامو نه دلياقت يا د خلکو د رايو له لارې تر لاسه کړي .سياسي ،اجتماعي او اقتصادي امتيازات بايد هيڅ قوم نه منحصر نه وي . او د هيواد ټول افراد د هيواد له امکاناتو نه د استفادې مسياوي چانس ولري . د ملي هويت د تعميم تر څنګه قانوني او بالفعله

مساوات د ملي تولنې د جوړېدو لپاره مهم دی. په افغانستان کې د قانوني او بالفعل مساوات په هکله خینې دلې څه شکایتونه لري. دغه شکایتونه د ملي ستم د طرفدارانو له خوا په ښکاره ډول افاده شوي. (دملي ستم طرفداران د خپلې پخوانۍ خانګړې ډلې نه برسېره د پرچم په پخواني ګوند، په جمعیت اسلامي اوپه شورای نظارکې دېرنفوذلري).

د ملي ستم د مفکورې پیروان ادعا کوي چې په افغانستان کې د پښتنو کولتور حاکم او د نورو قومونو کولتور محکوم دی. کولتور د یوې تولنې د عقایدو، رسومو، او ژوندانه د لارې مجموعه ده. په افغانستان کې د اسلام مقدس دین د ټولو مسلمانو قومونو کولتوري چوکاټ جوړوي. څرنګه چې اسلام د ټولو مسلمانو افغانانو تر مینځ مشترک دی په افغانستان کې د ټولو قومونو کولتور یو بل ته سره دېرورنه دي. کوم هغه کولتوري اصل چې پښتانه له نورو قومونو نه بیلوي هغه پښتنولي ده، خو پښتونولي هیڅکله په غیرپښتون قومونو باندې جانه ده تحمیل کړې. په اصل کې د امیر عبدالرحمن خان د پاچایي نه راپدې خوا حتی د پښتنو په منطقه کې د افغانستان بیلوبیلو حکومتونو د شریعت د تعمیل هڅه کړې، او لاأقل په حقوقي اوجزایي مسئلو کې یې د پښتنولي ساحه دېره محدوده کړې. څرنګه چې د ۱۹۵۰ لسیزې نه را پدیخوا هم د قبیلوي ژوند اساسات کمزوري شوي دید پښتنولي ساحه حتی د پښتنو په اجتماعي مناسباتو کې هم محدوده شوې. په دې اساس دا ادعا چې پښتانه په کولتوري ساحه کې په نورو باندې ظلم کوي واقعیت نه لري. که چیرې ژبه د کولتور یو مهم عنصر وګڼو نو په رسمي معاملاتو کې د پښتو محکومیت د ستمیانو دغه ادعا چې پښتانه په نورو قومونو باندې کولتوري ظلم کوي ،نوره هم کمزورې کوي.

د ملي ستم د مفکورې پیروانو یوه بله ادعا داده چې په افغانستان کې د ثروت ویش د پښتنو په ګته دی، او نورو قومونو نه پکې مساوي حق نه دی ورکړ شوی. په اکثروهیوادونو کې د ملي ثروت او ملي عایداتو د ویش په هکله مقایسوي ارقام موجو دي. خو په افغانستان کې متاسفانه د ملي ثروت او ملي عایداتو په هکله ارقام نه شته او له دې امله د ملي ستم د پیراونو دغه پورتنۍ ادعا په موثق ډول نه تالیدیدلی او نه ردیدلی شي. خو څرنګه چې په افغانستان کې مځکه د عایداتو عمده منبع ده او دمځکې د ویش په هکله یو څه ارقام شته هیله ده چې دمځکې ویش بحث به دملي ثروت او ملي عایداتو په ویش باندې یو څه

رنا واچوي. په افغانستان کې حتی د کمونستانو د مځکو د اصلاحاتو له پروګرام نه دمخه مځکې نسبتاً په مساوي ډول د خلکو تر مینځ ویشل شوې وې . په داسې حال کې چې په ایران ، ترکیه ، عراق ، مصر ، پاکستان او هندوستان کې د مځکود اصلاحاتو له پروګرامونو نه دمخه لویو ملاکانو په زرګونو جریبه مځکې درلودې. په افغانستان کې د مځکې د مالکیت تراکم نسب نورو هیوادوونه ډیر کم و .لویي دوپري ، امریکایي مشهور مورخ په دې برخه کې تحقیقات کړي دي . هغه وایي چې د ۱۹۶۳ کال نه دمخه په افغانستان کې په سلو کې شپیتو دهقانانو خپلې مځکې خپله کرلې ، او په ټول هیواد کې یوازې د بر شو ملاکانو له زرو جریبونه زیاته مځکه نه درلوده .۱ محمد حسن کاکړ ، د افغانستان مشهور مورخ ، د انظر تایندوي چې په افغانستان کې د مځکو ویش نسبتاً مساوي و . دی وایي چې د نفوسو ډیر والی او دمځکو کموالي داسلامي قانون نه پیروي چې د هغه په اساس د متوفی مال د هغه د کورنۍ د ټولو غړو تر مینځ په نسبتاً مساوي ډول ویشل کیږي او دخینو پاچایانو لکه امیر عبدالرحمن خان دغه پالیسي چې له متنفذ و خلکو نه به یې د هغوی دسیاسي کمزوري لپاره مځکې نیولې د مځکو د نسبتاً مساوي ویش عمده دلایل دي (۲).

د کمونستانو له کودتانه وروسته دوو اجتماعي عالمانو بوشوروي ولا دیمیرګلوخودید، او بل هندوستاني ، سدهان موکرجسي ، د افغانستان حکومت له ارقامونه په استفادې سره د مځکې د ویش په هکله نسبتاً دقیقې مطالعې کړي دي. دواړه عالمان وایي چې د مرحوم محمد داوُد خان دجمهوري ریاست په دوره کې په افغانستان کې په سلو کې دوڅلویښت کورنیو له پنځو نه تر ۲۷ جریبو پورې مځکه درلوده او په سلو کې پنځه او یا کورنیو لا اقل یوڅه مځکه درلوده . دوی دخپلو څیړنو پر اساس حکم کوي چې په افغانستان کې په سلو کې څلویښت برخې مځکې د په سلو کې نهو کورنیو په لاس کې وې او دغه کورنۍ د افغانستان زمینداره طبقه بلل کیده . خو دغونسبتاً نویو زمیندار وهم په اوسط ډول له ۷۵ جریبونه زیاته مځکه نه درلوده د ګلوخودید او موکرجي په نظر د منطقې د نورو هیوادونو د زمیندار په نسبت ۷۵ جریبه مځکه ډیر کم شي دی (۳).

د کمونستانو دمځکو د اصلاحاتو پروګرام هم په افغانستان کې د مځکو کموالي او د مځکو د نسبتاً برابر ویش واقعیتونه تایید کړل.

کمونستان په دې فکر وو چې په افغانستان کې مځکې ډیرې او د مځکو د ملکیت تراکم قوي دي. دوی فکر کاوه چې که دوې د طبقاتي جګړې غر جګ کړي او مځکې له زمیندارونه واخلي او په بې وزلو خلکو یې وویشي دوی به د میلیونو افغانانو ملاتړ تر لاسه کړي. کمونستانو تخمین کړي وو، چې دوی به له زمیندارونه تقریباً شپږ ملیونه جریبه مځکه ونیسي او په بې مځکو خلکو باندې به یې وویشي.

خو دوې یوازې یو نیم ملیون جریبه اوله درجه مځکه هغو خلکونه چې له دیرش جریبو نه یې مځکه ډیره وه ونیوله او مجموعاً یې د یوګمیلیون او درې لکه جریبو اوله درجه معادل مځکې په ۲۹۶۰۰۰ بې مځکو کورنیو وویشلې . د کمونستانو د تخمین پر اساس له کوچیانو نه غیر ، هغه وخت په افغانستان کې تقریباً ۶۳۰۰۰۰ بې مځکو کورنیو ژوندکاوه . ددې لپاره چې دیوې متوسطې کورنۍ د متوسط ژوند احتیاجات د مځکې له حاصلاتو نه تهیه شي ، یوفامیل باید لا اقل ۲۰ جریبه مځکه ولري. خو کمونستانو حتی دغه محدود تعداد بې مځکو کورنیو ته له پنځه جریبه نه زیاته مځکه ورنکړای شوه. په افغانستان کې د زراعتي مځکو د کموالي او د مځکو د نسبتاً مساوي ویش له امله کمونستانو بالکل تعجب وکړ او کله چې دا ورته ښکاره شوه چې ډیرو بې مځکو کورنیو ته مځکه نه شي ورکولی بیا یې د طبقاتي جګړې خبرې سړې کړي .دغه څیړنې که څه هم د قومونو تر مینځ د مځکو په ویش باندې پوره رڼا نه اچوي ، خو که دا ومنو چې په افغانستان کې په عمومي دول مځکې کمې دي ، د مځکو ویش نسبتاً مساوي دي، او مځکه د عاید عمده منبع ده نو بیا حق لرو چې د ستمیانو د غې ادعاته چې په افغانستان کې د ثروت ویش په قومي تبعیض باندې ولاړ دي ، او دیرې مځکې دپښتنوپه لاس کې دي دشک اوتردید په سترګه وګورو. برسیره پردې کله چې ګورو چې د پښتنو خینو ولایتونو کې (کنړ ،لغمان ، ننګرهار ، پکتیا ، او لوګر) نسبت نورو ولایاتونه خمکې کمې او د خلکو شمیر دیر دي. او په ټول افغانستان کې یوازې دیرش نفره چې هغه هم ټول پښتانه نه دي ، له زرو جریبونو زیاته مځکه لري، نو زمونږ شک او تردید په نورو قومونو باندې د پښتنو د اقتصادي ظلم په هکله نور هم قوي کیږي . خو څرنګه چې د مخه مې بحث وکړ تر څو پورې چې د ملي ثروت او ملي عایداتو د ویش په هکله موثق ارقام تر لاسه نکړو د اقتصادي ظلم ادعا په قاطع ډول باندې نه ردیدلای شي، او نه

تـائيديدلای شي. هغـه خلـک چې پـه يقين سـره د اقتصـادي تبعيض ادعـا کـوي بـايد چې د خپلې ادعـا د ثبوت دپاره موثـق ارقـام وښيـي .

د ملـي ستم د طرفدارانـو لـه ټولـو نـه لـوی شـکايت دا دی چې پښتنو پـه افغانـستان کـې عمـده دولتـي پوسـتونه تقريبـاً انحصـار کـړي او د نـورو قومونـو وګرو تـه بـې موقـع نـه ده ورکـړې چـې مـهم دولتـي منصبونـه تـر لاسـه کـړي .

لـه نيکـه مرغـه دغـه موضـوع امريکـايي څيړونکـي ، بـارني روبـين څيړلـې ده. دی ليکـي چـې د ديموکراسـی لـه لـسيزې نـه د مخـه (۱۹۶۳ کـال نـه پخـوا ) پـه افغانـستان کـې عمـده دولتـي مقامونـه د مختلفـو قومونـو تـر مينـځه داسـې ويشـل شـوې وچـې پښتنـو تـه پـه سـلو کـې ۵۷۹ ، تـاجکو تـه ۲۹،۲سـاداتو تـه ۶۴ نـورو سـني قومونونـه مجموعـاً ۴،۵ ، او اهلـي تشيع تـه ۲،۲ برخـه رسـيدلې وه . د محمـد ظـاهر شـاه د ديموکراسـی پـه دوره کـې بيـا د مهمو دولتي مقامونو ويش داسې فرق وکـړ چې پښتنو تـه پـه سـلو کـې ۵۶۱ تـاجکو نـه ۳۳سـاداتو تـه ۳،۳ نـورو سـني قومونـو تـه ۵،۵ او اهـل تشيع تـه ۲،۲ برخـه ورسـيده. ( ۴ )کـه څه هـم ددغـې احصـايې پـر اسـاس د ديموکراسـي نـه مخکـې او د ديموکراسـۍ پـه دوره کـې پښتنـو د خپـل نفـوس پـه تناسـب لـه خپـل حـق نـه لـږ څه زياتـه برخـه تـر لاسـه کـړي خـو دغـه حکـم تاجکـانو او ساداتو پـه هکلـه هـم صـدق کـوي پـه اسـلامي ټولنـه کـې سـادات خـاص موقـف لـري او دا د تعجـب وړ نـه ده کـه څه هـم د سـاداتو شـمير پـه سـلو کـې حتـی يـو هـم نـه دی. دوی لـه ديموکراسـی نـه دمخـه ۶،۴ او د ديموکراسـي پـه دوره کـې ۳،۳ عمـده دولتـي مقامونـه تـر لاسـه کـړي و. خـو دا تعجـب خاي دی چـې د ملـي سـتم د مفکـورې ډيـر پـيروان تاجکـان دي . او سره لـدې چې د تاجکـانو شـمير پـه سـلو کـې لـه ۲۶ نـه زيـات نـه دي دوی لـه ديموکراسـی نـه د مخـه پـه سـلو کـې ۲۹،۲ او د يموکراسـی پـه دوران کـې پـه سلو کې ۳۳ برخې مـهم دولتـي مقامونـه تـر لاسـه کـړې وو . پـه واقعيـت کـې د ديموکراسۍ پـه دوره کـې پـه مـهمو دولتـي مقـامونو کـې د شـمير پـه تناسـب د تـاجکو برخـه تـر پښتنـو نـه زياتـه وه . د بـارني روبـين احصايـه يـو جـدي تبعيض تـه د اهلې تشيع خصوصاً د هزاره ګانو پـه مقـابل کـې پـه ګوتـه کـوي . ويل کيږي چې پـه افغانستان کې د اهـل تشيع شـمير پـه سـلو کـې لـه لـسو څخـه ډيـر دي خـو ددوی برخـه پـه عمـده دولتـي مقـامونو کـې د ديموکراسـی نـه پخـوا ۱،۸ او وروسـته ۲،۲ وه .د ملـي ټولنـي پـه جوړيـدو کـې

باید دا ټکي په نظر کې ونیول شي او هڅه وشي چې د دولتي مقامونو په نیولو کې د قوم پر اساس تبعیض ونه شي.

ددغو ارقامو له بحث نه منظور دا نه دی چې په افغانستان کې په قانون او عمل کې د خلکو تر مینځ پوره مساوات ټینګ دي. که څه هم د محمد ظاهر شاه د نیمګړې دیموکراسۍ په دوره کې کوم خاص قانوني امتیاز هیڅ قوم ته نه و ورکړ شوي، ددې امکان موجود دی چې په عمل کې به له خینو سره د تبعیض سلوک شوي وي، خو د ملي ټولنې د جوړېدو لپاره دغه ډول تبعیضونه باید مشخص شي او باید ورسره مبارزه وشي، نه دا چې په یوه قوم باندې د امتیاز تورونه ولړول شي. لنډه دا چې دملي ټولنې جوړېدل دوه غټې ستنې غواړي: په ملي هویت باندې موافقه او د هغه تعمیم او دهیواد د ټولو وګو دپاره په عمل او نظر کې قانوني مساوات. د قانوني مساوات په هکله د افغانانو تر مینځ کوم کلک اختلاف نشته. له کومو قومونو سره چې دمساوات سلوک نه دی شوي لکه هزاره ګان هغوی ته باید په نظراو عمل کې پوره قانوني مساوات ورکړل شي. له نزاع نه ډکه موضوع د ملي هویت او د ژبو موضوع ده. هر کله چې د پښتو د تعمیم غوښتنه کېږي خینې خلک ددغې غوښتنې نه فاشستي غوښتنه وایي. دغه سلوک نه یواځې دا چې د ناپوهۍ ښکارندوی دی، د هیواد د سیاسي تکامل په مخ کې د یو لوی مشکل حل کول خنډوي. خینې افغاني شخصیتونه په دې نظر دي چې د ملي هویت او د ژبو موضوع له نفاق نه ډکه موضوع ده او لا اقل اوس باید ورباندې خبرې ونه شي. خو مشکلات سیاسي وي یا اجتماعي یا شخصي په سکوت او موقف نه نیولو باندې نه حل کېږي. غټې خبرې غټ تصامیم غواړي. هغه اشخاص او هغه ټولنې چې د غټو تصامیمونه ډډه کوي پرمخ تللی نه شي. په دې برخه کې باید له معنی او صداقت نه ډک بحث وشي. دغه فکر چې په افغانستان کې دې دري او پښتو دواړه رسمي ژبې وي خو پښتو دې ملي ژبه هم وي هم عادلانه دې او هم له تاریخي او د خلکو د شمیر له واقعیتونو سره سم دي. په دغې ټکي باندې موافقه د ملي او دیموکراتو قواو داتحاد او د ملي ټولنې د جوړېدو دپاره مهمه ده. هیله ده چې سیاسي ډلې او سیاسي لیکوالان په پوره مسؤلیت په دې باب ښکاره او علمي بحث وکړي او هسې کاذب او موقتي محبوبیت لپاره بې معنی طرح وړاندې نه کړي.

# پـــــــايليک


۱. لويي دوپري، افغانستا ن ، خپرونکي: د پرنستن پوهنتون ، پرنستن، ۱۹۷۳ _ ۱۳۷

۲. محمد حسن کاکړ، حکومت او جا معه په افغا نستان کې، د امير عبدالرحمن خان د سلطنت دوره، ۱۸۸۰ _ ۱۹۰۱خپرونکي: د تکساس دولتي پوهنتون خپرونه ، استين او لندن ۱۹۷۹ _ ۱۱۵ _ ۱۲۳

۳. د موکرجي او ګلو خوديداد ارقامو دپاره وکوري د نظيف شهراني ليکنه" مقدمه: مارکسستي انقلاب او اسلامي مقاومت په افغانستان کې، د نظيف شهرا ني او را برت کين فيلد له خـــوا تدوين شوي کتاب، په افغانستان کې انقلا ب او بغاوت ، خپرونکي :د کليفورنيا پوهنتـــون د بين المللي مطالعاتو موســه، برکلي ، ۱۹۸۴ _ ۱۹ _ ۱۸

٤. با رني روبين، په افغانستان کې سياسي خاصا ن ، مستاجر دولت جوړونه ، مستاجر دولت ړنګونه ، د منځني ختيځ مطالعاتو بين المللي جورنال فبروري ۱۹۹۲_ ۷۷ _ ۹۹

## افغانستانه!

**صفيه صديقي**

ته مې مينه ته الــــفـــــت يې

ته زما ژونـــدون يې پـــــت ، يې

ته غيرت د لــــــــــوړتې مې

ته مې شـــان يې ته شـــوكت يې

تـــه مې تن ته مې وجــــــود يې

تـــه كعبه مې د سُــــــجود يې

تـــه مې هست يې ته مې بـــــود يې

ته مـــــې روح ته مـــــې كالـبد يې

د يـــورپ جنـــــــت به څه كړم

د هـــند تاج او تخـــــت به څه كړم

شنې لـوخړې شوې‌ايرې شوې

دا اوښتې بــــــخت بـــه څه كړم

لـــه زګيرونــــــــه دې واری شم

زه يې اورم تــــرې لوګی شـــم

د چــا بــــــــد نظر درپرېوت

كـــــــاشكی زه دې سپيلنی شم

به توتې توتې جانـانه

زما خوږ افغانسـتانه !!!

